

# د رحمان بابا دیوان

پښتو ټولنه ۱۳۵۶

د پښتو ټولنې پر له پسې لمبر ۲۲۵



# د
# رحمان بابا دیوان

خپرونکې

## پښتو ټولنه

د

۱۳۵۶ کال دزمري پنځلسم

دچاپ شمیر ۳۰۰۰ ټوکه

دولتي مطبعه

مرتب او مهتمم :

څېړنیار محمد عارف غروال

د نسخو مقابله کوونکي :

څېړنمل عزیزالله

څېړنیار محمد عارف غروال

څېړونکی محمد عمر

خپل ډېر ګران، د قدر وړ او پیاوړي ملګري، او ډېر ښه ملګري او ډېر ښه ورور عنایت الله خان (شفق) ته ئې په ډېره مینه او د ښه هیلې وړاندې کوم، د یادګار په بدل کې ئې وساتي.

چې کشور د افغانانو معطر کړي
د هر بیت مصرع مې زلفې د خوبان کړي

خوار او ملګری دی
ګل علي رخادم
(۲۸/۵/۹۰)

له څه مودې راهیسې د رحمان بابا د دیوان چاپي نسخې بالکل نایابه شوې وې

له همدې امله، پښتو ټولنې تصمیم ونیو چې د بابا یو نسبتاً جامع او بشپړ دیوان چاپ

کړي. څرنګه چې کتاب د یوې علمي او ادبي اکاډمۍ له خوا خپرېده لازمه وه چې تر وسه

وسه پورې اکاډمیک او علمي پرنسیپونه پلي او پلټنې وپالل شي. د دې هدف د تحقق د پاره،

له ټولو چاپي او بېلابېلو قلمي نسخو څخه استفاده وشوه. دا باوري خبره ده چې د رحمان بابا

د دیوان قلمي نسخې د پښتونخوا په هر کوټ کې پیدا کېږي. خو له یوې خوا د ملکو ادبي

تنه‌ندې او علمي لړیتیا او له بلې خوا د پښتو ټولنې مالي امکاناتو اجازه نه ورکوله چې دا

کار نور هم وځنډېږي.

په همدې اساس، د پښتو ټولنې د کتاب او فولکلور او ادبیاتو مدیریت ته وظیفه ورکړه شوه

چې د بابا د دیوان یو انتقادي متن تیار کړي. د دې دیوان په خپرېدو سره به د ادبیاتو څېړونکي اسانتیا

ترلاسه کړي چې د بابا ادبي سبک "ژبه"، او د فکر طرز په ښه توګه وڅېړي

او د هغو اشعارو په ماهیت باندې هم رڼا واچوي چې رحمان بابا ته منسوب شوي دي.

د لوړ د بیاتو څېړونکي د خپلو علمي څېړنو د پاره، البته، په دې نسخه باندې بسنه او قناعت نشي کولی
ځکه سره له دې چې کتاب له یو شمېر نسخو څخه ترکیب شوی دی خو هره نسخه یې د متن کره کتنې -
textual criticism له مخې ځانګړې مطالعه او زیاته څېړنه غواړي. له دې امله، د دې
نسخې په چاپېدلو سره دا دلیل کره کتونکو وظیفه پای ته نه رسیږي بلکه په نوې افق کې به خپلو څېړنو
ته دوام ورکوي.

زه دلته د رحمان بابا د افکارو د ترجمانۍ، تعبیر او تفسیر څخه چې دده کوم ځلکه یې هر حرکت یې له خپلو
عینکو څخه په بل رنګ ویني او بهتره به وي چې په دې باره کې ځانګړې رسالې یا کتابونه ولیکل شي.
سره له دې، د لوړ ادب او فولکلور د لوی مدیریت له خوا د رحمان بابا یوه لنډه بیوګرافي ترتیب شوې ده
چې مبتدي لوستونکي له مینځ او اساسي تګلوري سره آشنا کړي او د بیانو ته د زیاتې څېړنې د پاره
چلېنج ورکړي.

د دې کتاب په تدوین کې د لوړ ادب او فولکلور د لوی مدیریت مسلکي غړو ښاغلي محمد عارف غروال،
ښاغلي عزیزالله، ښاغلي شاه ولي او ښاغلي محمد عمر او نورو ډېر زیار ایستلی دی. پښتو ټولنه
په دې وسیله د دوی د زیار او د تمام یادونه کوي او د پښتو ژبې او ادب د خدمت په لاره کې د دوی
د زیاتو بریالیتوبو هیله کوي.

۱۳۵۵/۷/۱

څېړنوال محمد صدیق روهي

د پښتو ټولنې رئیس

# رحمان بابا

## ژوند پېژندنه او دیوان

لیکوال
حبیب الله رفیع

ما غوښتل چې په دې لیکنه کې د رحمان بابا په ژوند، پېښو، فکر او فن بشپړې خبرې وکړم. لټون مې پیل کړ، یادداشتونه مې راغونډ کړل، ډېرې نوې خبرې مخې ته راغلې مجبور وم چې په ټولو وغږېږم نو ځکه خبره د دیوان له سریزې څخه یوه بشپړ کتاب ته اوږده شوه.
په دې سریزه کې د رحمان بابا د فکر او فن له څېړنې څخه تېرېږم ځکه چې له یوې خوا خبره اوږدېږي او له بله پلوه د ده فکر او فن په دې دیوان کې ستاسو په مخ کې دی. نو یوازې ژوند پېژندنه او له دیوان سره مربوط مطالب یې راوړم، البته د ده په باب به هر اړخیزې خبرې په هغه ځانګړي کتاب کې چې "رحمان بابا - د پښتو عالمګیر" مې نوم ورته ټاکلی دی وړاندې شي.

زه عاشق یم سروکار مې دی له عشقه
نه خلیل، نه داؤدزی یم، نه مومند

# [ I ]

# د رحمان بابا تاریخي څېره

رحمان بابا لکه څومره چې په پښتنو کې وتلی او منلی شخصیت دی هماغومره یې ژوند پېښې تتې او د تاریخ په تیارو کې پټې دي، دا ځکه چې دی د یوې غریبې کورنۍ غړی و، او د غریبانو ژوند او مرګ ته چا دې ارځښت نه ورکاوه چې ځان پرې ستړی کړي او ژوند پېښې یې وکاږي، دده ژوند هغه وخت ارځښت وموند چې دده خپل شعر په قوت د پښتنو زړونه او د "روح" سیمه تسخیر کړل او د ټولو پام یې ځان ته واړاوه خو دا هغه وخت و چې دده د ژوند د ډېرو خبرو هېر شوي وو.

دده د ژوند پېښو په باب د ډېرو کسانو دا تکل نیلی ځغلولی او د ډېرې خبرې پرې شوې خو دده د ژوند په باب ډېر حقایق پټ هم پاته شوي او ډېر داسې څه هم ورسره تړل شوي چې په اصطلاح دده ارواح ترې خبره نه ده.

**ټبر، کلی او زوکړه:** رحمان بابا د پښتنو د روایتي سلسلة النسب له مخې "سړبن"[1] په سړبن کې غوریاخېل[2] په غوریاخېل

---

(۱) یو کتاب په سړبن کې چا ونه کړ
لې رحمانه چې یې وکړ دا کتاب
(د رحمان بابا دیوان، کابل پښتو ټولنه، ۱۴۱ مخ)

(۲) سل سړبني دې تر دا یو غزل ځاریږي [?]
نن چې دا پښتو د کرلاني خوشال وېلي
(کلیات خوشحال خان خټک، د دوست محمد خان کامل په سریزه ۶۸۴ مخ)

پاته په (۳) مخ کې

کې "مومند" (۳) په مومند کې "دویزي" (۴) او په دویزيو کې "ابراهیم خېل" (۵) دی.
راوړلي دي په مومندو کې غوریاخېل بولي (۶) خو څرنګه چې مومند د غوریاخېلو
ښاخ دی نو ځکه نو موږ ختیځ یوه تېره وتلی او د خبرې د سنه سپینتیا به له پاره له
مومند نه تر سړبن پورې شجره دلته کاږو :

---

د (۲) مخ پاته :

فکر کېږي چې له سړبني نه مراد رحمان بابا وي او د رحمان بابا دا بیت د ده ځواب ګڼل کېدای شي :

یو خوشال یو کم سل خټک لوړ په طبیعت کې     ځار شه د رحمان سړبني لـه یوه فرده

(د رحمان بابا دیوان ، کابل ، ۱٤۲ مخ)

بیا په دوره د شاه عالم په خړ بنـو کې     راښکاره شو په جهان عبد الرحمان

(میر احمد شاه رضواني - روهي ګلونه ، ۱۲۳ مخ)

(۳) - زه خټک دیاں په غم تازه تازه شم     غوریه خېل رحمان که شو ورځنی ستړي

(د عبد القادر خان خټک دیوان ، د استاد حبیبي تدوین او تصحیح ، ۱۳۴ مخ)

<u>د دې مخ د متن پا یلیکونه</u> :

(۳) که لې شعر د رحمان مومند تر غوږ شي     غوږ به نه باسي په شعر د خوشال خوک

(د رحمان بابا دیوان ، کابل ، د استاد بېنوا په سریزه ، ۹۴ مخ)

خدایه دابښې مومند عبـد الرحمـان     پرې نازل کړې حنپل رحمت لکه باران

(دیوان عظیم (عبد العظیم رانیزی) لاهور ۷٦ مخ)

(۴) ما نجیب هم په دا طور غـزل ووې     که ویلی دویزي عبد الرحمان دی

(دیوان نجیب ، د پېښور پښتو اکاډمي ، ۲۷۳ مخ)

د ملا بنا لیستہ خان په جونګ کې هم چې د رحمان بابا د ژوند وخت ته ورلنډ کښل شوی ، د ده له نامه سره د دویزي کلمه شته
(د ملا بنا لیسته خان جونګ ، قلمي نسخه ، د لیکوال کتابتون)

(۵) "رحمان بابا که چې یادري هیوزلیکي ابراهیم خېل مومند و . د پېښور د مومندو په تپه کې چې کوم خلګ ځان د رحمان بابا نسی او عزیزان بولي هغوی په ابراهیم خېلو یادیږي ..." (رحمان بابا ، دوست محمد کامل مومند ، پېښور ۱۹۵۸ ع ۸ مخ)

(۶) کامل ، دوست محمد : "رحمان بابا" ، ۵ مخ

# خلوړم




---

* . ددې شجرې په ترتیب لوکې دخواجه نعمت الله هروي له "مخزن افغانی" په ۱۹۶۲ ع . کال کی دداکې چاپ دحافظ رحمتخان له "خلاصة الانساب" په ۱۹۷۳ ع . کال د پېښور د پښتو اکیډمۍ چاپ، دافضل خان ختک له "تاریخ مرصع" په ۱۹۷٤ ع کال کې دیونیورسټی بک ایجینسی چاپ ، دظفر کاکاخیل له "پښتانه دتاریخ په رڼاکې" په ۱۹٦۵ ع . کال کی دیونیورسټی بک ایجنسی چاپ ، نخه استفاده شوې ده .

(۷) "پښتانه دتاریخ په رڼاکې" دالوم "گند" کاږي .

(۸) "تاریخ مرصع" دکاسي نوم نه اخلی .

(۹) دالوم "خلاصة الانساب" د "شمخي" محفف بولی، مخزن افغاني يې "شیخا" او "خرخښی" قیدوی ، پښتانه دتاریخ په رڼاکې يې په دریو بڼو: "شیخا ، خونښي ، خاښی" راوړي .

(۱۰) د "غوریا" لوم مخزن افغاني "غوري" او "غوزا" اوتاریخ مرصع "غوری" راوړي .

(۱۱) خلاصة الانساب او دمخزن افغانی ځینې نسخې (چې دخلاصة الانساب اخځ هم همدا دي) دغوریا زامن پنځه بولي په دې ترتیب :

"خلیل ، داوُد ، مندك ، یوسف ، مومند " او په دې اساس مومند او داوُدزی دخلیل وروڼه نه بلکه وروڼه گڼي او سبکاري چې رحمان بابا هم دهمدې عقیدې په اعتبار کې وایي :

"نه خلیل نه داوُدزی یم نه مومند "

دمخزن افغاني ځینې نسخې د "دولت یار" وجود دځینې فولکلوري روایاتو په اساس ردوي او مومند او داوُد دده زامنو په توګه غلط بولي.

(۱۲) د مخزن افغاني معتبري نسخې دغوریا په زامنو کې تر خلیل وروسته د "منوزئي" په نامه یو لوم زیاتوي او دغوریا زامن پنځه بولي.

(۱۳) دالوم د مخزن ځینې نسخو "جوکن" ضبط کړی دی .

(۱۴) د "زیرانی" لوم مخزن افغاني "زیرانه" راوړي دی .

(۱۵) د "ملی" لوم مخزن افغاني او پښتانه دتاریخ په رڼاکې "ملهی" کسبلی دی.

(۱۶) د "ترك" لوم په خلاصة الانساب او مخزن افغاني کی نشته .

(۱۷) د "شجاع" لوم هم خلاصة الانساب او مخزن افغاني نه راوړي .

(۱۸) دالوم خلاصة الانساب او پښتانه دتاریخ په رڼاکې "مهیار" کاږي .

رحمان بابا په "بهادر کلي" کې چې له پېښور ښار څخه دری غلور میله لیرې[19] جنوبي اړخ ته پروت دی[20] له عبدالستار مومند کره وزېږېده[21] پټه خزانه د محمد رسول کلاتوال د بیاض[22] له مخې د رحمان بابا د زېږېدو کال (۱۰۴۲ هـ.ق.) ښیي[23] که څه هم ځینې کسانو هڅه کړې چې دا سنه سمه و نه بولي خصوصاً ښاغلی کامل مومند په خپل "رحمان بابا" نومي تحقیقي اثر کې زیار ایستلی چې دا تګلوری په اساس دې کال په ښکنګ کې د پښتو رکلو نه وړاندې کړې خو بریالی شوی نه دی او مجبور شوی چې د خپل بحث په پای کې بیا هم دده زېږېدل د همدې کال شا او خوا بولي.[24]

د پښتونستان یو بل مؤلف ښاغلی عبدالحلیم اثر سره له دې چې د پېښور د پښتو اکېډمۍ د پښتو مجلې د ۱۹۷۶ م. کال د اپرېل په ګڼه کې پټه خزانه یو درېږ باوري کتاب بولي خو د ښاغلي میر عبدالصمد خان د "رحمان بابا شاعر انسانیت" د کتاب په سریزه کې بې له دې چې کوم اخځ وښیي، کاږي چې سوانح لیکونکي د رحمان بابا د زېږېدو کال ۱۰۴۰ هـ.ق. بولي![25] بیا دا کال رد وي او جالبه دا چې دا ځل هم بې له دې چې کوم لاسوند ولري، لیکي: "زما د معلوماتو (؟) له مخې رحمان بابا د ۱۰۳۸ هـ. ق. کال د جمادی الثاني په ۲۱ نېټه د جمعې په ورځ د پېښور له مضافاتو څخه په بهادر کلي کې وزېږېد".[26]

د رحمان بابا نومي بې لیکواله کتاب هم د رحمان بابا د زېږېدو په باب د فکر نیلي - زغلولی او دېتي خزانې د صراحت په خلاف یې دده د زېږېدو کال ۱۰۶۳ هـ.ق. اټکل

---

(۱۹) عبدالصمد خان، رحمان بابا شاعر انسانیت، ۱۹۷۴ ع. پېښور، ۶۹ مخ.
(۲۰) حبیبی، استاد عبدالحی، پښتانه شعراء (لومړی ټوک)، ۱۳۲۰ ش.، کابل، ۱۹۲ مخ.
(۲۱) محمد هوتک "پټه خزانه" د لوی استاد پوهاند عبدالحی حبیبی په سریزه، سمون او تشریح ۱۳۲۳ ش. کابل ۹۳ مخ.
(۲۲) د دې بیاض نسخه محمد هوتک لیدلې وه خو اوس یې چېرته پته نشته او د زمانې په سپېلو له سترګو الوتیا کړې ده.
(۲۳) پټه خزانه، ۹۳ مخ.
(۲۴) وګورئ: له ۷ تر ۱۶ مخ پورې.
(۲۵) رحمان بابا شاعر انسانیت، ۱۳ مخ.
(۲۶) هم اثر.

کړې دی.[۲۷]

دهېواد پیاوړی محقق لوی استاد پوهاند عبدالحي حبیبي د رحمان بابا د زېږېدو په باب د پېټي خزانې وینا سمه بولي او هېڅ شک ځای نه پکېویني[۲۸].

په دې ترتیب وینو چې د رحمان بابا د زوکړې په برخه کې د پېټې خزانې د وینا په مقابل کې ما تو ونکی سند نشته نو موږ په دې برخه کې د ده خپل د دېوان ګوره وچې هلته د دې وینا په رد یا منلو کې څه موندلای شو که نه؟

رحمان بابا په خپل دیوان کې د لنډبحر یوه اوږده بولله لري، چې د دنیا بې وفايي او خپل ځان سپین ږیرتوب پکې انځوروي او د اورنګ زیب په مړینه بحث او ساندې پکې کوي، دا بولله ظاهراً په ۱۱۱۸ ه.ق. کال چې د اورنګزیب د مړینې کال دی[۲۹] او یا هم احیاناً په ۱۱۱۹ ه.ق. کال ویله شوې ده. په دې بولله کې یو بیت داسې لولو:

ترپنځاو پنځه تېرشوې ته لا ځان بولې پسر[۳۰]

نو که چې دی په ۱۱۱۸ ه.ق. کال تر پنځه پنځوس تېر و بولو او دا تېر والی هم د ده د شپېته کلنۍ و منو نو بیا د ده د زېږېدو کال ۱۰۵۸ ه.ق. راځي او د پټې خزانې تر سنې (۱۶) کاله راوروسته کېږي خو د پټې خزانې کال له دې سره هم نه ردېږي. ځکه چې دا بیت د رحمان بابا د دیوان په بېلو - بېلو نسخو کې یوله بله توپیر لري.

---

(۲۷) محکمهٔ نشر واشاعت قبایل، "رحمان بابا". دا کتاب نه د لیکوال لوم لری اونه یې د چاپ کال ښئي او ښکاري چې د کوم غرض له مخې په دېر عجولانه دول د رحمان بابا په باب د افکارو د تشتت له پاره خپور شوی.

(۲۸) - حبیبي، پوهاند عبدالحی؛ د افغانستان پښتلیک، ۱۳۵۳ ش، ۱٤۰ مخ.

(۲۹) محي الدین اورنګزیب عالمګیر د کورګاني شاجهان دریم زوی دی چې په ۱۰۲۷ ه.ق. کال د هند په احمد آباد کې وزېږېده. په ۱۰۶۸ ه.ق. کال یې خپل پلار بندي کړ او دی پر تخت کېناست د ده د خپلې واکمنۍ په دوره کې پښتنا نه د بر و کوټل او په پښتونخوا کې د ده په ضد پیاوړی ملي نهضتونه پیل شول چې د اخوند چالاک، ایمل خان او خوشحال خان غوره څنګونه یې زموږ د ملي تاریخ روښانه بابونه دي. (د تفصیل له پاره وګورئ: تاریخ افغانستان در عصر کورګاني هند، د لوی استاد پوهاند عبدالحي حبیبي اثر، د خوشحال ختک مرغلرې، کلیات خوشحال خان، ارمغان خوشحال او نور....).

(۳۰) دیوان عبدالرحمن، د پښتو ټولنې پښتو اکېډمۍ، ۳۸ مخ.

او خصوصاً د رحمان بابا د دیوان په یوه خطي نسخه کې چې د پښتو ټولنې په کتابتون
کې ساتله کېږي ، دا بیت داسې دی :

تر پنجا وشسته تېر شوې      تر لا ځان بولې پسر

او په دې متن کې هم همدا بیت د اصل په توګه راغلی دی.

د بیتي خرابۍ د سمې له مخې دا وخت د ده عمر ۷۶ کلو ته رسېږي او تر شپېته
کلنۍ تېرېدل شپږ او یا کلنۍ ته رسېدل نه مقید وي نو ځکه د بیتي خرابۍ بنا
بیا هم سم او په ځای ده.

## استوګنه ، زده کړه ، او سفرونه :

موږ ځکه ووېل چې رحمان بابا پېښور ته ورنږدې په بهادر کلي کې زېږېدلی دی.
راورټي لیکي چې دی د پېښور د مومندو د تپې په هزارخاني نومي کلي کې اوسېده[۳۱]
دا چې رحمان بابا په هزارخاني کې اوسېدلی له نورو روایاتو څخه هم ښکاري خو دا چې دی
په څه علت له بهادر کلي څخه هزارخاني ته تللی د څېړلو وړ ده.

لوی استاد پوهاند حبیبي په دې برخه کې کاږي : "... عبدالرحمن په خپله زمانه
کې یو صوفي مشرب او په عشق کې داسې ډوب شاعر تېر شوی دی چې خپلې فقیرمزاجۍ
او په خپل عشق کې فنا شوی حالت - دی د خپل کلي (نه) هزارخانې ته په تللو او استوګنه
مجبور کړ."[۳۲] په دې توګه وینو چې درونداو محترم استاد د ده د لېږد علت د ده
فقیرمزاجي ګڼي.

د "رحمان بابا" نومي کتاب نامعلوم مؤلف د ده د دې لېږد له پاره لاندې دوه علتونه
ټوږي : "... لکه څنګه چې مشهوره ده رحمان بابا پیدا شوی خو په بهادر کلي کې وځو وروستو

---

(۳۱) - کامل مومند ، دوست محمد ، رحمان بابا ، ۴۶ مخ.
(۳۲) - پښتانه شعراء ، ۱۹۲ مخ.

دځينو وجوهاتو له کبله يې خپل کلي پرېښود او هزارخوانۍ (؟) ته راغی. په دې وجوهاتو د وه خبرې زما په خيال قياس ته ډېرې نږدې دي : يوه داچې د ده په هزارخوانۍ کې د برخواخوږې خپل خپلوان لرل د هغوی کشش دی هلته بوتله او دويمه داچې دی دعلم حاصلولو دپاره هزارخوانۍ ته راغلی وي او بيا دهمدې ځای شوی وي ، بلکه دادواړه قياسه يو ځای کولی هم شو چې دعلم دتحصيل له پاره هزارخوانۍ ته راغلی وي . دلته يې خپل خپلوان وي . استوګنه يې دهغوی کره وي . وروسته يې واده هم دلته کړی وي او بيا دهمدې ځای شوی وي .(۳۳)

ښاغلی اثر له بهادرکلي نه هزارخانۍ ته درحمان بابالېږد بدل دقبايلي ولېش(۳٤) له مخې بولي او وايي چې ددې ولېش په سلسله کې ددوی کور هزارخانۍ ته راغی(۳۵) داتکل ځکه سم نه برېښي چې که رحمان بابا د "ولېش" دوران ته لوېدلی وای نو بايد لس دوولس کاله وروسته په هزارخانۍ کې هم نه وای پاتې شوی او کومې بلې سيمې ته لېږدول شوی وای ، سره له دې چې دده ټول ژوند په هزارخانۍ کې تېر شوی او هم هورې مړاو خښ شوی دی .

زما عقيده داده چې ښايي درحمان بابا د کورنۍ اصلي ځای هزارخانۍ وي او په موقتي ډول بهادرکلي ته تللی وي چې داوخت دی هم هورې زېږېدلی او دماشومتوب دوره يې تېره کړې وي . ددې يو دليل دادی چې پښتانه خپل مړي په خپله اديره کې خښوي . نو که ددوی اصلي ځای بهادرکلی وای حتماً به يې دده مړی بېرته بهادرکلي ته وړی وُ ، سره له دې چې دده مړستون (قبر) په هزارخانه کې دی او هم دومندو

(۳۳) رحمان بابا ، محکمهٔ نشر واشاعت ، ۱۷ مخ .
(۳٤) د ولېش قوانين دپښتنولوی مفکر او مقنن شېخ ملي جوړ او په خپل دفتر کې يې وکښل ددې ولېش له مخې به په هرو لسو دوولسو کلو کې دپښتنو دټبرو - ټبرو کورنيو ترمنځ ځمکه اوکورونه سره بدلېدل او دبالغانو په سر به وېش کېده . شېخ آدم ملي په قام يوسفزی او خيل قام ملي مشر وُ چې د ۸۳۰ هـ.ق کال په حدودو کې يې ژوند کاوه (دتفصيل له پاره وګورئ : دپښتنو ادبياتو تاريخ (دوهم ټوک) ، داستاد حبيبي تاليف له ۲۳۵ تر ۲٤۲ مخ پورې) .
(۳۵) رحمان بابا شاعر انسانيت ، سريزه ، ۱۷ مخ .

د ویزي په هزارخانه کې استوګن سنکاري څکه چې رحمان بابا تر ژوند څو کاله را وروسته د احمدشاه بابا په دوره کې یو بل دویزي مومند چې رکن الدین نومېږي اوشاعر دی هم په هزارخانه کې مېشته و ، دی وایي :

که ظاهر لیده ساکن هزارخانه کې | زړه مې خاص دی ستا دربار په دربانخانه کې
په نسب کې دیوزي یا مهمند ی یم | ستا ... ددربندي یم (۳۶)

رحمان بابا د استوګنځي په باب که حقیقت هر څه وي خو دا منلې خبره ده چې دی په بهادرکلي کې زېږېدلی ، په هزارخانه کې استېدلی او هم هلته مړشوی او خښ شوی دی اوس رحمان بابا زده کړې او د علومو تحصیل ته رسېږو ، پټه خزانه دده د زده کړې په باب کاږي :

" رحمان بابا له ملامحمد یوسف یوسفزي څخه لوست وکا او له هغه څخه یې فقه او تصوف زده کړل ، بیا ولاړ کوهات ته ، هلته یې هم سبقونه ولوستل او بنه عالم شو . په ځوانۍ یې دنیا پرېښوده او اکثر به په غرو ګرځېدی او کله به ولاړ دهندوستان پرخوا او د خدای عبادت به یې کاوه د دنیا په کار و به نه مشغول کېدی ، عبدالرحمان بابا یو عالم رباني او عابد سړی و ." (۳۷)

ښاغلی عبدالحلیم اثر یې له دې چې خپلې وینا له پاره کوم تاریخي سند ملاتړ وښیي ، دده د زده کړې په باب تردې زیات معلومات وړاندې کوي او لیکي چې : رحمان بابا تر زېږېدو اووه کاله وروسته په ۱۰۴۵ هـ.ق. کال په بهادرکلي کې له مولینا عبدالحق څخه قرآن مجید او لومړني دیني علوم زده کړل ، په ۱۰۵۲ هـ.ق. کال یې له مولینا محمد یوسف د مولینا محمد یعقوب یوسفزي له زوی څخه د پېښور په سلطان پوره کې

---

(۳۶) شاهنامهٔ احمدشاه ابدالی ، پښتو اکېډمي ، پېښور ، ۱۹۶۵ ع . ضمیمه برخه ، ۲۰۸ مخ .
(۳۷) پټه خزانه ، عکسي چاپ - ۱۳۵۴ ش . د پښتو د پرمختیا او پیاوړتیا آمریت ، ۴۴ - ۴۵ مخونه .

زده کړه وکړه، بیا حضرت محمد صدیق پېښوري ته کوهاټ ته ورغی. څرنګه چې محمد صدیق پېښوري د پښتو لوی شاعر و، نو دا وخت رحمان بابا ته له ده نه د فیض موندلو موقع لاس ته ورغله، هم دا وخت یې د شعر او شاعرۍ دوره پیل شوه، د خپل استاد په غزلونو یې د ځواب غزلونه جوړ کړل چې لمونځ یې په دیوان کې شته.(۳۸)

په ۱۰۶۱ هـ.ق. کال کې بیا د کوهاټ په شېرکوټ کې د اخوند محمد یوسف سره و، په ۱۰۶۶ هـ.ق کال په پاس شېرکوټ کې و. په همدې کال یې د اخوند درویزه له زوی اخوند کریمداد سره وکتل او حاجي بهادر کوهاټي چې د اخوند کریمداد مخلص و د رحمان بابا استاد او طریقې لارښود و. دی دوه کاله په پېښور کې د اخوند کریمداد په حضور کې و او د کبرویه سلسلې بیعت یې ترې وکړ او د شعر او ادب په دې خاص مکتب کې ورزل شو.(۳۹)

داسې، د کار او د رحمان بابا د علمي او ادبي زده کړې په باب، په زړه پورې معلومات دي خو کاش چې سناغلی اثر خپل سند ښودلی وای، ځکه په داسې زړو زمانو د کلو نو او نېټو ښودل او په داسې قاطعیت د پښتو بیانول د تاریخي خبرو په برخه کې د ټینګ سند ترښودلو پورې هیڅ اعتبار نه لري، تاریخي پېښې او نېټې په قاطعیت سره راوړل دا ټکل او اندکار نه دی دا کار پوخ سند او لاسوند غواړي. نو که د سناغلي اثر دا معلومات رښتینې وای او غوښتی یې چې خوک یې ورسره ومني سنا یې د خپلو خبرو ملاتړ یې په ټینګو سندونو کړی وای؛ خو څرنګه چې سند نه لري نو موږ د یې څرانې د باوري سند په درلودلو سره دا یې سنده خبرې نشو منلای.

---

(۳۸)- رحمان بابا شاعر انسانیت، داثر سریزه ۱۳-۱۴ مخونه
(۳۹)- هم دا اثر، ۱۵-۱۷ مخونه

مخکې مو وویل چې پټې خزانې د محمد رسول کلاتوال د کشنې له مخې د ده د زېږېدو کال ۱۰۴۲ ه.ق. سنوړلی او بل داسې سند نه لرو چې دا سند غلط وباسي نو ځکه د اثر صاحب دا خبره چې تذکره لیکونکي د ده د زېږېدو کال ۱۰۴۰ ه.ق بولي او د ده دا خبره چې زما د معلوماتو له مخې رحمان بابا په ۱۰۳۸ ه.ق کال زېږېدلی د منلو وړ نه ده نو د ده دا خبره هم د منلو وړ نه ده چې رحمان بابا په ۱۰۴۵ ه.ق کال په زده کړه پیل کړی وي ځکه چې دی دا وخت درې کلن ؤ او په درې کلنۍ کې څوک ماشوم هم په منظمه زده کړه پیل نشي کولای. په همدې ډول یې نور کلونه هم رد ولي.

پاتې شوه له محمد صدیق پېښوري تخمه د ده د ادبي زده کړې موضوع، موږ په پښتو تذکرو کې د صدیق په نامه یو شاعر لرو چې د بشپړ دیوان پته یې لا تراوسه نشته خو د وینا وو لمونې یې له دوو لارو موږ ته رارسیدلې. لومړی د چمن بې نظیر په خطي نسخه کې (۴۰) د ده دا وولسو غزلونو موجودیت دی چې یا درې هیوز په کلید افغاني (۴۱) کې دوې غزلې ترې راخیستې او بیا دا غزلې لوی استاد پوهاند عبدالحی حبیبي په لومړی ټوک پښتانه شعرا (۴۲) کې راوړې دي. او بل د ملا سنا بیسه خان په جونګ کې (۴۳) د ده یوه غزل او یو بیت دي چې ما په ادبي ستوري (۴۴) کې ترې راخیستې. دا شاعر لوی استاد پوهاند حبیبي په متوسطه طبقه شعراو کې د رحمان بابا له پیروانو څخه بولي (۴۵)

---

(۴۰) چمن بې نظیر د پښتو شعر یو انتخابي اثر دی چې د پښتو د ۲۹ نوموړو او نا متو شاعرانو شعر ونه پکې راغلي او په الفبايي ډول ترتیب شوي دي. (د برتانوي تا یوګانو په کتابتونو کې د پښتو قلمي نسخو کتلاک، د بلو مهارت او ډاکټر مکینزي تالیف، لندن ۱۹۶۵ ع. – دا اثر ګران ملګری ښاغلي عنایت الله مرادي راته تر لاسه کړ چې په دې وسیله مننه ترې کوم.)

(۴۱) کلید افغاني د پښتو د نثر او نظم اولیکو مجموعه ده چې یا درې هیوز ټوله کړې ده او ومغه نسخه یې چې په ۱۸۷۲ ع. کال خپره شوې ۴۱۸ مخونه لري (د پښتو نخوانۍ تذکرې، حبیب الله رفیع، د افغانستان اکاډمي، د تاریخ او ادب ټولنه، ۱۳۵۰ ش، ۶۸-۶۹ مخونه).

(۴۲) وګورئ پښتانه شعراء، لومړی ټوک ۳۰۸-۳۰۹ مخونه.

(۴۳) د ملا سنا بیسه خان جونګ د دوولسمې پېړۍ په وروستیو برخو کې راغونډ شوی او یوه نسخه یې د لیکوال په کتابتون کې ده.

(۴۴) وګورئ: ادبي ستوري، لومړی ټوک، حبیب الله رفیع، پښتو ټولنه، ۱۳۵۳ - ۲۴۷-۲۴۹ مخونه.

(۴۵) پښتانه شعراء ۱ / ۳۰۸

او اغلب گمان دا دی چې تر رحمان بابا کښې او ددوولسمې پېړۍ په دوهمه نیمایي کې به یې ژوند کړی وي . که له محمد صدیق پېښوري څخه د ښاغلي اثر محمد صدیق مراد وي دا سړی خوځاهراً تر رحمان بابا را وروسته دی او که بل سړی وای نو ښاغلي اثر دده په باب مستند معلومات وړاندې کړي وای ، هغه ځای یې ښودلی وای چې دده دیوان پکې ساتل کېږي او هغه اثر نومړي اخیستی وای چې دده په باب معلومات لري ، همدارنګه دصدیق په نامه نور شاعران هم تر ده را وروسته دي* ، درحمان بابا کوم غزلونه او بیتونه چې اثر صاحب دمحمد صدیق پېښوري دغزلونو او بیتونو په پیروۍ بللي کېدای شي چې دده له خوا دسند دنه ښودلو تر وخته پورې دا غزلونه او بیتونه درحمان بابا دغزلونو او بیتونو په پیروۍ وبولو او صدیق درحمان بابا شاګرد وګڼو نه رحمان بابا دده !

همدارنګه له اخوند کریمداد درویزه يي او حاجي ظهادر کوهاټي څخه دده علمي او ادبي زده کړه دکوم سند له خوا نه تأیید یږي او خصوصاً دده په دیوان کې داسې اشارې او دلایل شته چې دی دفکر او شعر له مخې درویزه یانو پیرو ؤ او درویزه یان په هغه روښانه لاره یې یون کاوه چې درویزه یان یې کلک مخالف وو او ددې لارې په وړاندې یې ټول ژوند صرف کړی ؤ . (٤٦)

په هر حال ، دېتې خرابې صراحت او دده دځپلو ویناؤ شهادت څرګندوي چې رحمان بابا دوخت دودې علوم لوستي ووا ودعلم تر بشپړتابه وروسته یې باطني تزکیې او تصوف ته لاس اوږد کړی ؤ او په ښه پوهه او بصارت یې مسایل څېړلای او تحلیلولای شوای . ده ښه علمي او ادبي مطالعه درلوده ، دیني مسألې یې په شعر ولوکې ځای په ځای بیان

---

* دګوری هیوادمل ، زلمی : فرهنګ زبان وادبیات پښتو ، دص ردیف .

(٤٦) په دې موضوع ما په "رحمان بابا - دپښتو ژبې عالمګیر" نومې اثر کې داسنا دو په رڼاکې بشپړ بحث کړی چې ژر به دا رب دعلاقمندانو خدمت ته وړاندې شي .

شوي چې په دیني علومو کې دده د سنو معلوماتو څرګند وي کوي او هم دده په شعر ونو کې دارزاني، میرزا، دولت او خوشال خان یادونه سبیي چې ده د دې شاعرانو دېوانونه لوستي وو او دده په ادبي پیاوړتیا کې د دې شاعرانو د شعر ډېر وند اغیز و، همدارنګه ده د دري شاعرانو دېوانونه هم په ژوره توګه کتلي وو او ځای په ځای یې د دوی له وینا وُ څخه لفظي او معنوي اخیستني کړي او د دېوان په هغو دوو نسخو کې یې چې له ما سره شته د حکیم سنایي غزنوي نوم صراحتاً اخیستی او ویلي یې دي:

په پښتو کې رحمان وو ې

په فارسي کې سنایي

دده ادبي لټون دومره پیاوړی وُ چې د پښتو او دري د هغو شاعرانو شعرونه یې هم لوستي وو چې له ده سره یې د ژوند وخت لږ واټن درلود د لمونې په توګه میرزا عبدالقادر بېدل چې په ۱۰۵٤ ه.ق. کال[٤٧] یعني تر ده وروسته زېږېدلی یو بیت لري

هرکه پا کج مینگذارد خون دل ما میخوریم　　　شیشهٔ ناموس عالم در بغل داریم ما[٤٨]

او رحمان بابا وایي:

که سپینه د نام و ننګ دې شي تر څنګه　　　دا چا په کجروی به خپل ځیګر خوري

نوکه په دې بیتونو کې د تواردله موضوع نه ستر ګې پټې کړو یقیناً رحمان بابا تر د بېدل پورتنی بیت وررسېدلی دی.

د رحمان بابا د سفر او چیرته تګ په باب پښته خزانه وایي: "... په ځوانۍ یې دنیا پرېښوده او اکثر به په غزو ګرځېدی او کله به ولاړ د هندوستان پر خوا ..." خو ښاغلي کامل مومند داوینا د رحمان بابا د ځینې بیتونو له مخې سمه نه بولي او وایي چې دی

(٤٧) احوال و آثار میرزا عبدالقادر بېدل، دکتور عبدالغني - د میر محمد آصف انصاري ژباړه، کابل پوهنتون - د ادبیاتو پوهنځی، ۱۳۵۱ هـ.ش، ۹ مخ

(٤٨) کلیات میرزا عبدالقادر بېدل. توک

چېرته نه دی خوږ پډلی . په دې برخه کې په څو لو ږو بیتو سرېږه د ابېتونه راوړو :

هم په دا چې نه له ځایه چېرته خوځم نه د هیڅ یوه مخلوق یم منت بار
نه مې ښکته ملک لیدلی دی نه پورته خبر نه یم په یمین او په یسار
آب و خور لکه آسیا په ځای رارسي په خپل کور کې مې سکون دی هم رفتار[49]

په بر سېره نظر به د دې بیتونو په رڼا کې دیتې خرالې وبینا ناسمه وبولو خو له لږ غوره نه ور وسته که وواییو څرنګه چې د دې بیتونو د ویلو نېټه نه ده څرګنده نو ښایي هغه تول بیتونه به چې ښاغلي کامل راوړي رحمان بابا تر خپل سیر او سیاحت وړاندې ویلي وي ځکه موږ ته ثابته ده چې د ه شاعري له زلمیتوب څخه پیل کړې او د یوه شاعر په دیوان کې یو د بل ما تو ونکي شعرونه له همدې کبله موندل کېږي چې یو شعر یې د تروند دیوه وخت او بل یې د بل وخت وي . او که په دې پسې د رحمان بابا دا بیتونه هم ولولو چې :

روښنایي مې په طلب کې شوه حاصله شپه او ورځ لکه آفتاب په لار روان یم
چې صفت د تورو زلفو داشنا کړم پلې سر په لو یه لار د هندوستان یم
داشنا زلفې مې وینوی په لاس کې بند په لار د هندوستان ولیدی دریغ

* * * *

نو نه یوازې د ده "سکون" ماتوي بلکه صراحتاً د هندوستان دسفر یادونه کوي او ثابتوي چې دی هندوستان ته تللی دی . او که تر دې وروسته دابیت هم وګورو :

ستا په زلفو په رخسار پسې رحمان شو په وطن مسافر د هندوستان د خراسان دی زما روح

نو نه یوازې دا ترې زباد برېږي چې دی هندوستان ته تللی و ، دا هم ثابتوي چې دی خراسان ته هم راغلی و ؛ ځکه چې پښتنو د لرغوني خراسان په ساحه کې نه و او دا بل بیت که

---

(۴۹) رحمان بابا ۱۷ مخ .

دده وي[50] چې پرې ورزيات کړو :

چې مېوې يې دکابل خوږې نه وي          دهغوله غمه ځکې شي ګور ګورې

دا اتکل هم په لاس راکوي چې دی کابل ته هم راغلی او دلته يې دومره وخت تېر کړی چې دکابل بېلابېلې مېوې يې خوړلې دي ځکه په هغه وخت کې دارتباط دعصري وسايلو د نشتوالي له کبله کابل او پېښور د ېېر سره لرې وو او دکابل مېوې په هغه ځلي کم او کيف چې رحمان بابا يې ستايي پېښور ته نشوې رسېدلی.

په دې باب دده لوړ بېلتونه هم شته چې دده له کوره وتل او په غرو کې اوسېدل څرګندوي .

عاشقي سرې مجنون کاندي رحمانه

ګنه څوک په هوښياره وزي له کوره

* * *

که ليلی غواړې بايد ، دي دا رحمانه

چې مجنون غوندې ساکن دکوه وکاړ شې

## خپلوان ، اولادونه او مالي وضعه :

درحمان بابا يو بيت دی :

نه شي دخانانو دملنګو سره کلی          چېرته عزيزخان چېرته ملنګ عبدالرحمان

له دې بيت نه خلکو افسانې جوړې کړې چا عزيزخان دده ورور ګڼلی ، چا يې نژدې تربور بللی او ځينې بيا وايي چې عزيزخان دی بندي کړی و او څه ...

(50) څرنګه چې دا بيت په لږ تغيير دخوشال خان خټک په ديوان کې هم شته نو ځکه د دې ځای پيدا کېږي چې دا بيت به کاتبانو دده په غزل کې ورزيات کړی او دخوشال بابا له ورته غزلې تخمز به يې راخيستی وي (دې موضوع ته لومړی سناعلي مومند متوجه شوی او په خپل "رحمان بابا" نومې کتاب کې يې کړې ده).

# شپاړسم

خوله بيت نه تر دې زيات صراحت لاس ته نه راځي چې عزيز خان او رحمان بابا د يوه کلي وو هغه د کلي خان او دی يو ملنګ سړی و او په دې بيت کې رحمان بابا د خپلې استغنا له مخې اعلان کړی چې دی د خانانو فرمانبردار نه دی.

د رحمان بابا له نورو بيتونو څخه دا څرګنديږي چې د ده د خپلوانو سلسله پراخه وه ، د يوه کور په ځای په کورونو کې اوسېدل او ده ته ټولو سره راشه درشه درلوده په درد يې دردمن او په خوږ يې خوږمن و ، وايي :

په هر کور کې ږغوران را ته پراته دي　　　لاس مې نه رسي د هيچا په دوا

دده د واده کولو په باب دا بيتونه پوره صراحت لري :

په مجنون باندې قلم راغلی نه دی　　　که حلال يې په مخ ورشي که حرام
حلال عشق دی په رحمان باندې راغلی　　　په حلالو کې مدام وي احترام

د رحمان بابا دا بيتونه د داسې وخت دي چې دده مينه بريالۍ شوې او شرعي واده يې کړی دی.

تر دې وروسته نو بيا د اولاد په غوښتنه کې دا شرطونه دي.

خدای له هسې زنګ زوزاده امان راکړه　　　چې بې دين ، بې ديانت شي ، بې لمانځه

يو وخت يې چې اولاد موندلی ، ورونه او خپلوان يې مطالعه کړي نو خپلې مطالعې نتيجه يې په خپل يوه بيت کې داسې ځای کړې ده :

که مې ورور، که مې عزيز، که مې فرزند دی　　　واړه غواړي خپله - خپله مدعا

د رحمان بابا د ديوان په داخلي شهادت برسېره ځينې مؤرخين هم دده د اولاد په باب روايتونه لري له دې نه يو هم انګليسي ختيځ پوه ميجر راورټي دی او وايي چې د رحمان بابا د لور له طرفه د هغه اولاد اوس هم د مومندو په بهادر کلي کې اوسي خو د هغه د يکې يو زوی

اولاد د بره موده وشو چې ختم دي.(۵۱)

د رحمان بابا د نورو خپلوانو په سلسله کې "حمید ګل" نومي شاعر دارمستتر دده خوریې بولي او د "پښتو نخوا د شعر هار و بهار" کې یې دده یوه غزله راخیستې ده(۵۲)

د رحمان بابا د مالي وضعې په باب هم دده په خپل دیوان کې داخلي شها دتونه شته دي په خپلو یارکو کې له ناداری او تش لاسی څخه سر تکوي ، د ناړ و غانو د دړملي پسې نه لري او درهم او دینار مالك نه دی :

| | |
|---|---|
| په هر کور کې ځوران راته پراته دي | لاس مې نه رسي د هغو پسې په دوا |
| د دنیا خبر بې واره په دنیا شي | ما به څه کا څوك ، چې نه لرم دنیا |

* * *

| | |
|---|---|
| څوك دې پار کانده بې قسم په کردګار | که درم لرم په کورکې یا دینار |

خو بیا هم څرګنده چې چاته یې لاس اوږد نه و ، ګوزاره یې کېده او ځای په ځای خواره ورهسېدل نو ځکه خلکو فکر کاوه چې دنیا دار دی :

| | |
|---|---|
| نه درم او دینار نه لرم په کورکې | ولې نوعالم مې بولي دنیا دار |
| هم په دا چې نه له ځایه چیږیمه خوځم | نه د هیڅ یوه مخلوق یم منت بار |
| نه مې سنګته ملك لیدلی دی نه پوره ته | خبر نه یم په یمین او په یسار |
| آب و خورلکه آسیا په ځای را رسي | په خپل کورکې مې سکون دی هم رفتار |

دده دوینا په رڼاکې دا ښکاره کولای شو چې رحمان بابا هم لکه د نورو پښتنو غونډې دومره ځمکه درلوده چې د هغې په حاصل یې ګوزاره کېده له خو محصولات یې دومره نه کېدل چې خرخ کړي یې وای او پیسې یې پرې ترلاسه کړې وای ، دده د ځمکې درلودل د هغې بوللي په ترڅ کې چې د :

هرچې کښت یې په باران او په سیلاب وي
د هغو عمر به واړه په عذاب وي

(۵۱) دیوان عبدالرحمن ، د مولانا عبدالقادر سریزه ، "ت" مخ ؛ رحمان بابا ، کامل مومند ، ۲۸ مخ .
(۵۲) وګورئ : دارمستتر ؛ د پښتونخوا د شعر هار و بهار ، ۱۸۸۸ ع. ، د پاریس سرکاري مطبعه ، پښتو متن او فرانسوي سریزه .

په کسر پیل شوې ، څرګند یږي . د پښتنو په کلیوالي ژوند کې لا تراوسه هم داجنا سوتبادله تر ډېره حده د پیسو د رلودلو ضرورت ترسره کړي، نو ځکه هغه وخت هم د درم او دینار نه درلودل د مفلسۍ او غریبۍ نښه نه وه .

موږ نه د رحمان بابا وینا داهم راښیي چې دی که دنیادار و ، او که نه خو دومره لوړهمت یې درلود چې د دنیا ترلاسه کولو له پاره یې د زر دارو څنګ ته نه پرېښود او په د بر جرأت یې په زرداري او زردارو د وینا وار و نه کول او شعار یې ورکاوه چې :

آدمیت څه په دولت نه دی رحمانه

بت که جوړ شي د سرو زرو نه انسان شه

## سماع ، موسیقي او دمینې پراوونه :

د رحمان بابا د فکري ارخ په څېړلو کې د ده په تصوفي لاره او تصوفي منابعو د پرې خبرې کېدای شي خو دلته د ده د ژوند د یوه ارخ په توګه د ده په سماع ، موسیقي او مینه لنډې خبرې کوو .

د رحمان بابا د تصوف په باب د برې خبرې شوې خو د ده د سماع (۵۳) په برخه کې څه نه دي ویل شوي داځکه چې د ده تصوفي لار د ده له شعر و نو څخه راوزي او د ده د دیوان په خورو نسخو کې داسې کوم شعر نه و چې د رحمان بابا د سماع په برخه کې

---

(۵۳) سماع په تصوفي اصطلاح کې هغه غږ ته ویله کېږي چې داورېدونکي په حالت کې اوښتون راولي . په شرح تعرف کې وایي چې : « یحوانبو به خپل نفس د پر مجاهده او د ومره ریاضت یې وکړ چې وبه و یې بدل له کاره وغورېږي نو د نفس د پیاو ړتیا له پاره به یې څه وغوښتل او دوه بېتونه به یې اورېدل البته د حال سره سم بیت ... خو چې به په وجد راغلل او له ځانه به لې خبره شول او د مستۍ په حال کې به یې ځان نشو اداره کولی او په نخا به راتلل »، (سماع در سلسله هو ، بهین جهان بګلو " مجدد " ، ایران ، ۱۳۵۱ ش .) د مولانا جلال الدین بلخي تصوفي رقص لا تر اوسه هم پېروان لري او په تزکیه کې د کال په ټاکلي وخت کې د مولانا د علاقمندو له خوا ترسره کېږي ، په چشتیه طریقه کې د سماع او موسیقي ستره برخه ده ، چې تفصیل یې د تصوف په باب په لیکلو آثارو کې شته .

## نولسم

لاسوند شوی وای ، په دې برخه کې دده یکې یوازې غزل متعصبینو د پېښور
دده له دیوان څخه غورځولې وه ، خو له نېکه مرغه دده د دېوان په یوه زړه نسخه کې
دا غزل وموندل شو چې په دې چاپ کې هم نیول شوی او په صراحت راښیي چې رحمان بابا
سماع او صوفیانه رقص کاوه د غزلې څو بیتونه دادي :

ساقي راکړه ته وما ته جام درقص
زه ارزو په زړه لرم مدام درقص
ده و به اوس به د خوښۍ ساعت په تماشې
مغني راکړه ته وما پیغام درقص
سر تې پاس تر نه فلکه څرګند بې ی
چې په چاوشي ارشاد اعلام درقص
لیاقت یې هر وګړي څخه نشته
په لا یعوبا ند به وي انعام درقص
خو یې سا په وجود شته عبدالرحمانه
حقیقت به هومره نه کا تمام درقص

د رحمان بابا د موسیقي او خصوصاً د رباب د زړه کرښې په باب تر دې ځواهم خبرې
شوې ، میجر راورټي او عبدالمجید افغاني دواړه مني چې موسیقي د رحمان بابا په ژوند
ژور اغېز درلود ، رحمان حساس او ژوندی زړه درلود او چې د رباب تار به وکړنګېدو
او هغه نه به خوږه نغمه راولېږېده نو د رحمان رګ - رګ به وریېده د رباب ګوتې به
لکه دده د زړه په تار لګېده - دی به اکثر د استغراق په حالت کې وُ ... عجب خان -
وایي چې د رحمان آشنا مجنون په هندوستان کې د بزرګانو د خدمت له کبله د برخې
خاوند شو او چې څه وخت وطن ته رخصتېده نو د خپل پیر مشاه شرف قلندر

نه يې د رحمان د پاره هم څه تحفه وغوښته ـ شاه شرف قلندر په رباب کې د رحمان برخه مقرره کړه او ورا وايي ستولو ـ ولې شرط دې کې دا و چې مجنون به تر مخې رباب نه ګوتې نه وروړي ترڅو چې ته رحمان نه وي لېږلی او رحمان ته دې هغه ګوته ومې کومه چې د شاه شرف له لوري به مقرر شوې وه نو مجنون به مړ شي او رحمان به ژوندی شي هم دغه وشوه . مجنون چې هغه ګوته ووهله نو دی خو په ځای پر پوت مړ شو او رحمان درې ورځې بېهوشه و ، او چې په خود شو نو حال يې بدل و... (۵۴)

همدارنګه ښاغلی جعفر اڅکزی هم په دې برخه کې کاږي :

" وايي چې په رحمان به کله د آمد دوره راغله نو هغوی به خپل رباب په غېږ کې ونه کښېښوی او په تارو به ګوتې پورې کړې ، د تارو څخه به يو پرسوزه سا ز پيدا شو او بيا به يې په خپله خپل اشعار ويل شروع کړل ، پرسوزه آواز او دلکش ساز به په يوه آن کې د عقيدتمند واجتماع جوړه کړه ... " (۵۵) څرنګه چې د دې خبرو له پاره کوم سند نه و نو دا ترا وسه د هغو فولکلوري خبرو له ډلې څخه ګڼل کېږي چې په رحمان بابا پسې کېږي خو اوس د هغه د رقص په غزل کې يو داسې بيت مومو چې د رحمان بابا د موسيقۍ په زده کړه دلالت کوي او ښيي چې ده موسيقي له استاد څخه زده کړې او په فني ډول يې په موسيقۍ کې لاس درلودلی دی ، وايي :

مسقی علم خپل استاد راته تعليم کړ
را ښايي کړ هر تار مقام د رقص

اوس مو چې د رحمان بابا دا غزل تر لاسه شوي نو دده د دې بلې غزلې څو بيتونه يې هم په ملاتړ کې وړاندې کولی شو :

---

(۵۴) ديوان عبدالرحمان ، د مولانا عبدالقادر سريزه ؛ ديوان عبدالرحمان د پروفيسر عبدالحميد سريزه ؛ سوانح عمري د ملاعبدالرحمان ، د عجب خان فولکلوري کيسه ، د لاهور چاپ .

(۵۵) اڅکزی ، محمد جعفر : " وندر" ۱۹۵۹ع . کوټه ، ۱۵۳ مخ .

هر مطرب چې غوږ ي تاو کا د رباب — په دا تاو کې زما زړه کاندې کباب

چې سامع یې په نغمه په ترانه شم — دیوانه شم گریوان څیرې مست خراب

هم یې تار هم یې گفتار هسې اثر کا — چې څوک یې نه طاقت لري نه تاب

تر دې وروسته د رحمان بابا د مینې پړاوونو ته راسېږو ، دی د مجازي مینې په پوړیو د حقیقي مینې د معراج لوړ ته ورختلی ، ځینې کسان دده مینه یوازې حقیقي مینه بولي او له مجازي مینې نه یې منکر دي خو دده په دیوان کې داسې بیتونه مومو چې هېڅ منکر نه شي ویلی چې ده دې مجازي مینه نه وي کړې . موږ دده له یارکونه دا راایستلی شو چې رحمان بابا په ښکلا او ښکلو مین ؤ ، د ژوند ډېره برخه یې د مینې په یادونو او د بېلتون په یادونو کې تېره کړې ده ، کله هجران ځورولی ، کله د وصال ، کله یوه یې مخې ښکاره کړې او کله بل ، کله مینې کلي ورته اور کړي او کله یې په بېدیا کې یې تابه کړی دی ؛ دده د ژوند دا ټولې پېښې دده په شعرونو کې نغښتلې شوې او تر موږ پورې رارسېدلې دي

د رحمان بابا د ژوند ډېره برخه په مجازي مینه کې تېره شوې او د عشق په مدرسه کې یې نې له زلفو ، نې له خطه ، نې له خاله بل څه نه وو لوستي . په مینه کې یې له پېغور څخه عار نه درلود :

زه عار نه لرم په عشق کې له پېغوره — بې پروا یم دستې په خپل لاوره

دده شعرونه ښیي چې ده زیاتې مینې کړې او زیاتو ښکلو یې زړه وړی :

زه رحمان په زړه نرۍ کړم هغو ځوانو

چې یې ملا وي د ولېښته په دود نرۍ ؛

* *

په رحمان د ښایسته ؤ قدر ډېر دی

د طبیب له قدره چا زده یې رنځوره

که مې پېرې که مې پلورې چاره نشته
زه رحمان د ښایسته و خانه زاد یم
* * *
ګوښې ګوښې ښایسته مې زړه وکاږیا
زه وکوم یوه ته وایم چې تا یووړ

او یو وخت داسې هم پرې راغلی چې:

زړه که یوړی ما خو تا لره درکړی
مګر نور ولره نور زړونه پیدا کړم

رحمان بابا مینې داسې پوړۍ ته رسولی و چې د خپل[illegible] زړي له بند نه یې ایستلی و او ویل به یې:

زه عاشق یم سروکار مې دی له عشقه
نه خلیل، نه داوُدزی یم، نه مومند

د ښو خطو مینه د رحمان بابا بله مشغولا وه:

خط دې لوح رخ دې پاڼې د کتاب دي
شغل د کتاب دې بل کتاب راځنه یووړ
* * *
په رخسار چې دې د خط غبار ګرند شو
سر بلنده شوه فرقه د خاکسارانو
* * *
سیاهي د ښوي خط دې حسې زیب کا
لکه کښلي وایه توري د قرآن
* * *
خه شو که زه یم انګشت نما په مینه ستا کې
زیات له ما نه خو ښ ته د قاضي هم د ملايي

ده ته عشق دومره رښتیني وُ چې د سر قرباني یې په دې لاره کې هیڅ بلله:

وهغو ته عاشق نه ویلی بویه،

چې یې فکر یا د سر یا د دستار وي

په هرحال ده د مینه د حسن او ښکلا مینه وه له جنسي او نفسي غرضه پاکه

وه نو ځکه یې په جرأت سره ویل:

پسران دي عار زما له عشقه نه کا

پاک عاشق، پیرا و پلار دي وار ه یودي

* * *

الف او منزه دي عشق نفس له خاصیته

چېرته چاه دګیډې، چېرته چاه د زنخدان

او همدې مینې ده ته داسې استغنا او غرور وربښلی وو چې په لوړه غاړه به یې ویل:

دلبرانو ته خاک تر تلي لا نه دي

د دې نوره جهان په سر لکه آسمان یم

* * *

نوکري د معشوقو کوم په عشق کې

مینې نه د بهلول، نه دا ورنګ خورم

د رحمان بابا په نظر کې د مینې معراج ته رسیدل هسې مرحله ده چې:

که مین یې په خپل یار باندې رښتیا | آواره کړه اول دین پسې دنیا
د جنت له حور و تېر شه که یار غواړې | خدای دې نقد د چا نه کاندې نسیا

* * *

عاشقان د سپین رخسار د تور و زلفو

خریداري د کفر د اسلام

خبره نه ده، خو دومره وايم چې دده دمينې هم پړاو حقيقي او دخدای مينه ده، دا پړاو دده دمينې معراج دی:

رحمان حسن د يار وينم په پرده کې
نه پټيږي نور د شمعې په فانوس

* * *

دا حجاب چې نور عالم يې حجاب بولي
دا زما د يار تر ميانه حجاب نه دی

* * *

که خوک وايي هغه کوم دی؟ وايه دا دی
چې يې خدای په نوره مينه په چا نکه

## ادبي شهرت او مقبوليت:

په ورانديې پاڼوکې مو د پېټي خزانې په استناد وويل چې رحمان بابا په ۱۰۴۲ هـ. ق کال زيږيدلی خو سباغلي اڅ يې چې دکوم سند تر سبودلو پرته د زيږيدو کال ۱۰۳۸ هـ. ق. سبودلی دانظر هم ورکړی چې ده تر څورلس کلنۍ وروسته د محمد صديق پېښوري نه ادبي زده کړه کړې او شعر يې ويلی دی. موږ دا تر خبرې مخکې هم نه وې منلې او دلته يې هم نه منو، خو د رحمان بابا د زړه والي طبعې ته چې گورو يقيناً په څورلس کلنۍ او پنځلس کلنۍ کې به يې د شعر ويل پيل کړي وي لو زموږ په حساب به د ۱۰۵۶ يا ۵۷ - ۵۸ اوان تر ۱۰۶۰ کلو پورې دده د شعر پيلولو وخت وي داوخت په هند او افغانستان کې د شاه جهان گورگاني د واکمنۍ (۱۰۳۷-۱۰۶۷ هـ.ق) دوره ده. د رحمان بابا په ديوان کې داسې بيتونه موندل کېدای شي چې د شاه جهان

د واکمنۍ په دوره کې یې د ویلو وخت واټکلو لکه دا بیت:

د کاملې عقیدې له برکته
د دولهي په غاړه ناست شاه جهان یم

نو په دې اساس تر ۱۰۵۶ هـ.ق. کال وروسته دده شاعرۍ په اټکلي ډول او تر ۱۰۶۷ هـ.ق کال وړاندې په باورۍ توګه پیل شوې ده او که دخان خوشالخان خټک دا بیت:

سل سرېښي دې تر دا یو غزل ځار پنړه
من چې دا ښېنتو ده کړ لالي خوشال ویلي (۵۶)

دده په برخه کې ویلو بیا نو دا هم ویلی شو چې درحمان بابا شاعرۍ تر ۱۱۰۰ هـ. ق کال وړاندې چې دخوشال بابا د مړینې کال دی د ومړه شهرت موندلی وُ چې خوشال خان غوندې قادرالکلام او لې جوړې شاعر یې هم دې تداړکړي وُ چې دده دشعر دا غبږ کمولو له پاره په تعلی لاس پورې کړي او خیل شعر تر ده ښه وبولي.

دخوشال خان خټک خوږ ترلي زوی اشرف خان هجري چې په ۱۱۰۶ هـ.ق کال یې له دنیا نه سترګې پټې کړې دخپل وخت دشاعرانو په ډله کې رحمان بابا ته په دې مقام قایل دی:

خوږ ژبان په ژمانې شکرې نو لی هغه واف چې مستقر لې پېښور دی (۵۷)
درحمان په ویل ځای دلقب نشته چې یې ما شعر منظور کړ معتبر دی (۵۸)

---

(۵۶) کلیات خوشال خان خټک، ۴۶۸ مخ.
(۵۷) واف بلبل.
(۵۸) رحمان بابا، کامل مومند، ۳۴ مخ (دا شعر دهجري له یوې داسې قلمي نسخې څخه راخیستی چې دچاپي نسخې په اصل کې نه دُو)

د رحمان بابا په شعر د اقضاوت د داسې شاعر له خوا شوی چې د خپل شعر په باب داسې نظر لري:

چې یې سحر بولي خوک شعر زما دی | نور د وارو شعر شعر سحر دا دی
---|---
کړ باور دې په دانشي یا خر گوره | زما هر غزل شاهد په دا دعوا دی (۵۹)

پښتانه محققین د رحمان بابا په شعر د هجري د دې قضاوت کولو وخت تر ۱۰۹۲ هـ.ق. کال وړاندې بولي ځکه چې تر دې کال وروسته هجري په هندوستان کې د کورګانیانو له خوا په بېلو- بېلو زندانو کې اچول شوی و. نو ځکه ده دا قضاوت باید داسې وخت کړی وي چې د رحمان بابا د اشعارو زیاتې لمونې ورته رسېدلې وي (۶۰).

له دې خبرې ونه څرګندېږي چې د رحمان بابا شعر تر ۱۱۰۰ هـ.ق. کال وړاندې ښه شهرت موندلی او په ادبي حلقو کې پېژندل شوی او منل شوی و.

همدارنګه تر ۱۱۱۹ هـ.ق کال وړاندې د ده اشعار د دیوان په بڼه په ټولو پښتنو کې خواره شوي او د پښتونخوا ګوټ- ګوټ ته رسېدلي وو او ده د خپل دې ادبي او روحاني شهرت په بدل کې له پښتنو نه د "بابا" اعزازي لقب ترلاسه کړی و. ځکه چې په پورتني کال میرویس نیکه په کندهار کې د خپل ملي غورځنګ د پیل لپاره د ده په دیوان فال اچولی او له ده نه یې په دې الفاظو مشوره غوښتې:

" راسه چې عبدالرحمان بابا قدس سره هم ولیو پښتو، چې د ده دیوان یې خلاص کا هسې شعر ونه وو... " (۶۱)

عبدالقادر خان ختک (۱۰۶۳- ۱۱۲۵ هـ.ق.) چې د ده همځولی دی هم د ده یادونه کوي:

---

(۵۹) دیوان هجري، مرتب همیش خلیل، ۱۹۵۸ ع.، ۵۰۱ مخ.
(۶۰) رحمان بابا، کامل مومند، تر ۳۳ مخ وروسته.
(۶۱) پټه خزانه (عکسي نسخه)، ۴۶ مخ.

زه ختک دیاں په غم تازه - تازه شم
غوریږه خیل رحمان که شو ځنی ستړی[62]

د رحمان بابا په ژوند دده ادبي شهرت دخورېدلو په باب دده په خپل دیوان کې هم ځای په ځای ځینې بېلتونه شته چې ځینې یې سره له دې چې دشاعرانه غرور او تعلی زېږنده دي خو بیا هم دده ادبي شهرت دخورېدلو نمایندګي کوي :

ستا دحسن دتعریف له برکته
د رحمن دشعر کوکې په عالم دي

* * *

چا پېژندم زه چې عاشق نه وم په جهان کې
او س مې ستا له رویه نوم رسوا په دې جهان دي

* * *

خوشالا او دولتا مې غلامان دي
زه رحمان په پښتو ژبه عالمګیر یم

رحمان بابا دومره ادبي شهرت موندلی و چې دیوه ځانګړي ادبي سبک تینګه یې کېښوده او دده په ادبي مکتب کې دپښتو دېرخوږ ژبي شاعران وروزل شول او همدا سبب و چې را وروسته شاعرانو په یوه خوله دده ستاینه وکړه او یوه یو نیم نهېرې تعصب له کبله دده په شعري مقام ستر ګې پټې کړې.

دده په مړینه دده شاګرد یونس خیبري چې په ۱۱۰۰ هـ. ق. کال زېږېدلی یوه له سوزه دکه مرثیه وویله او دده ادبي مقام یې پکې وستایه :

چې پیدا له اشنا یه سره هجران شه        څکه داغ مې په خاطر باندې ارمان شه

---

(62) دیوان عبدالقادرخان ختک ، مرتبه حمیش خلیل ، ۱۹۷۲ع ، ۲۱۶ مخ .

| | |
|---|---|
| انجمن دسنو یارانو نوبهـار دی | جدایـي وربانـدې پېر وکه خزان شه |
| چې په قدر کې دروڼه د دریاب وو | اوس صدف د مغو درو گورستان شه |
| چې په شرق د اشنایۍ لکه لمر وخوت | په مغرب د جدایۍ کې نهـان شه |
| دا چې باد د جدایۍ په جهان گرځي | له هیبته مې صورت بید لرزان شه |
| د سکوت قلف به یې خرنگ لیرې کړي | چې په مرگ یې درون بند کلید زبان شه |
| له رحمانه فیض یاب عبدالرحمان شه | چې له دې سرایه په نوي سرای مهمان شه |
| مرگ سخې دسنو خبرو هسې شوم کا | چې یې یو کلام زړه ته کړي پرې گران شه |
| چې په ملک یې نام د نیکو شهره دی | څه شو دا که په حساب د مردگان شه |
| په پښتو شعر یې هسې نامه یو وړه | چې خبر یې په اشعار ایران توران شه |

پرلذت شعر به څوک کاندې "یونسه!
چې په مرگ ځنې خاموش عبدالرحمان شه"(٦٣)

مصري خان گگیاني د رحمان بابا د عصر یو بل شاعر دی چې دده دخوږه شعر ستاینه داسې کوي:

شعر د فارسي و بیم شېرین لکه شکره
شعر د پښتو کړ تر فارسه حمید رحمان لذیذ(٦٤)

معزالله مومند هم چې د رحمان بابا د پېړۍ شاعر دی د رحمان بابا د ادبي قدرت او قوت ستاینه په دې تکو کې کوي:

د تمامې پښتونخواله شـاعرانو
معزالله عبدالرحمن دی منتخب

---

(٦٣) دیونس خیبري دیوان، د جمهوري ارگ د کتابتون نسخه، ددې غزلې نقل ښاغلي خیبرندوي عبدالله خدمتگار راسیارلی چې په دې وسیله مننه ترې کوم.

(٦٤) د مصري خان گگیاني دیوان، د پېښور پښتو اکېډمۍ، ١٩ مخ

* * *

که دشعر کرامت دچا نه غواړې

معز الله د رحمان شعر کرامت دی (۶۵)

کاظم خان شیدا چې د رحمان بابا تر مړینې وروسته زیږېدلی او د پښتو

د بڼ خوږ ژبی شاعر دی د رحمان بابا دغزلو پیروي کوي :

د رحمان په دا مصرع د شیدا ژړه دی

"ته پري يې، که آهو يې، که جادو کړې" (۶۶)

او هم په خپل یوه بل بیت کې دی او حمید بابا د دوو مومندو په نامه د سنو اذلي

حکیمانو په توګه پېژني :

په دې وخت کې که شیدا دواړه همندوې

ثنا خوان به وو هر دم ستا د و يلو (۶۷)

نجیب چې د رحمان بابا دادني مکتب شاګرد دی ځای په ځای د رحمان بابا د

شعرونو په اقتفا او پیروي شعرونه وايي او دده په باب عقیده لري :

د شعراو سرحلقه عبد الرحمان دی

زه نجیب د ده د شعر دامنګیر یم

چې يې شعر لا مثل دی باندې سنايي

که رحمان وايي په شعر عالمګیر یم (۶۸)

د پښتو خوږ ژبی بیدل چې د پښتنو شاعرانو د یاد ونې په لړ کې رحمان بابا

---

(۶۵) دیوان معز الله خان مومند ، دخیال بخاري ترتیب او تدوین ، ۱۹۵۸ ع. پښتو اکیډمۍ ، ۱۶ ، ۱۰۰ مخونه.
دیوان معز الله خان مومند ، د همیش خلیل ترتیب او تدوین ، ۱۹۶۱ ع. دار التصنیف ، ۲۶ ، ۱۳۹ مخونه

(۶۶) دیوان کاظم خان شیدا ، د همیش خلیل ترتیب او تدوین ، ۱۹۶۵ ع ، ۱۴۲ مخ. دا بیت د کابل په چاپ کې نشته.

(۶۷) د کاظم شیدا دیوان ، د استاد بېنوا ترتیب او تدوین ، ۱۳۳۱ ش ، پښتو ټولنه ، ۵۲ مخ. دیوان
کاظم خان شیدا ، د همیش خلیل ترتیب ، ۵۲ مخ.

(۶۸) دیوان نجیب ، ۱۵۱ مخ.

ته رارسېږي نو د سلطان الشعراء لقب ورکوي او وايي:

چې مشهوريږي په پښتو ژبه ديوان دی | شعراؤ کې هغه عبدالرحمان دی
قال وحال يې سره سم زيات وکم نه دي | مسلم ځکه د هر دانا نادان دی
په سلطان الشعراء دی ملقب دی | چې يې بيت مصرع په هر ځای کې برهان دی [69]

عبدالعظيم رانيزی دده د پېړۍ بل شاعر دی چې د درناوی سره داسې ورته تليتوي:

د مهمند عبدالرحمان صاحب په مثل | هسې خوږ ژبان زما وی دريغه دريغه
زه عظيم به خاص غلام ددې مهمند وم | اوس ژوندی که په دنيا وی دريغه دريغه [70]

ددې عصر په شاعرانو کې يوازينی شاعر چې له رحمان بابا سره يې د مومندو او ختکو تعصب کړی لوا ختک دی او ښايي چې د هغې شاعرانه غورکسات اخلي چې رحمان بابا د خان خوشالخان ختک په برخه کې کړی، نو ځکه وايي:

چې په غوږ کا څوک گوهر زما د نظم | د رحمان ديوان به وملږی په جيب
برابر مې کړه غزل دده له شعره | چې د ووزی له خاطره شک او ريب

* * *

په لحد کې به توبه کاندې له شعره
دا غزل که مې څوک ولولي رحمان ته [71]

د پښتو خوږ ژبی او د ځانگړی ادبي مکتب د رلودونکی شاعر پير محمد کاکړ چې په هم عصر وکې ترخيل شعر لوړ نه وينې، د رحمان بابا شعر معجز گڼي او وايي:

که هر څو وايي نازک شاعران شعر | ولې دوی گڼي معجز د رحمان شعر

---

(69) ديوان بيدل، د همېش خليل ترتيب او تدوين، ۱۹۵۷ع.، ۲۱۲مخ.
(70) ديوان عظيم، ۱۳۳۳ ق.، لاهور، ۶۳مخ.
(71) ورکه خزانه (لومړی ټوک)، همېش خليل، ۱۹۶۰ع.، ۳، ۵ مخونه (د نوا ختک برخه).

سوز گداز د محبت یې هګر زیات و | چې سوزان یې هسې شان کړ بیان شعر
جوړ په شعر کې رحمان غیب اللسان دی | په داخبر نشته هرګز د انسان شعر
ترمصرع یې ځار شه لارم د ملغلرو | په خه تار یې آوبخته کړ یکسان شعر
هیڅ ترشعره د رحمان به ډېر کم ندوي | ومنصف ته د ختک خوشحال خان شعر (۷۲)

رحمت داوی د دولسمې پېړۍ داواخر و یو بل شاعر دی چې په کشمیر کې هستېده او د رحمان بابا ترشعر داسې قربانېده :

هر څوک شعر کا هم لاف د شاعرۍ کا
زه قربان ترشیرین شعر د مهمند (۷۳)

شمس الدین کاکړ چې د پیر محمد کاکړ د ادبي مکتب پیرو دی، دخپل استاد په پیروۍ د رحمان بابا په باب وایي :

که څوک ونیسي په لاس میزان د شعر | په عروض کا سنجیده بیان د شعر
وبه نه رسي په شعر له رحمانه | که هر څو کوي هوس افغان د شعر
په تحقیق سره رښتیا لسان الغیب دی | لیاقت یې دړلوده لسان د شعر (۷٤)

میرزا حنان بارکزی د رحمان بابا شعر یو تر بل سره ګني او وایي :

بل رحمان سر بندی د پښتونو دی | په پښتو یې غزل ره دی یو تر بل (۷۵)

عبدالله پوپلزی یو بل کندهاری شاعر دی چې د رحمان بابا شعر معجزه بولي او وایي :

د رحمان له شعره بوی د معجزې ځي
مرید زر کاندې له پیره برابر (۷٦)

---

(۷۲) د پیر محمد کاکړ دیوان، د استاد بېنوا ترتیب او تدوین، ۱۳۲۵، پښتو ټولنه، ٤۲ مخ.
(۷۳) ورکه خزانه، لومړی ټوک، ۱۵۳ مخ.
(۷٤) د شمس الدین کاکړ دیوان، پښتو ټولنه، ۱۳۳۳ ش.، ٤۱ مخ.
(۷۵) د حنان بارکزی دیوان، پښتو ټولنه، ۱۳۳٦ ش.، ٦۳ مخ.
(۷٦) روهي ګلونه، د استاد خادم ټولونه، ۱۳۲٦ ش. پښتو ټولنه، ۱۲۱ مخ.

عبدالغفار هوتک د کلات د سیوري شاعر چې د دیارلسمې پېړۍ په اوایلو کې یې ژوند کاوه د رحمان بابا د ادبي مکتب پیروي کړې او ځان ددهٔ نایب بولي:

پهٔ افغان کې شاعران تر حساب تېر دي
عبدالغفار دی د رحمان شاعر نا یب[77]

درواني پېړۍ دا وایلو شاعر قاضي میر احمد شاه رضواني د رحمان بابا شعرونه له وجد او جذب نه ډک گڼي او وايي:

| | |
|---|---|
| بیا به دوره د شاه عالم په څېر بېنو کې | راښکاره شو په جهان عبدالرحمان |
| موسیقار غوندې یې هسې نغمې وکړې | چې یې یوړې کړمه لوا ور په کل جهان |
| تا به وې چې د شیراز خواجه حافظ دی | چې پیدا شو په اولس کې د افغان |
| که صوفي، که محتسب او که قاضي و | بې له ما نه تول یې گډ کړه په میدان[78] |

په دې سربېره احمدي صاحبزاده[79]، قنبر علي خان اپریدی او قاسم علي خان اپریدی[80] هم د رحمان بابا په پیروي شعرونه وايي او یا دونه یې کوي.

د رحمان بابا شهرت او مقبولیت دومره زیات وُ چې په دېرلس وخت کې یې شعر تول پښتونخوا تسخیر کړه او د "ره وه" لوستي، نیم لوستي او نالوستي تول خلقو یې ځان ته وړجلب او جذب کړه. صوفیانو یې په شعر کې د معنوي دنیا وړانگې ولیدې، سیاستمدارانو او ملي مشرانو د خپلو ملي غورځنگونو په لار وکې د ډیرې کار ترې واخیست. مستانو او مجذوبانو د رباب په تارونو کې د ده نغمې ونغوتې، هر څوک یې په ژبه یوه او هر چا د ده تر تپولو ته ملهم شو، څوک چې لوستي وو

---

(۷۷) د عبدالغفار هوتک قلمي دیوان.
(۷۸) رضمي گلونه، ۱۲۳ مخ.
(۷۹) تېر هېر شاعران، عبدالحلیم اثر، ۱۹۶۳ع. پښتو اکېډمي، ۱۴۲ مخ.
(۸۰) وگورئ د قنبر علي خان دیوان، د پېښور چاپ او د نې تومره مؤلف "رحمان بابا".

دده شعر ونه يې په خپله ولوستل ، دنيمه لوستو له پاره يې دلوستو شوق او ذوق ور وباښه او ډېر داسې کسان پيدا شول چې يوازې د رحمان بابا دشعر دلوستو مينې دتوري او بوري زده کړې ته اړ کړل . چا چې په خپله نه شوې لوستی هغوی هغه کسان لوستلو ته مجبور کړل چې لوستلای يې شول ، او دوی ته يې واورول ؛ مطلب نړاوښځو ټولو ته دده شعر ونه ور ورسېدل او هرچا دخپل زړه هيلې او مرادونه پکې ولټول او پکې وموندل .

دده په ژوند دده ديوان په ټوله پښتونخوا کې خور شو او ډېر ژر د رحمان بابا دلوی ادبي مکتب په وړه دلپښتونخوا ډېر شاعران ورننوتل او له دې منبع څخه يې دشعر سوز او الهام واخيست .

لوی استاد پوهاند عبدالحي حبيبي د رحمان بابا دادبي سبک ښېګړې او ځانګړنې داسې شمېري :

۱ - په دې سبک کې شاعر د روح الهام مني ، دمادې سره يې ډېر سروکار نه دی ، له هغې دنيا څخه خبرې کوي چې له دې خاکي دنيا څخه پرته بله دنيا ده او د معنوي فيوضاتو منبع هم دغه ځای دی .

۲ - په دې سبک کې شاعر له مادي کثافاتو څخه ليرې کېږي او هلته ځي چې صلح کل دی او دې خاورينې نړۍ غوغا او شورماشور پکې نشته ، شاعران يې ددنيا پربدو تنقيد کوي او ځان يې له ګکر وا او کړکېچنو څخه پاکوي .

۳ - په ادا او داحساساتو په تصوير او نورو ښېګړو کې دا سبک خورا سپېڅلی او سليس دی ، ابهام نه لري ، دشعر الفاظ او عبارات ساده او سپېڅلي غوره کوي .

٤ - غزليات ، قصايد ، رباعيات ، تخميس او دشعر نور ټول اقسام په سپېڅلي ډول وايي او ډېر له مينې او اخلاقو څخه رنغېږي .

۵ - د عشق او مينې په دنيا کې هم د واقعيت خواته ځي او د خيال لن تابع کېږي.

۶ - د دې سبک شاعر عشق او الهام د ننوندون مدارګڼي، يقين او ايمان پر عقليت باندې خوښوي.[۸۱]

هو! په دې لاره د ډېر شاعران روان شول او په سوونو وينا والو له رحماني غرنځه الهام واخيست.

د رحمان بابا ادبي لارې مشهور لار ويان دادي:

عبدالرحيم هوتک، احمد شاه بابا، اخوند ګدا، عبدالعظيم سواتی، ميانعيم متي زی ملاجمعه بارکزی، عبدالنبی ببېړی، شېرمحمد هوتک، مطيع الله پيرخېل، - قاسم علي اپريدی، يونس، غفور، صديق، شمس نواز، دالپوری حافظ[۸۲] نيازمحمد، عبيد، نصرت[۸۳]، ابن يمين، بازمحمد بنګښ، عبدالرسول ماشوری عبدالغفار هوتک، عجب، فضل شاه، ګل محمد کاکړ، شيخ نامدار، معزالله خان مومند[۸۴]، عبدالوهاب اخکزی[۸۵] اونور...

په پښتونخوا کې د رحمان بابا شهرت او محبوبيت دومره زيات شو چې د ده شعرونو د خلکو په ورځنيو خبرو کې د متلونو بڼه وموندله او د پاخه سند په توګه استناد ترې وشو.

د پښتنو ديوه لوی روحاني شخصيت سوات صاحب نه روايت کېږي چې ده به ويل: "چې که چېرې د کلام پاک نه علاوه بل کلام کې موږ ته کول روا وي نو ما به يقيناً د رحمان صاحب کلام غوره کړی وُ."[۸۶]

---

(۸۱) پښتانه شعراء ۱/۳۱
(۸۲) د دې کسانو سوانح په لومړي او دوهم ټوک پښتانه شعراء کې ولولئ!
(۸۳) د دې شاعرانو سوانح په لومړي ټوک ادبي ستورې کې ولولئ!
(۸۴) د لندې پېژند ګلوي له پاره يې وګورئ: هيوادمل، زلمی: فرهنګ زبان وادبيات پښتو.
(۸۵) وګورئ: زيري، د ليکوالکي مقاله، د ۱۳۵۶ کال، ۱۳ ګڼه.
(۸۶) تاريخ رياست سوات، محمد آصف خان. ۱۹۵۸ع، ۱۱۱ مخ.

هغه مشاعرې چې لا تر اوسه یې هم دلرې او برې پښتو نخوا شاعران د بابا په مزار کوي دده د محبوبیت او مقبولیت سنه ښکاره ندوي کولای شي او خوږې پښتو او پښتون وی "رحمان" به "بابا" او وینا به یې دنړونو دواوي.

## مړینه او مزار :

پښته خزانه کاږي چې رحمان بابا "په سنه ۱۱۱۸ هجري وفات شو خلق یې تراوسه د پېښور په هدیره کې زیارتونه کا." [87] نو رچا دده د مړینې نېټه نده ضبط کړې خصوصاً د رحمان بابا شاگرد یونس خیبري دده له سوزه د که مرثیه والي خوله بده مرغه د مړینې تاریخ یې نه ښیي.

د رحمان بابا په دیوان کې داسې داخلي شهادتونه شته چې دده ژوند تر دې کال راوروسته هم ثابتوي، په دې شهادتونو کې یو هغه او بد نظم دی چې داورنگزیب مړینه پکې یاده شوې، اورنگزیب د ۱۱۱۸ کال د میاشې په ۲۸ نېټه مړشوی دی خو په دې نظم کې یو بیت دی:

اوس نوبت د شاه عالم دی
دوراو طور یې شو د گر

او څرنگه چې شاه عالم د ۱۱۱۹ هـ.ق په عاشورا خپره کې خپله پاچاهي اعلان کړې نو څکه سنا غلي کامل داپا یکی د ۱۱۱۹ هـ.ق. کال بولي [88] او په دې وسیله دده ژوند تر ۱۱۱۹ هـ.ق کال پورې ثابتېږي. همدا راز د بابا په دیوان کې د گل خان او جمال خان د مړینې په پېښه هم یو نظم شته چې د ا

---

(۸۷) پښته خزانه (عکسي نسخه)، ۴۵ مخ.
(۸۸) رحمان بابا، ۲۲ مخ.

پېښه د رحمان بابا ژوند ښېږ ونکو د راورتې دوېنا له مخې له ۱۱۲۳ ه.ق. کال
سره مربوطه گڼله او د راورتې دوېنا په استناد دې دده ژوند تر دې
کال پورې هم اټکلا وه(۸۹)، خو څرنگه چې راورتې خپل سند نه وُ ښودلی
داسنه اټکلی بلل کېده، او س چې د تاریخ مرصع متن د کامل مومند
په همت خپور شو هلته په صراحت سره ددې پېښې په باب لیکل شوي:
" پسر له فوته داورنگ زیب بادشاه جمال محمند او بعضی ظاهر بین کوته اندیش
ورسره سر په شورش پورته کړی وُ - په محمند کې موسی زی وه او موسی زی
په محمندو کې کمزوري تېره ده - غرض یې دا وه چې په دا شورش کې به د
ما نامه ناموس وشي - اربابي به بیا مومم - په دامیان کې ډېر افراط تفریط ورځه
وشه - هرگاه چې په سن زرسل دوه ولښت صوبه داري د دار الملك
کابل په نامه د ناصرخان شوه - پښاور ته راغی، اربابي یې ورکړه - امادده
ناکردي چې پخوا د ناصرخان ترسرداري یا په صوبداري کې یې د ناصرخان
کړې وې د ناصرخان په خاطر وې په خپلې اربانځه کې یې کلی د عیسی
محمند هم وواهه - په تل یې ختنه وکړه - عیسی محمند په خپل خپل کې زور ورد ی
- جوړه یې د ناصرخان سره وکړه - د مغل په وېرانۍ کې پښتانه خپله مدعاده.
مصرع : بهر طرف که شود کشته سود اسلام است

په دامیان کې د جمال د زوی دواده کار پېښ شه - ناصرخان دوه
زره روپۍ هم په طریق دانعام ورکړې - لوز عیسی په توم د مغل جر یې
ورلېږې کړ - هغه شپه چې یې د زوی واده وُ د لښکره سره ورروان شه.

---

(۸۹) رحمان بابا، د دوست محمد کامل، ۲۷ مخ. رحمان بابا، د مجهول مؤلف، ۱۲ مخ.

په کوړيو ورغی. جمال له دې هسې آفته غافل وُ مخې ته ورووت. تاب يې د جنګ را نه ووړ. زخمي کور ته ننووت. عيسیٰ يې په کوړ اوړ پورې کړ پکې وسه. انتياکسه زښتې ووړکي هلکان د واده هم په هغه کوړکې ور سره وسول د اواقعه په سن زرسل دروېشت وه. خدای دې له دې هسې آفته امان وکا." (۹۰)

مونږ وينو چې د دې پېښې په باب تاريخ مرصع يو باوري او د هغه وخت سند دی چې راوړتی هم يې له دې چې خپل اخځ وښيي له همدې تاريخ نه د دې پېښې کال ښودلی دی. له بله پلوه رحمان بابا دا تراژيدي په خپل يوه نظم کې په ډېر سوز او درد انځوروي:

| | |
|---|---|
| د ډېر ياران وو د ګل خان او جمال خان | په کار نه شو يو په وخت د زاړه ستان |
| دهمه وار و يار الوغ دې تور شي | که به څوک وبله ياري کا په داستان |
| چې يو يار په سوړي پروت وي بل په اور کې | وهغو ته به څوک څه وايي ياران |
| هيڅ تعريف يې په دا ښه وايه نه شي | صد رحمت شه په ياري هم د ګل خان |
| په دا پوره د ياري شرطونه څه وي | چې په اور کې د واړه وسوځي يکسان |
| چې له آله له اولاده سره وسول | خدای دې نه کا څوک د هسې مظلومان |

ترپايه...

څرنګه چې دا د هماغه پېښې انځور دی او د پېښې کال هم ۱۱۲۳ هـ.ق کال دی نو د دې باوري سند له مخې تر ۱۱۲۳ هـ.ق کال پورې د رحمان بابا ژوندی يقيني کېږي خو تر دې وروسته څرګنده نه ده چې تر کوم کال پورې ژوندی و. اوس په دې برخه کې يو بل [illegible] هم رامنځ ته کېږي او هغه دا چې تاريخ مرصع

(۹۰) تاريخ مرصع، افضل خان خټک، ۱۹۷۴ ع.، ۴۰۲ مخ.

او په خزانه دواړه د پښتنو باوري سند ونه دي او په تاريخ مرصع کې د پېښې کال په توره : "سن زرسل درويشت" کښل شوی او هم د تاريخ مرصع تو لې نسخې په دې برخې کې يوه خوله دي ، ځکه د دې کال د باوريتوب په باب د شک ځای نه پاتې کېږي ، خو په پټه خزانه کې د رحمان بابا د مړينې د کال (۱۱۱۸ هـ.ق.) په باب دا اټکل ځای شته ځکه چې هلته دا کال په شمېر (۱۱۱۸) کښل شوی او له بلې خوا د پټې خزانې د تر لاسه شوې نسخې په پای کې کاتب کښلي : "باستعجال تمام قلمی شد" نو د دې اټکل ځای پيدا کېږي چې سنايي د پټې خزانې په بله نسخه کې به داسنه "۱۱۱۸" نه بلکه بل ځاې او هم احياناً "۱۱۲۸" وي چې د دې "استعجال" په سبب به "۲۸" ، "۱۸" کښل شوې وي . او که دا اټکل ومنو نو بيا به د رحمان بابا ژوند تر ۱۱۲۸ هـ.ق. کال پورې راوغزېږي .

په هر حال ، که رحمان بابا د ۱۱۲٤ هـ.ق. کال په شا او خوا کې مړ شوی وي نو ويلای شو چې ده "۸۲" کاله عمر کړی او که تر ۱۱۲۸ کال پورې يې ژوند اټکل کړو نو بيا يې ژوند "۸۶" کلو ته اوږدېږي او دا کوم غير عادي او نا شونی ژوند نه دی .

د رحمان بابا مزار د پېښور ښار تر د برلنډ په هزار خانې کې دی او داخون درويزه په هديره کې خښ دی چې خلک يې زيارت ته ورځي او کال په کال يې د پښتو نستان شاعران په مزار غونډه کوي . د ده قبر پخوا له پخو خښتو روغ ؤ خو په ۱۹۵۸ ع . کال پښتو ټولنې د کابل د مجارې او نجارې په فابريکه کې د مرمر وله د برې تخته جوړه شوې ښکلې او نفيس تعويذ ورواستاوه او دده په قبر کښېنول شو .

رښتيا هم چې : که لظر که ثوک په کار د درويشانو خود به ووينې وقار د درويشانو

هو مره خلق يې زيارت کا پس له مرګه چې بازار وي په مزار د درويشانو

زه رحمان په خپل شعار شکرګو زاریم
چې دا هسې رنګ دیوان مې دی موندلی

# [II]

# د رحمان بابا دیوان

رحمان بابا د دیوان را تولېدلو په باب هم لکه د ده د ژوند پېښو غوندې هر چا بېلې بېلې خبرې کړې او بېل ـ بېل نظرونه پرې وړاندې کړل شوي دي چې مونږ یې دلته بېل ـ بېل څېړو:

## فولکلوري روایت:

زه ډېر کوچنی وم، د رحمان بابا شعرونه مې له خپلې خور څخه (چې په خوند به یې لوستل) اورېدلي وو خو په خپله یې لا د لوستلو نه وم، په همدې وخت کې مې له دې نه دا فولکلوري روایت هم اورېدلی و: " رحمان بابا یو ملنګ شاعر و، له خلکو نه به ګوښه د سیند په غاړه ناست و، شعرونه به یې ویل

او په هغو کودو ړو به يې ليکل چې خپل خټک ته يې راتهول کړي وو ، يو
وخت څوك ورځي اودې يې د شعر په ليکلو بوخت وليد ، رحمان بابا د بس
ټول ليکل شوې کودوړېيې سپند ته واچول ، هغه کودوړېيې چې ترې پاتې
وو هغه سرې سره راټول کړل او د رحمان بابا دا موجوده ديوان يې ترې
جوړ کړ."

دا يو منلې روايت دې چې د رحمان بابا د وينا د عامو علاقمندانو قناعت يې
حاصل او اواوس يې هم مني .

## له فولکلور نه متاثر روايت : د رحمان بابا د ديوان لومړنى سريزه

ليکونکى پروفيسر عبدالمجيد
افغاني د رحمان بابا د ديوان د راتهوليد و په باب ليکي :

"... څه وخت چې مجنون (۹۱) ده ته هغه رباب د طريقهٔ چشتيه وغيرا وه
نو مجنون مرشد او عبدالرحمان دې ورځې سهوسنه پروت وُ چې څه وخت
په هوش راغى نو حالت د ده تبديل وخوړ اوله نيکانو شما رشد او ددې
ورځې نه به ده سرود او ريدلو او آخر پرې د ومره استغراق غالب شه چې
لمونځ ترې نه هم پاتې شه او د پښتنو په اصطلاح د ملا عبدالرحمان نه
يو ملنګ جوړ شه ، وايي چې شپه او ورځ دې وُ او ژړا وه ترهسې چې
يورې چې او سنکو يې په ځ باندې لارې جوړې کړې ، خداى ورلره يو
څو دوستان هم ورکړې وه چې ده به څه ويل هغوى به جمع کول او دا دهغې
يارانو برکت دى چې د عبدالرحمان د زړه قطرې په هره حجره کې په وينو سرې پرتې دي..."

---

(۹۱) مجنون په رحمان بابا پورې د تړل شوې فرضي معشوق نوم دى چې عجب خان يې په آب وتاب
بيانوي او يوه اوږده کيسه ورته توږي (وګورئ : سوانح عمري ملا عبدالرحمان ، د لاهور چاپ).

... بیاهم ددې قابل نه وُ چې خپل اشعار یې جمع کړي وې دوستانو
په جمع کول او دغه د مرګ نه وروسته یې دا دیوان جوړ کړ مګر بیا
هم د عبدالرحمان ډېر اشعار ضایع شوي او اوس هم د دغه په دیوان کې
ډېر اختلاف دی ، ډېرې غزلې دي چې په موجوده دیوان کې نشته مګر
د پښتنو په مجلسونو کې ویلې کېږي ...»(۹۲)

تر ده وړاندې میجر راورټي هم نظر ورکړی وُ چې رحمان بابا به چې شعر ونه
وویل نو دغو نقل به یې خپلو خاصو دوستانو ته واسناوه ، دده دوستانو
به دغه د ځان سره ټولول او ساتل خو دیوبل نه خبر نه وو هراشنا به یې
دا خیال کړو چې دده د مرګ نه پس به دغه یو ځای کړي ، دده دوستانو
هم دغسې وکړه ، دده ځینې نیمګړو دوستانو په دې غرض د رحمان په کلام
کې خپل کلام ګډ کړو چې دا معلومه شي چې له دوی څخه د رحمان د کلام ذخیره
ترنورو زیاته ده ، کلام به د دوی وُ او کسر به یې پرې د رحمان وویلو د دې
نتیجه دا شوه چې دده د دیوان دوه دفترې یا حصې جوړې شوې ، دا ټکي بر ګې
په وخت معلومه شوه ځکه چې د رحمان ځینې دوستان لاژوندي وو او دغه
ویلې اشعار یې پېژندل هم ، دوی بېرته چاڼ کړه او سوچه کلام یې پاتې
شو خو بیاهم په ډېرو نسخو کې اختلاف موجود دی ...(۹۳)

د راورټي دا نظر هم تر ډېره حده په فولکلوري روایاتو ولاړ ښکاري او د کوم
باوري سند له مخې نه ثابتېږي .

## یوه بله رایه :

د رحمان بابا د دیوان غونډولو په باب یوه بله رایه د ارواښاد مولانا عبدالقادر ده:

---

(۹۲) د دیوان عبدالرحمان ، د پروفیسر عبدالمجید په سریزه ، د لاهور چاپ .
(۹۳) د دیوان عبدالرحمان ، د مولانا عبدالقادر سریزه ، "خ" او "د" مخ .

چې دنورو رايو په نتيجه کې يې ورکړې ده ، دی وايي چې : "داستغراق په دوره کې د رحمان کلام د ده دوستانو جمع کړی دی او چې کوم وخت بيا رحمان د دنيا ژوند ته په راګرځيد و مجبور شو او د ده کلام کې د اولس او قوم په خلاق درای زنځه کيفيت پيدا شوی دی - نوشايد ده ته دا خيال پيدا شوی وي چې راشه دا ديوان راغونډکړه دا بعيد از قياس نه ده ، دا هم ضروري نه ده چې شاعر چې څه وايي نو ټول دې هغه د ده د حافظې په کتاب کې موجود وي ، د بر ځله شاعر ته خپل کلام نه وي ياد ولې دوستانو شاګردانو يې يا د لرلی وي ، کېدی شي چې د ترتيب په وخت هغه ټول خلك د ده شا او خوا موجود نه وو او ځکه د ده د بر بې غزلې په ملکو کې خورې وي ، ولې ديوان کې شاملې نه کړې شوې ... "(۹٤)

## مستند نظر :

لوی استاد پوهاند عبدالحي حبيبي (۳٦) کاله پخوا په پښتانه شعراء کې وکښل :

" محققين مورخين دې خبر و ته اهميت نه ورکوي ( د ده د ديوان وروسته ټولول ښيي ) او وايي چې رحمان بابا خپل ديوان په خپل ژوند غونډ او مرتب کړی دی . لېکن دا موجوده ديوان د رحمان ټول اشعار نه دي ځکه چې د رحمان د بر اشعار په دې ديوان کې نسته مګر د پښتنو په خولو کې جاري دي..."(۹۵)

ددې نظر په ملاتړ کې مونږ دوه ډوله ملاتړي شهادتونه لرو : يو په خپله هغه شهادتونه دي چې ځای په ځای د ده په خپل ديوان کې موندل کېږي .

---

(۹٤) ديوان عبدالرحمان ، د مولانا عبدالقادر سريزه ، "د" او "ذ" مخونه .
(۹۵) پښتانه شعرا ، ۱۹٤/۱

او بل هم دهغه وخت د معاصرو متنونو شمار تونه دی .
مونږ د رحمان بابا په دیوان کې داسې بیتونه مومو چې نه یوازې دا ښیي
چې ده خپل دیوان په خپله ټول کړی بلکه دا هم څرګندوي چې ده له خپلو شعرونو
سره ډېره مینه درلوده او په زیاته علاقه یې په عونډولو بوخت وُا ود دیوان
ترجوړېدلو مخکې دهغه بیاض پته هم راکوي چې ده به خپل شعرونه له ویلو سره
سم پکې ثبتول :

هسې زیب کا په بیاض د رحمان شعر
لکه زلفې د خوبانو په رخسار

ده له خوا د خپلو شعرونو د لیکلو په برخه کې دا بیت مخې ته راځي :

د رحمان تر قلم مشک او عنبر اوري
چې آغاز یې کړه اشعار د تورو زلفو

له خپلو شعرونو سره د ده مینه له دې بیتونو څخه ښکاري :

د ګوهر په تله نه دي چا تللي
د رحمان شعر ګوهر دی څه یې تولې

* * *

په غزل کې خو دوه بیته انتخاب وي
د رحمان تمام غزل دی انتخاب

* * *

لکه زه چې سخندان او هنرمند یم
بل به نه وي سخندان او هنرمند

* * *

هم نغمې کاندي هم رقص کا هم خاندي
د رحمان په شعر ترکي د باګرام

او دا بیتونه خو یې د هغه وخت دي چې دې د بشپړ دیوان خاوند و:

یو کتاب په سربن کې چا ونه کړ
لې رحمانه چې یې جوړ کړ و دا کتاب

* * *

د رحمان و سوزان شعر ته حیران یم
چې یې او ربل شوي نه دي په دیوان

* * *

درست دیوان د رحمان زار تر دا غزل شه
چې بیان یې کړ و کردار د زړه روښانو

* * *

زه رحمان په خپل اشعار شکر گوزار یم
چې دا هسې رنگ دیوان مې دی موندلی

د "کتاب جوړول"، "درست دیوان" او "دیوان موندل" په خپله دا دې معنی لري چې ده خپل دیوان په خپل ژوند ترتیب کړی او جوړ کړی دی.

د رحمان بابا په ژوند ده د دیوان د ترتیبېدلو په باب یو بل دلیل دا هم دی چې دی لا ژوندی و چې دیوان یې په ټولو پښتنو کې خور شوی و او پښتنو ده د ده د لوی ادبي قدرت په صله کې د "بابا" درونډ لقب ورکړی و، په ژوند کې یې د ده دیوان د پښتونخوا او د جنوبي افغانستان ټولې سیمې فتحه کړې وې او ده ته په ژوند د ده لقب "بابا" سره د افغانستان لویدیځو سیمو ته ان ترکندهاره پورې رسېدلی، خور شوی او منل شوی و او ورسره ورسره یې رحمان بابا د یوه لوی روحاني شخصیت په توګه خلکو ته وروپېژندلی و، همدا سبب و چې د رحمان بابا ترمړینې څو کاله وروسته ملي مشر میرویس نیکه ده ته د ډېر عقیدت درلودلو

له مخې دده په دېوان پال نېسي او په خپل ملي اقدام کې دده روحاني ملاتړ تر لاسه کوي او دی لومړی ځل ورته وايي :

زه مکتوب غونډې په پټه خوله گو يا يم — خاموشي زما تېرې کا ترغوغا زما
کښېنت دعشق په توده زمکه امان چېرې — سمندر بو يه چې زليست کا په صحرا زما

خو بيا بل ځل داسې مشوره ور کوي :

چې آسمان يې مخ پټ کړی په سحاب ؤ — خدای و ماوته ښکاره کړ هغه لمر بيا
چې رقيب راته ترلی په زنځير ؤ — خپل حبيب راباندې پرانست هغه ور بيا

په وصال يې منت بار اوسه رحمانه
په صدف کې دخل نشته دگوهر بيا[96]

او مېرويس نيکه هم د رحمان بابا مشوره خلکوته ابلاغوي او په خپل ملي غورځنګ په ۱۱۱۹ هـ.ق. کال کې پيل کوي.

په دې سرېېره دوخت دودهم داسې ؤ چې شاعرانو به خپل دېوانونه په خپل ژوند تر تيبول ، مثلاً دخوشال خان خټک هغه دېوان چې دده له مړينې نه يو کال مخکې لیکل شوی ددې خبرې سند ثبوت دی[97] دا چې هر شاعر به هڅه کوله چې د تولو تو ويتو په خپل دېوان کې ولري به خپله ددې سند دی.

اکثرو شاعرانو چې خپل دېوانونه د "يې" تر رديفه رسولي ، بيا يې سره ټول کړي د بوان کړې يې دي او په خلکو کې خواره شوي ، دديوان له ترتيب نه وروسته يې چې کوم غزلونه ويلي هغه بيا دده يا نورو کسانو له خوا په خپل خپل ځای دديوان په ختم او يا هم د وروستيو نسخو په متن کې ورزيات شوي دي .

---

(۹۶) پټه خزانه (عکسي نسخه) ، ۴۶ - ۴۷ مخونه.
(۹۷) دخوشال خان خټک دديوان دا نسخه د پښتو ټولنې په کتابتون کې خوندي ده .

کله چې د رحمان بابا په ژوند د ده د دېوان د ترتیبېدو او راغونډېدو په باب دومره کلک اسناد او دلایل لرو نو بیا په دې کې د هېڅ شک ځای نشي پاتې کېدلای چې ده دې خپل دېوان په خپله نه وي ترتیب کړی.
نو ځکه په نتیجه کې ویلای شو چې رحمان بابا خپل دېوان په خپل ژوند په خپله ترتیب کړی دی.

دا چې ځینې غزلې او بیتونه یې کم او زیات دي او یا یې د دېوان د نسخو ترمنځ زیات توپیرونه دي د دې بېل - بېل عوامل دي یو دا چې ښایي ځینې غزلونه له ده نه د تدوین په وخت کې هېر شوې وي او یا یې نقل په لاس کې نه ؤ، ځینې غزلونه یې ښایي تر تدوین وروسته ویلې وي، ځینې شعرونه یې متعصبینو د دېوان له نسخو څخه غورځولي لکه د "رقص" په ردیف غزل چې په یوازېنۍ نسخه کې راپاتې ده او د نسخو ترمنځ سره توپیرونه خو د "خطاطانو او کاتبانو" خاصه لورېینه (!) ده چې د هر چا او هر تالیف په حق کې یې لري او یوازې د رحمان بابا دېوان یې لمونه نه دی.

یوه بله پوښتنه لا پاتې ده او هغه دا چې د رحمان بابا دېوان ولې په عنعنوي ډول په دوو دفترونو کې راپاتې دی؟

د لته یو اټکل دا سې هم کېدای شي چې ښایي په یوه دفتر کې د رحمان بابا د ژوند د لومړۍ برخې او په بل دفتر کې یې د ژوند د بلې برخې شعرونه تردیف او تدوین شوې وي. نو که دا اټکل ومنو هم د لومړي دفتر شعرونه د ده د ژوند د لومړۍ برخې نه دي ځکه په دې دفتر کې د رحمان بابا هغه نظمونه شته چې د ژوند له وروستۍ برخې سره یې اړه لري لکه د اورنګزیب مرثیه او د ګل خان او جمال خان کیسه، نو عجالتاً د خپل دې اټکل مانځه داسې وړاندې کولای شو چې ښایي رحمان بابا د خپل ژوند د لومړۍ برخې شعرونه په یوه دفتر کې سره ټول کړي

او تردیف کړي او تر هغه وروسته شعرونه یې په بل دفتر کې راغونډ کړي او تدوین کړي وي، څرنګه چې د دوهم برخې شعرونه یې په حمد، نعت او د دنیا په بېوفایۍ پیلېږي نو ځکه دوهم دفتر ترلومړي دفتر وړاندې شوی او یو د بل ځای یې نیولی دی چې دا مو ومنله نو باید دا هم ومنو چې په خلکو کې دده په ژوند باید دده د دیوان دوهم دفتر خور شوی وي او لومړی دفتر یې بیا وروسته خلکو ته رسېدلی وي خو کله چې هغو فالونو ته راورسېږو چې میجر ولیس نیکه د رحمان بابا په ژوند په ۱۱۱۹ هـ.ق. کال کې دده په دیوان اچولي نو بیا زموږ دا تېکل دا مانځي هم وړانږي ځکه هغه د وارې غزلې چې میجر ولیس نیکه فال پرې نیولی دده د دیوان په موجوده لومړي دفتر کې دي او په همدې دفتر کې د ګل خان او جمال خان دیښنې نظم هم شته چې تر دې فال نیونې پنځه کاله وروسته په ۱۱۲۳ هـ.ق. کال ویل شوی دی.

ځکه چې له دې بحث نه هم نتیجه نه تر لاسه کېږي نو دده د دیوان د دوه دفترونه جوړېدل تر اوسه کوم تاریخي اصالت او روایت تر شا نه لري.

سناغلي کامل د دوو دفترونو سره ګډوونکی استاد بېنوا بولي[۹۸]؛ خو دا کار د بېخوا شوی او له ما سره د رحمان بابا د دیوان یوه زړه قلمي او یوه زړه چاپي نسخه شته چې متاسفانه دواړې نیمګړې دي او دلیکلو او چاپ کال نه لري، دا دواړې د یوه دفتر په اساس دي او د دواړو دفترو شعرونه یې سره یو ځای کړي او په یوځلي تردیف کړي دي. همدا راز د بمبئ د ۱۸۸۳ ع. کال چاپ نسخه هم په یو دفتري ډول ده[۹۹] چې سناېي زما نیمګړې چاپي نسخه همدا نسخه وي.

---

(۹۸) رحمان بابا، ۷۰ مخ.
(۹۹) د برتانوي تاپو ګانو په کتابتونو کې د پښتو قلمي نسخو کتلاک، ډاکټر میکنزي، لندن، ۸۵ مخ.

## قلمي نسخې

: څرنګه چې رحمان بابا د پښتنو مِلّي شاعر دی نو ځکه دده د ديوان ډېرې نسخې ليکلې شوې

او خورې شوې دي. پټه خزانه کاږي: "چې ظل الله پادشاه جهان شاه حسين کاتبان واستول او له پېښوره يې د عبدالرحمان بابا عليه الرحمه د ديوان نقلونه راوړل او په قندهار کې علما او زهاد و وکښل او اوس ډېر دي. فقرا او د خدای دوستان د عبدالرحمان بابا شعرونه ډېر لولي او خوښوي او عام خلق فالونه پر ګوري. حتی چې ښځمنې هم دا کتاب ډېر وايي او خدای تعالی دده په وينا کې هسې برکت اېښی دی چې د هر خوږ من زړه دارو په کا او هر غريب او محتاج مستغني کا."(100)

دا روايت ښيي چې له ډېر پخوا څخه د رحمان بابا د ديوان د تکثير او ډېر ښت له پاره کار پيل شوی او په پښتونخوا کې يې زياتې نسخې خورې شوې دي.

د مېجر راورټي دا خبره چې په نظر کې ولرو چې دده د رحمان بابا د وينا د انتخاب په وخت کې له شپېتو نسخو څخه استفاده کړې(101) نو بيا د پښتو تر هر کتاب نه دده د ديوان د نسخو شمېره ډېره ده ان چې د اخون درويزه تر مخزن الاسلام نه يې هم د نسخو شمېره اوړي خو په موجود وخت کې د رحمان بابا د ديوان د قلمي نسخو د شمېر له مخې تر مخزن الاسلام را وروسته دوهم کتاب دی(102) او دهيواد او نړۍ په بېلو - بېلو رسمي او شخصي کتابتونو کې يې نسخې شته.

د پښتو خطي نسخو په لاره کې زما التهون روان دی خو تر اوسه نه يم بريالی شوی چې په ټوله نړۍ کې د پښتو خطي نسخو شمېره تر لاسه کړم، په همدې توسن

---

(100) پټه خزانه (عکسي چاپ)، ٤٥ مخ.

(101) ديوان عبدالرحمن، د مولانا عبدالقادر سريزه، "د" مخ. "دوران" مجله، پېښور ١٩٥٨ع. (٤،١٣ ګڼه - د نوموړي مولانا مقاله)

(102) رفيع، حبيب الله، "د پښتو قلمي نسخې" وږمه، ١٩ کال، ٤ ګڼه (١٢٥٤)، ٨٣ مخ.

د رحمان بابا د دېوان د ټولو نسخو شمېره هم زما په لاس کې نشته ، خو تر کومه ځایه مې چې یاد د ښتو نه راغونډه کړې د رحمان بابا د دېوان دا لاندې نسخې راته معلومې دي:

**الف :** د برتانوي تاپوګانو په بېلو بېلو کتابتونو کې د رحمان بابا د دېوان ۹ پوره او نیمګړې نسخې شته په دې ډول :

۱ ـ برېټش موزیم : د سید غلام علي په قلم ، ۱۳٤ پاڼې ، کال نه لري .

۲ ـ دلینن سیانا کتابتون : خطاط نلري ، ۱۳۳ پاڼې ، بې تاریخه .

۳ ـ د هند دارې کتابتون : خطاط میا صدرالدین ، ۱۵۳ پاڼې ، د خطاطي کال ۱۲۷۰ ه.ق.

٤ ـ برېټش موزیم : خطاط میرزا محمد اسماعیل ، ۱۹٤ پاڼې ، د ۱۲۷۷ ه.ق. ، ۱۸٦۱ ع. کال لیک.

۵ ـ برېټش موزیم : خطاط غلام جیلاني پېښوري ، ۱۳۹ پاڼې ، د ۱۸۷۲ ع. کال لیک.

۶ ـ د هند دارې : ۱۵۷ پاڼې ، خطاط او د خطاطي کال نه لري .

۷ ـ د هند دارې : خطاط فاضل محمد د عبدالغني کاسي زوی ، ۱۱۸۷ ه.ق ، ۹۳ پاڼې .

۸ ـ برېټش موزیم : خطاط سراج الدین ، ۱۱۱ پاڼې ، د ۱۲۷۱ کال لیک .

۹ ـ بودلیان : (د دېوان انتخاب) ، ۸۵ پاڼې ، د ۱۹۰۰ ع. کال شا او خوا لیکل شوی ! (۱۰۳)

**ب :** دلېننګراد په آسیایي موزیم کې د رحمان بابا د دېوان درې نسخې خوندي دي :

۱۰ ـ د ۱۸۱۰ ع. کال لیک .

۱۱ ـ د ۱۸۳۰ ع. کال لیک .

۱۲ ـ د ۱۸۳۷ ع. کال لیک . (۱۰٤)

**ج :** د هند په کتابتونو کې سربېره پر دې د رحمان بابا د دېوان ډېرې نسخې وې خو دا درې نسخې یې فهرست شوي :

۱۳ ـ د رامپور رضا لایبرېري : خطاط محمد شاه بلخي ، د ۱۲۱۹ کال لیک ، ٤۷۰ پاڼې مصوره نسخه (۱۰۵)

۱٤ ـ د بنګال د اېشیایي ټولنې کتابتون : د شاه ثناء الله په قلم .

---

د دې مخ د متن پاېلیکونه په (۵۰) مخ کې وګورئ .

۱۵ ـ د ډیلي د پوهنتون کتابتون : د حافظ عبید الله په قلم[۱۰۶].

ل : د پښتونستان په شخصي او رسمي کتابتونو کې د رحمان بابا د دیوان ډېرې نسخې شته خو متأسفانه د ټولو فهرست یې لاس ته نه دی راغلی ، یوازې دا لاندې نسخې یې را ته معلومې دي :

۱۶ ـ د پېښور د اسلامیه کالج کتابتون[۱۰۷]

۱۷ ـ د پروفیسر ولي محمد خان سیال کاکړ کتابتون : د ملا ولي په قلم ، ۹۰ پاڼې.

۱۸ ـ د سیال کاکړ کتابتون : د ملا ولي په قلم ، ۱۷۹ پاڼې[۱۰۸]

هـ : په فرانسه کې د رحمان بابا د دیوان د دوو نسخو پته شته :

۱۹ ـ د فرانسې د ګیمې موزیم : د ۱۲۰۹ ق. کال لیک د ولي محمد په قلم .

۲۰ ـ د فرانسې د ګیمې موزیم : د ۱۷۹۶ کال لیک[۱۰۹]

و : په امریکا کې د یوې نسخې پته شته :

۲۱ ـ د پرنسټن د پوهنتون کتابتون[۱۱۰]

ز : د کابل د خطي نسخو کتابتون کې د رحمان بابا د دیوان دا نسخې موجودې دي :

۲۲ ـ د ملا ولي په قلم چې ۳۲ انځورونه هم لري ، ۱۸٤ پاڼې .

۲۳ ـ په کشمیر کې د ۱۲۲۷ کال لیک ، د ملا عبید الله په قلم ، ۱۶۰ پاڼې.

۲٤ ـ بله نسخه ۱۱۹ پاڼې لري .

---

د ٤۹ مخ پاملیکونه :

(۱۰۳) د برتانوي تاریخي کتابتونو کې د پښتنو قلمي نسخو کتلاګ ، ډاکټر مکینزي ، ۱۹۶۵ ع. له ۸۵ تر ۹۳ مخ.

(۱۰٤) هېواد ( ورځپاڼه ) ، ۱۳٤۶ کال ورې ، د سناغلي رښتین مقاله .

(۱۰۵) د خان غازي کابلي قلمي یادداشت ، د استاد بېنوا د کتابتون .

(۱۰۶) هېواد ، د سناغلي رښتین مقاله .

(۱۰۷) هم دا ورځپاڼه .

(۱۰۸) سیال کاکړ ، پروفیسر ولي محمد : " پښتو نسخې " ، قلمي .

(۱۰۹) هېواد ورځپاڼه ، یاده شوې مقاله .

(۱۱۰) هم دا اخځ .

۲۵ ـ بله نسخه چې ۶۵ پاڼې لري.

۲۶ ـ بله نسخه چې ۱۷۴ پاڼې لري.

۲۷ ـ بله نسخه يې چې ۱۶۷ پاڼې لري او له ځينې شعرو سره يې دري ژبارهم شته[111]

ح : د جمهوري آرګ په کتابتون کې د رحمان بابا د ديوان دا نسخې شته :

۲۸ ـ يوه نفيسه نسخه ده چې ۱۲۰ پاڼې لري[112]

ط : د هرات په موزيم کې :

۲۹ ـ خوشخطه نسخه ده چې ۱۸۲ پاڼې لري[113]

ی : د کابل پوهنتون په کتابتون کې هم د رحمان بابا د ديوان دا لاندې نسخه ساتل کېږي :

۳۰ ـ د ملا ولي د زوی ملا کمال په ليک چې ۱۴۴ پاڼې لري[114]

ك : د پښتو ټولنې په کتابتون کې د بابا د ديوان دا لاندې نسخې شته :

۳۱ ـ د شاه زمان د سلطنت په وخت کې ليکل شوې نسخه ده چې ۲۵۱ پاڼې لري خطاط يې وجه الدين او د خطاطۍ کال يې ۱۲۳۰ هـ. ق. دی.

۳۲ ـ د سرله خوا نيمګړې نسخه ده چې ۱۴۲ پاڼې يې پاتې دي.

۳۳ ـ د سر او پای د وار و لخوا نيمګړې نسخه ده چې ۱۳۱ پاڼې يې پاتې دي.

۳۴ ـ د ملا اختر بياض دی چې د رحمان بابا د اشعارو چاڼ پکې شته[115]

ل : د محترم استاد پوهاند عبدالشکور رشاد په کتابتون کې د رحمان بابا د ديوان نسخې شته چې يوه هم نسخه يې دا ده :

۳۵ ـ د ۱۱۴۵ هـ. ق. کال ليک ده او کامګار خان ختک د نامدار خان زوی

---

(۱۱۱) "د پښتو قلمي نسخې" د ليکوال اثر، خطي.

(۱۱۲) د بورکوي د خطي نسخو فهرست، ۱۹۶۴ ع. ۶۵ مخ.

(۱۱۳) همدا اثر، ۳۲۹ مخ.

(۱۱۴) ستوده، محمد ابراهيم او عبدالرحمن : "د پښتو د ۱۰۸ قلمي نسخو لنډه پېژندنه"، ۱۳۵۴، ګستنري چاپ، ۲۵ مخ.

(۱۱۵) "د پښتو قلمي نسخې".

داشرف خان لمسي اوخوشال خان ختټك كړوسي يوه مثنوي په خپل قلم پرې كښلې اوهرې پرې لګولې دي.[116]

**م:** دښاغلي عبدالقدوس نجيب په كتابتون كې يې دا نسخې شته:

۳۶ - د ۱۲۷۹ هـ.ق. كال ليك چې ۱۳۶ پاڼې يې پاتې دي اودپاى پاڼې يې نشته.

۳۷ - يوه نيمګړې نسخه ده چې ۵۳ پاڼې يې پاتې دي[117].

**ن:** دښاغلي محمد حليم سليمي په كتابتون كې هم درحمان بابا ددېوان دوې نسخې خوندي دي:

۳۸ - خطاط يې انعام نومېږي چې په ۱۱۷۶ هـ.ق. كال يې كښلې ده، دواړه دفتر ونه يې بېل - بېل ګڼهل شوي دي چې ټولې پاڼې يې ۱۳۴ دي.

۳۹ - د ۱۱۹۹ هـ.ق كال په شاوخواكې كښل شوې، دپاى لخوا نيمګړې ده او۷۲ پاڼې يې پاتې دي[118]

**س:** دښاغلي زلمي هېوادمل په كتابتون كې درحمان بابا ددېوان لاندېنۍ نسخې خوندي دي:

۴۰ - د ۱۲۱۲ هـ.ق كال ليك چې ۸۴ پاڼې لري.

۴۱ - يوه زړه بې تاريخه نسخه چې ۲۰۰ مخه لري.

۴۲ - درحمان بابا دشعرونو يوه انتخابي مجموعه چې ۱۶ پاڼې لري[119]

**ع:** دليكوال په كتابتون كې درحمان بابا ددېوان دالاندې نسخې خوندي دي:

۴۳ - دملا قمردين په خط ليكل شوې نسخه ده چې دسرخو پاڼې يې لوېدلې

---

(۱۱۶) دمحترم استاد، پوهاند عبدالشكور رشاد يادداشت چې په خاصه لورېينه يې راسپارلى دى.

(۱۱۷) "دپښتو قلمي نسخې" ښاغلي نجيب صاحب يه ډېره مينه دخپل كتابتون نسخې دمعرفي په غرض راسپودلې چې په دې وسيله مننه ترې كوم.

(۱۱۸) "پښتو قلمي نسخې" دښاغلي سليمي صاحب هغه سخاوتمندي چې دخپل خاني كتابتون دنسخو په راسپودلو كې يې كړې ده ډېره منني وړده.

(۱۱۹) "پښتو قلمي نسخې". دګران ملګري ښاغلي زلمي هېوادمل لورېينه ترتعارف لوره ده ځكه كتابونه مو داسې سره ګډ دي چې داسې وختونه هم پېښېږي چې يو دبل كتاب نه سره بېلونو..

او دپای یو مخ یې نشته موجودې پاڼې یې ۹۱ دي .

٤٤ - بله نسخه ده چې ځینې پاڼې یې ضایع شوې ، دا نسخه په یوه دفترګې ترتیب شوې ځوښوې غزلې هم لري چې پاتې پاڼې یې ۸٤ دي .

٤٥ - ددې نسخې هم ځینې پاڼې لوېدلې او ۹٦ پاڼې یې راپاتې دي .

٤٦ - ددې نسخې زیاتې پاڼې نیمه خواشوې او یوازې ٤٧ مخه ترې راپاتې دي .

٤٧ - دا یوه زړه نسخه ده چې پنځوس پاڼې یې راپاتې دي .

٤٨ - دملا سنا یسته خان جونګ چې درحمان بابا زیاتې غزلې پکې چاپ شوې او خوندي دي .[120]

له دې سره - سره بیا هم دا یو ترتیبه احصائیه یوه دبره لنډه ګڼړه او نیمګړې احصائیه ده ځکه د بابا ددېوان دېرې نورې نسخې هم شته چې علاقمندانو یې ساتلي دي ، ما دا تلونکو احصائیو په هیله دا شمېره ورانده کړه .

## چاپي نسخې :

لکه څرنګه چې درحمان بابا ددېوان قلمي نسخې دېرې دي همدا رنګه ددې دېوان چاپونه هم له یو ځا اخیسي روان دي او په لسها و ځله خپور شوې دی .

ددې دېوان تر ټولو زړه چاپي نسخه چې ما لیدلې ده په ۱۲۸۰ هـ.ق . کال کې دبمبي چاپ نسخه ده چې په سنه صحافت خپره شوې ده[121]

او تر ټولو ښه چاپي نسخه یې چې ډاکټر مکینزي او د "رحمان بابا" دکتاب یې نومه مؤلف درحمان بابا دد بوان لومړنۍ چاپي نسخه ګڼلې ، هغه نسخه ده چې مولوي احمد

---

(۱۲۰) "دپښتو قلمي نسخې" په دې پښتوکې دوې نسخې ګران ملګري ښاغلی احسان الله آرینزي را ښبلي چې کور والی ورته وایم .
(۱۲۱) دا نسخه د ښاغلي زلمي هیوادمل په کتابتون کې خوندي ده .

د تنګي د څو نسخو له مخې ترتیب کړې او په ۱۸۷۷ ع. کال په لاهور کې پادري هیوز چاپ کړې ده[۱۲۲]

ددې دیوان یوه بله زړه چاپي نسخه د حیدري مطبعې چاپ ده چې د قاضي فتح محمد په اهتمام خپره شوې، په ۱۸۸۳ کال کې یوځل په بمبئي او دوه ځل په ډیلي کې چاپ شوې او تر هغه وروسته یې چاپونه له شمېره اوړي. یوه ډېره نفیسه نسخه یې چې په ښکلي خط کښل شوې په ۱۳۲۸ ش. کال پښتو ټولنې د استاد بېنوا په زیار خپره کړه او یو بل انتقادي متن یې د پېښور پښتو اکېډمۍ په ۱۹۶۳ ع. د ارواښاد مولانا عبدالقادر په سریزه خپور کړ او هم یې هم دې اکېډمۍ له منظومې اردو ترجمې سره یو متن خپور کړ[۱۲۳].

## چاپي انتخاب :

د رحمان بابا د دیوان چاپي انتخاب دده تر ټولو چاپي نسخو وړاندې دی ځکه لومړی ځل دده غزلې آلماني خټیځ پوه ډورن په خپل "خریستوماتیا" نومې کتاب کې چې د پښتو ادبیاتو انتخابي مجموعه ده په ۱۸۴۷ ع. کال په پتر زبورګ کې خپرې کړې[۱۲۴] بیا دده غزلې انګریزي خټیځ پوه میجر راورټي په ۱۸۶۰ ع. کال په خپل "ګلشن روه" نومې مجموعه کې نشر کړې[۱۲۵] او بیا پادري هیوز په "کلید افغاني" کې د رحمان بابا د دیوان غزلې انتخاب کړې چې یو چاپ یې د ۱۸۷۲ ع. کال دی[۱۲۶].

همدارنګه په "جشن پیروزي"، "ګلشن نوروزي"، "بهار ګلشن" او د قاضي میر احمد شاه رضواني په "بهارستان" او "شکرستان" کې هم دده د دیوان انتخابات شوې او په دې سربېره په ډېرو نورو پښتو مجموعو کې د رحمان بابا ملکوتي وینا وې خیستلې شوې او خپرې شوې دي.

---

(۱۲۲) د قلمي نسخو کتلاګ، ډاکټر میکنزي، ۸۵ مخ. رحمان بابا، ۲۲ مخ.
(۱۲۳) د رحمان بابا د یو شمېر چاپي نسخو د معرفې لپاره وګورئ: پښتو کتاب سود، د لیکوالکي اثر.
(۱۲۴) وګورئ: خریستوماتي.
(۱۲۵) وګورئ: ګلشن روه ۱-۳۰ مخونه.
(۱۲۶) وګورئ: کلید افغاني.

# اخځونه


۱ ـ افضل خان ختک : "تاریخ مرصع"، مقابله ـ تصحیح او نوټونه د دوست محمد خان کامل مومند ۱۹۷٤ ع. یونیورسټي بک ایجنسي ـ پېښور .

۲ ـ حافظ رحمت خان : "خلاصة الانساب" د محمد نواز طائر دیباچه او ترجمه ، ۱۹۷۳ ع. پښتو اکېډمي ـ پېښور .

۳ ـ خواجه نعمت الله هروي : "تاریخ خان جهاني د مخزن افغاني"، تصحیح او تنقیح د سید محمد امام الدین ، ۱۹۶۰-۶۲ ع. ایشیاټک سوسائټي ډاکه (په دوو ټوکونو کې).

٤ ـ محمد هوتک : "پټه خزانه" ، د استاد حبیبي سریزه او سمون، ۱۳۲۳ ش پښتو ټولنه کابل

۵ ـ محمد هوتک : "پټه خزانه" (عکسي چاپ) ، د استاد حبیبي نوې سریزه ، ۱۳۵٤ ، د پښتو د پراختیا او پیاوړتیا آمریت ، کابل .

۶ ـ ښایسته خان : "د ملا ښایسته خان ژونګ" ، د دوو لسمې پېړۍ لیک ، ډیکونوګی کتابتون

۷ ـ حبیبي ، پوهاند عبدالحی : "پښتانه شعراء" (لومړی ټوک) ، ۱۳۲۰ ش ، پښتو ټولنه ، کابل

۸ ـ حبیبي ، پوهاند عبدالحی : "افغانستان در عصر کورګاني هند" ۱۳٤۱ ، تاریخ ټولنه .

۹ ـ حبیبي ، پوهاند عبدالحی : "د پښتو ادبیاتو تاریخ" (دوهم ټوک) ، ۱۳٤۲ ، پښتو ټولنه ـ کابل

۱۰ ـ حبیبي ، پوهاند ، عبدالحی : "د افغانستان پېښلیک" ، د ښوونې کتاب چاپولو موسسه ، ۱۳۵۳ ش کابل

۱۱ - حافظ مرغزی : "شاهنامهٔ احمدشاه ابدالي" پښتو اکېډمي ، ۱۹۶۵ع . پېښور .

۱۲ - کامل مومند : "رحمان بابا" ، ادارهٔ اشاعت سرحد ، ۱۹۵۸ ع . پېښور .

۱۳ - عبدالصمد خان : "رحمان بابا شاعر انسانیت" ، داثر په سریزه ، ۱۹۷۴ع . پېښور .

۱۴ - بې نومه مؤلف : "رحمان بابا" محکمهٔ نشر و اشاعت قبایل .

۱۵ - ظفر کاکاخیل ، سید بهادر شاه : "پښتانه د تاریخ په رڼا کې" یونیورسټي بک ایجنسي پېښور ۱۹۶۵ع .

۱۶ - حبیبي ، پوهاند عبدالحی (تصحیح او سریزه) : "د خوشال خان ختک ارمغان" طلوع افغان ۱۳۱۷ کندهار

۱۷ - کامل ، دوست محمد (سریزه او سمون) : "کلیات خوشال خان ختک" ، ادارهٔ نشر و اشاعت سرحد ، ۱۹۶۰ (دوهم چاپ) پېښور .

۱۸ - رښتیا ، سید رسول (سریزه او ترتیب) : "ارمغان خوشال" ، یونیورسټي بک ایجنسي ، پېښور .

۱۹ - بېنوا ، عبدالرؤف (سریزه او سمون) "د رحمان بابا دیوان" ، پښتو ټولنه ، ۱۳۲۸ کابل

۲۰ - عبدالقادر ، مولانا (سریزه) : "دیوان عبدالرحمن" ، پښتو اکېډمي ۱۹۶۳ ، پېښور .

۲۱ - عبدالمجید ، پروفیسر (سریزه) : "دیوان عبدالرحمن مع رباعیات دیوان عبدالحمید" ، صابر الکټرک پریس ـ لاهور .

۲۲ - غروال ، ښکېر نیار محمد عارف (سمون) : "د رحمان بابا دیوان" (همامتن) لاسکښلې نسخه

۲۳ - خادم ، قیام الدین (تولوونکی) "روهي ګلونه" ، پښتو ټولنه ۱۳۲۶ کابل .

۲۴ - حبیبي ، پوهاند عبدالحی (سریزه او سمون) : "د عبدالقادر خان ختک دیوان" ، طلوع افغان ۱۳۱۸ کندهار .

۲۵ - عظیم : "دیوان عظیم" ، ۱۳۳۳ هـ.ق. ، مطبع اسلامیهٔ لاهور .

۲۶ - بخاري ، خیال (ترتیب او تدوین) : "دیوان نجیب" ، پښتو اکېډمي ، ۱۹۷۲ پېښور .

۲۷ - دارمستتر : "د پښتنخوا د شعر هار و بهار" ، د پاریس د ختیځ ټولنه ، ۱۸۸۸ ع . پاریس .

۲۸ - همېش خلیل (ترتیب او سریزه) : "دیوان هجري" ۱۹۵۸ع . پېښور .

۲۹ـ همیش خلیل (ترتیب او سریزه): "دیوان عبدالقادر خان خټک"، ۱۹۷۲ ع. پېښور.

۳۰ـ دیونس خیبري دیوان، دارګ د کتابتون قلمي نسخه.

۳۱ـ عبدالقادر، مولانا (سریزه): "دیوان مصري خان ګګیاڼي". پښتو اکېډمي پېښور

۳۲ـ بخاري، خیال (ترتیب او تدوین): "دیوان معزالله خان مومند" ۱۹۵۸ ع. پښتو اکېډمي پېښور

۳۳ـ همیش خلیل (سریزه او ترتیب): دیوان معزالله خان مومند"، ۱۹۶۱ پېښور.

۳۴ـ همیش خلیل (سریزه او ترتیب): "دیوان کاظم خان شیدا"، ۱۹۶۵ ع. پېښور

۳۵ـ بېنوا، عبدالرؤف (سریزه او ترتیب): "د کاظم خان شیدا دیوان" ۱۳۳۱ کابل.

۳۶ـ همیش خلیل (سریزه او ترتیب): "دیوان بیدل" ۱۹۵۷ ع. پېښور

۳۷ـ همیش خلیل: "د ورکه خزانه" (لومړی ټوک)، ۱۹۶۰ ع. پېښور

۳۸ـ بېنوا. عبدالرؤف (ترتیب او سریزه): "د پیر محمد کاکړ دیوان"، ۱۳۲۵، پښتو ټولنه کابل

۳۹ـ "د شمس الدین کاکړ دیوان" ۱۳۳۳، پښتو ټولنه کابل.

۴۰ـ "د حنان بارکزي دیوان" ۱۳۳۶، پښتو ټولنه کابل.

۴۱ـ "د عبدالغفار هوتک دیوان"، قلمي نسخه.

۴۲ـ اثر، عبدالحلیم: "تېر هېر شاعران"، ۱۹۶۳ ع. پښتو اکېډمي، پېښور.

۴۳ـ همیش خلیل (سریزه او ترتیب): "دیوان قنبر علي خان".

۴۴ـ دورن (ټولونکی): "خرېستو ماتیا"، پترزبورګ، ۱۸۴۷ ع.

۴۵ـ راورټي، میجر (ټولونکی): "ګلشن روه"، ۱۸۶۰ هرتفورډ.

۴۶ـ هیوز، پادري (ټولونکی): "کلید افغاني"، ۱۸۷۲ ع. لاهور.

۴۷ـ محمد آصف خان: "تاریخ ریاست سوات" ۱۹۵۸ ع. سوات.

۴۸ـ خان غازي کابل (قلمي یادداشت): "کتابخانهٔ رضا"، د استاد بېنوا کتابتون.

۴۹ـ سیال کاکړ، پروفیسر ولي محمد خان: "پښتو نسخې"، د سیال کاکړ د خاني کتابتون د نسخو معرفي

لا سکښلي نسخه .

۵۰ـ بورکوی : " دافغانستان خطي نسخې " ، ۱۹۶٤ ع .

۵۱ ـ میکنزی ، ډاکټر : " دبرتانوی تاپوګانو په کتابتونو کې د خطي نسخو کتلاک " (ددې کتاب بشپړ متن ګران ملګری عنایت الله محرابی راته ژباړلی ) .

۵۲ ـ عبدالغني ، دکتور : "احوال وآثار میرزا عبدالقادر بیدل" ژباړن میر محمد آصف انصاری ، کابل پوهنتون ، ۱۳۵۱ .

۵۳ـ "کلیات بیدل" ، دپوهنې وزارت ، ، کابل .

۵٤ ـ تجدد ، مهین جهانبګلو : " سماع در سلسلهٔ هو " ۱۳۵۱ ، تهران .

۵۵ ـ اڅکزی ، محمد جعفر : " ونډر " ۱۹۵۹ ع . کوټه .

۵۶ ـ عجب خان د چکګې : " سوانح عمری د ملا عبدالرحمن " ( فولکلوری کیسه ) ، لاهور .

۵۷ ـ رښتین ، صدیق الله : " د پښتو نسخو فهرست " ، هیواد ( ورځپا نه ) ، ۱۳۵۶ ، اسد او سنبلې ګڼې .

۵۸ ـ ستوري ، محمد ابراهیم او عبدالرحمن : " د پښتو د ۱۰۸ قلمي نسخو لنډه پېژندنه " ۱۳۵٤ ، ګستنري چاپ د کابل پوهنتون کتابتون .

۵۹ ـ هیوادمل ، زلمی : " فرهنګ زبان وادبیات پښتو " . لا سکښلې نسخه .

۶۰ ـ رفیع ، حبیب الله : " عبدالوهاب اڅکزی " زیری ، ۱۳۵۶ ، د جوزا ۱۳ ګڼه .

۶۱ ـ رفیع ، حبیب الله : " د پښتو نخوانې تذکرې " ، افغانستان اکاډمي ، رتاریخ او ادب ټولنه ۱۳۵۰ کال

۶۲ ـ رفیع ، حبیب الله : " ادبي ستوري " ( لومړی ټوک ) ، پښتو ټولنه ، ۱۳۵۳ ، کابل

۶۳ ـ رفیع ، حبیب الله : " د پښتو قلمي نسخې " ، وږمه ، نولسم کال ، لسمه ګڼه ، ۱۳۵٤ ش .

۶٤ ـ رفیع ، حبیب الله : " د پښتو خطي نسخې " ( په نړۍ کې د پښتو خطي نسخو معرفي ) ، قلمي .

۶۵ ـ رفیع ، حبیب الله : " د پښتو کتاب بنود " ، قلمي .

# د متن نسخې

## د رحمان بابا د ديوان د انتقادي متن په برابرولو کې له دغو چاپي او خطي نسخو څخه کار اخيستل شوی دی:

رحمان بابا د ديوان د دغه انتقادي متن په تيارولو کې له څلورو چاپي نسخو، شپاړسو خطي نسخو، خرستوماتي يا د درسي مجموعې او د شوروي اتحاد څخه د راغوښتل شوي ميکروفلم څخه کار اخيستل شوی دی. کوم څرګند توپيرونه چې په کومه نسخه کې په نظر راغلي يا کوم نوی غزل او نوی بيت موندل شوی دی په لمن ليک کې د هغې نسخې حواله ورکړل شوې ده. دغو نسخو ته مو مختصر نومونه ورکړي دي تر څو محققين او لوستونکي له زياتو خنډونو سره مخامخ نه شي، مثلاً د پښتو ټولنې نسخې مو د "پ"، د اطلاعاتو او کلتور د خطي کتابخانې نسخې مو د "خ" نسخه په نامه او د پېښور چاپي نسخو ته مو د "پ، پ" يعنې پښتو اکېډمۍ چاپ، "ق، ك" يعنې قديمي کتابخانې چاپ او "ق" يعنې قصه خوانۍ چاپ نومونه او د پښتو ټولنې د بېنوا صاحب له خوا چاپ شوي ديوان ته مو د "ب" چاپ نوم ورکړی دی. د دغه انتقادي متن مو لکه د پښتو ټولنې له خوا د چاپ شوي ديوان غوندې په يوه دفتر کې ترتيب کړی او د پښتو ټولنې د مسلکي غړي او ځوان

خطاط ښاغلي نصیر "هنر" پښتون له خوا خطاطي شوی دی.

ددې د پاره چې د رحمان بابا د دیوان د دغه انتقادي متن محترم لوستونکي له دغو چاپي او خطي نسخو سره سنه بلد شي هره نسخه په ځانګړې توګه معرفي کېږي:

**د کابل د پښتو ټولنې چاپ :-** د دغې نسخې کچه ۱۵×۱۰ سانتي متره ده او په کوچنۍ قطع چاپ شوې ده د دغې نسخې مصحح، مدون او مقابله کوونکي استاد بېنوا دی چې ښاغلي عزیز الدین وکیلي له خوا خطاطي شوې او په ۱۳۲۸ کال کې د کابل د عمومي مطبعې په آفست کې چاپ شوې ده. مقدمه هم د استاد بېنوا له خوا پرې لیکل شوې چې د رحمان بابا د ژوند ګلوله په باب خورا په زړه پورې مواد لري.

د غه چاپي دیوان ټول "۲۶۰" مخونه دي چې (۱۳۰) پاڼې کېږي، په دغه دیوان کې (۳۳۸) پارچې راغلي دي او د ټولو بیتونو شمېر یې (۳۸۵۳) دی. دغه نسخه د رحمان بابا د نورو چاپي او خطي نسخو پر خلاف په یوه دفتر کې ترتیب او چاپ شوې ده.

**د پېښور د پښتو اکیډمۍ چاپ :-** کچه یې ۲۰×۱۶ سانتي متره ده. دغه چاپي دیوان د لومړي ځل له پاره د ۱۹۶۳ ع. کال د جولائي د میاشتې په دېرشم نېټه د هغه وخت د پښتو اکېډمۍ د مشر مولانا عبدالقادر په تمهید چې د ۱۳۶۸ هـ. کال د صفر المظفر د میاشتې په ۱۸ نېټه یې چې د ۱۹۴۸ عیسوي کال د دسمبر له شلمې نېټې سره برابره ده **کښلی،** چاپ شوی دی د رحمان بابا دغه نسخه په دوو دفترونو کې چاپ شوې چې د مخونو شمېر یې (۲۸۵) ته رسېږي او مقدمه یې د الفبا په ترتیب وروسته چاپ شوې ده.

په دغه دیوان کې (۳۴۴) پارچې راغلي دي چې ټول (۳۷۰۰) بیته دي.

**د پېښور قدیمي کتابخانې چاپ :-** د رحمان بابا د دغه چاپي دیوان کچه ۲۴×۱۵ سانتي متره ده، د پېښور د کالج د پروفیسر عبدالمجید او شاه افضل صاحب په سرېزه په (۱۷۷) مخونو کې د پېښور د قصه خوانۍ د تاجرانو حاجي فضل احمد او حاجي عبدالرحیم له خوا چاپ شوی دی. د چاپ نېټه یې نه ده معلومه، د پاڼو شمېر یې (۳۴۷) او د بیتونو شمېر یې (۳۷۹۴) دی، دغه نسخه هم په دوو دفترونو کې ترتیب او چاپ شوې ده.

**د پېښور قصه خوانۍ چاپ :-** د دغې چاپي نسخې کچه هم ۲۴×۱۵ سانتي متره ده چې په ۱۹۲۰ عیسوي کال کې چاپ شوې او د مخونو شمېر یې (۱۸۴) دی، په دغه نسخه کې ټول (۳۲۱) پارچې راغلي او د بیتونو شمېر یې (۳۶۰۳) دی، دغه چاپي دیوان هم په دوو دفترونو کې ترتیب او چاپ شوی دی.

**د پښتو ټولنې د کتابتون خطي نسخې :-** د پښتو ټولنې په کتابتون کې د رحمان بابا د دیوان درې خطي نسخې او یو قلمي جونګ چې د رحمان بابا یو شمېر غزلې هم پکې دي شته چې په هره نسخه به بېلا بېل ډول خبرې کېږي.

**د "پ" لومړۍ نسخه :-** د "پ" د کتابتون د لومړۍ نسخې کچه ۲۳×۱۳ سانتي متره ده دا نسخه د سر او پای له خوا بشپړه ده، د مخونو شمېر یې (۲۵۱) او د پارچو شمېر یې (۳۱۴) دی، دغه نسخه د شاه زمان د سلطنت په مهال کې لیکل شوې ده.

**د "پ" دويمه نسخه :-** د "پ" په کتابتون کې د رحمان بابا بله نسخه هم شته چې د دويمې نسخې په نامه نومول شوې ده، د دغې نسخې کچه ۲۶X۱۴ سانتي متره او د مخونو شمېر يې ۱۴۱ دی، د خطاطي کال او د خطاط نوم يې نه ښکاري. دا نسخه نيمگړې ده او ټول ۲۴۹ پاڼې پکې راغلې دي.

**د "پ" دريمه نسخه :-** د "پ" د کتابتون دغه نسخه هم د سر او پای له خوا نيمگړې ده د مخونو شمېر يې ۱۳۱ او د پاڼو شمېر يې ۱۵۲ ته رسېږي او کچه يې ۱۶X۱۴ سانتي متره ده.

**د کابل پوهنتون د کتابتون نسخه :-** د کابل پوهنتون په لوی کتابتون کې هم د رحمان بابا د ديوان يوه قلمي نسخه شته چې د دغه انتقادي متن په تيارولو کې استفاده ترې شوې ده، د دغې نسخې کچه ۱۵X۷ انچه او د خطاطي کال يې نه دی معلوم خو د ملا کمال د ملا ولي د زوی لخوا ليکل شوې ده ټول مخونه يې طلايي او سره چوکاټونه لري. د پاڼو شمېر يې ۱۴۴ دی چې ټول ۲۸۸ مخونه کېږي.

**د اطلاعاتو او کلتور د خطي کتابتون خطي نسخې :-** د اطلاعاتو او کلتور د وزارت په خطي کتابتون کې د رحمان بابا د ديوان پنځه قلمي نسخې شته چې د دغه انتقادي متن په تيارولو کې استفاده ترې شوې ده او په ترتيب سره څېړل کېږي:

**د "خ" مصوره نسخه :-** د دغې نسخې کچه ۱۸X۱۲ سانتي متره ده د ليک ډول يې نسخ دی د پاڼو شمېر يې ۱۸۳ ته رسېږي چې ټول ۳۶۶ مخونه کېږي ۲۹۸ غزلې او دوه مخمسه لري، پښتې يې کېږه، (۳۲) ښکلي عکسونه او يو نيم مخ نقاشي لري، په کشمير کې د ملا ولي په قلم ليکل شوې ده.

**د "خ" لومړۍ نسخه** :- د "خ" د دغې نسخې کچه ۱۳X۱۹ سانتي متره او د
لیک ډول یې نسخ دی، د خرمني پښتي لري.

د پاڼو شمېر یې (۱۶۰) دی چې (۳۲۰) مخونه کېږي (۳۵٤) غزلې او دوه مخمسه لري
دغه نسخه په ۱۳۲۷ کال په کشمیر کې لیکل شوې ده.

**د "خ" دویمه نسخه** :- د خطي کتابتون د دغې نسخې کچه ۲۱X۳۳
سانتي متره او د لیک ډول یې نستعلیق دی
د پاڼو شمېر یې (۱۱۹) دی چې ټول ۳۳۸ مخه کېږي ۳۰۸ پارچې او دوه مخمسه لري،
پښتي نه لري او لیکونکی یې معلوم نه دی.

**د "خ" درېیمه نیمګړې نسخه** :- د خطي کتابخانې د دغې نسخې لیکونکی
نه دی معلوم. د سر او پای له خوا-
نیمګړې ده کچه یې ۱۷X۲٤ سانتي متره او کاغذي پښتي لري . د لیک ډول
یې نسخ او ۵٦ پاڼې لري چې ۱۱۲ مخه کېږي او ټول (۱۸۰) پارچې پکې راغلې دي.

**د "خ" څلورمه نسخه** :- د خطي کتابتون د دغې نسخې لیکونکی هم نه
دی معلوم. د لیک ډول یې نستعلیق
او کچه یې ۱۳X۲۱ سانتي متره ده ، پښتي یې کاغذي او د پاڼو شمېر یې
۱۷٤ دی چې ټول ۳٤۸ مخه کېږي ، ۳۲۹ پارچې پکې راغلې دي یو مینا تور لري
او د هر غزل له پیل سره د بېر سنګلې او په زړه پورې ګل کاري شوې ده .

**د زلمي هېوادمل نسخې** : له ښاغلي زلمي هېوادمل سره هم د رحمان
بابا د دیوان دوې قلمي نسخې شته چې د دغه

انتقادي متن په تیارولو کې کار ترې اخیستل شوی دی او په لاندې توگه خبرې پرې کېږي:

**لومړۍ نسخه :-** د دغه نسخې کچه ۱۷ X ۱٤ سانتي متره ده، ټولې ۷٤ پاڼې لري چې ۱٤۸ مخه کېږي. خطاط یې نه دی معلوم او په ۱۲۱۲ هـ.ق. کې لیکل شوې ده.

**دویمه نسخه :-** دغه نسخه ډېره زړه ده (۲۰۰) مخه لري او په هر مخ کې یې معمولاً (۱۸) بیته لیکل شوي دي چې په دغه حساب یې ټول بیتونه ۳٦۰۰ ته رسېږي.

**د حبیب الله رفیع نسخې :-** د ښاغلي حبیب الله رفیع په شخصي کتابتون کې هم د رحمان بابا د دیوان خلور خطي نسخې شته چې په دغه انتقادي متن کې استفاده ترې شوې ده چې دوې نسخې د ښاغلي احسان الله آرینزي له خوا ورکړل شوي دي او په لاندې توگه خبرې پرې کېږي:

**لومړۍ نسخه :-** یوه زړه نسخه ده سراوپای نه لري، د خطاط نوم او د لیکلو کال یې نه معلومېږي. د مخونو شمېر یې (۱۹۰) ته رسېږي، په هر مخ کې یې معمولاً پنځلس بیته راغلي دي د دوو دفترونو په ولېشر لیکل شوې ده او کچه یې ۱۷ X ۲۱ سانتي متره ده.

**دویمه نسخه :-** د ښاغلي رفیع د کتابتون دغه نسخه هم زړه ده. د سراوپای پاڼې یې نشته. ترلاسه شوي مخونه یې ۱۷٤ دي. هر مخ یې ۱٤ بیتونه لري. ټول شعرونه یې په یوه دفتر کې راټول شوي

پنځه شپېتم

او د دوو دفترو وېش نه لري . تر ټولو نسخو زیاتې غزلې لري او تقریباً یوه وتلې نسخه بلل کېدای شي . کچه یې ۵،۱۷ × ۲۱ سانتي متره ده .

**دریمه نسخه :-** د ښاغلي رفیع د کتابخانې د دغې نسخې د سرخو پاڼې لوېدلې دي . خطاط یې د ملاحسن زوی ملا قمرالدین دی . مخونه یې ۱۸۲ دي . او په هر مخ کې یې ۱۹ بیتونه راغلي دي . دغه نسخه په دوو دفترونو کې ترتیب شوې ده . ځینې زیات بیتونه هم لري او کچه یې ۱۵×۲۵ سانتي متره ده .

**د ملا ښایسته خان جونګ :** د ښاغلي رفیع په کتابتون کې د ملا ښایسته خان یو قلمي جونګ هم شته چې د رحمان بابا ځینې غزلې پکې راغلي دي او د دغه انتقادي متن په برابرولو کې استفاده ترې شوې ده .

**څېړنیار محمد عارف غروال**

اووه ښپېتم

# د پاڼکو لاربنود

## دلومړیو مسریو د لومړۍ توري له مخې

ترتیبوونکی: حبیب الله رفیع

ددې لپاره چې د رحمان بابا د دېوان غنغوې دوه هم ساتل شوې وي، په دې لاربنود کې د هغو غزلو مسریو ته چې د دېوان په زړو چاپونو کې په دوهم دفتر کې راغلې دستورې (*) نښه شوې او په دې ترتیب د لومړۍ او دوهم دفتر و بلش سره شوی او هغه غزلې چې نوې موندلې شوې له مسرې سره یې کوچنې دایره (٥) کښنله شوې ده چې نوې موندل شوې غزلې په نښه کړي.

# آ

مخ



# ا



# ب

## ت

## چ

## ن



## و

## ی

بسم الله الرحمن الرحيم

پروره هستي کړدګار دی رب زما — چې صاحب د کل اختیار دی رب زما

همګي بزرګواران چې څوک یې واني — تر همه و بزرګوار دی رب زما

نه یې هیڅ حاجت په چا باندي موقوف دی — نه د هیچا منت بار دی رب زما

له نیستي یې د هستي صورت پیدا کا — هستي رنګ پروردګار دی رب زما

هم صانع دی د جمله و مصنوعاتو — هم سامع د هر ګفتار دی رب زما

چې یې هیچیري نه مثل نه مثال شته — د چغو عطر و عطار دی رب زما

هر نعمت چې د دنیا او د عقبی دی — د همه وار و معمار دی رب زما

خوانند ه د نانویسو صحیفو دی — دانند ه د هر اسرار دی رب زما

که ظاهر دی که باطن دی که مابین دی — له همه و خبردار دی رب زما

که پیدا که پوشیده دی که اوسط دی — په همه و وقوف دار دی رب زما(1)

شریک نه لري په خپله بادشاهي کي — بې شریکه شهریار دی رب زما

هسي نه چې واحد یې یاده له عجزه — په واحد وجود بسیار دی رب زما

څه حاجت دی چې ویل خواته یې غوارم(2) — په خپل کور کي همکنار دی رب زما

حاجت نه لري د هیچا و یاري ته(3) — له هغو سره چې یار دی رب زما

هیڅ تغیر او تبدیل نه لري ذات ئې — تل تر تله برقرار دی رب زما





(۱) دا بیت د "ب" په قلمي نسخه او د کلتور وزارت په دوو قلمي نسخو کي نه دی راغلی.

(۲) قلمي نسخي: "څه حاجت دی چې یې بله خواته غوارم".

(۳) د "ب" په نسخه کي "حاجت نشته د نورچا و یاري ته"، د "خ" په اوله نسخه کي "حاجت نه لري د نورچا و یاري ته" او په دوهمه نسخه کي "حاجت نه لري د نورو و یاري ته" راغلی دی.

که صورت د محمد ص نه وی پیدا — پیدا کړې به خدای نه وه دا دنیا

کل جهان د محمد په مخ پیدا شو — محمد دی د تمام جهان آبا

نبوت په محمد باندې تمام شو — نشته پس له محمده انبیا

نور هاله د محمد و پیدا شوی — چې نه عرش و نه کرسي وه نه سما

بوی هاله د محمد و په جهان کې — چې بوی نه و د آدم او د حوا (۱)

که صورت یې آخرین دی پیدا شوی (۲) — په معنی کې اولین دی تر هر چا

که نبي دی که ولي دی که عاصي دی — محمد دی د همه واړو پیشوا

چې یې دین د محمد دی قبول کړی (۳) — جنتي دی که فاسق دی که پارسا

محمد د ګمراهانو رهنما دی — محمد دی د بې نوو د لاس عصا

که نهاده پیروي د محمد ده — ګنه نشته په جهان بله رڼا

محمد د بېچاره و چاره ګر دی — محمد دی هر دردمنده دوا

خدای یې مه ګڼه بېشکه چې بنده دی — نور یې کل واړه صفات دی په رښتیا (۴)

نه ده تاج د محمد د در خاکروب یم — کرمې نه کا خدای له دې درجه جدا (۵)

۲ — ۲۸

دوباره دې راتلل نشته په دنیا — نن دې وخت دی که دروغ کړې که رښتیا (۶)

هر چا چې تر وخت تېر شي عنقا شي — عنقا نه دی په دام نښتی د هېچا

تر وخت تېرې او به بېرته نه جاروزي — نه جاروزي تېر ساعت په بېرته بیا

تېر ساعت په مثال مړی د لحد دی — مړ چا نه دی ژوندی کړی په ژړا (۷)

که مقصود لرې تلوار کړه وخت کوتاه دی (۸) — غره مه شه د دې عمر په بقا

---

(۱) دا بیت په چاپي دیوانونو کې نه دی راغلی.

(۲) د "پ" په نسخه کې "خه شو که صورت یې آخرین دی پیدا شوی". د "خ" په لومړۍ نسخه کې "که صورت یې آخرین و پیدا شوی"، په دوهمه نسخه کې: "په دا خه شو که صورت یې آخرین دی پیدا شوی"
د "پ" چاپ: "په صورت که آخرین دی پیدا شوی — په معنی کې اولین دی له هر چا".
پېښور چاپ: "که صورت یې پیدا شوی آخرین دی — په معنی کې اولین دی تر هر چا".

(۳) د "خ" په لومړۍ نسخه کې: "چې چا دین د محمد دی قبول کړی".

(۴) د "پ" لومړۍ نسخه او د "خ" په دوهمه نسخه کې: "نور محمد واړه صفات دی په رښتیا".

(۵) د "پ" چاپ: "کرمې خدای نه کا له دې درجه جدا".

(۶) دا غزل په مصوره نسخه او د "پ" په دوهمه نسخه کې نشته، په چاپي دیوانونو کې د دوهمې مسرۍ د "وخت" پر ځای "وار" راغلی دی.

(۷) قلمي نسخې او د "پ" چاپ: "مړ چا نه دی ژوندی کړی په دنیا".

(۸) د "ق، ک" چاپ: "که مقصود لرې په زړه کې وخت کوتاه دی".

هر څه نښنه چې صحیح کښې په زړه کې — په غرور به دغه (۱) نښنه کړې خطا

په امید امید یې خلق ناامید کړل — د ایام له مکره مه شه بې پروا

چې د مرګ په تا چه دې شي خوله ما ته — ترو به په ما ته خوله په څرنګ کړې ثنا (۲)

وېنځلې اړتېنې چې وینا وایي (۳) — تا ته وایي که پوهېږې دا وینا

هلاک نه یې چې په زور دې خوک تعلیم کا — هم عاقل یې هم بالغ یې هم دانا

په عمل د نېک و بد و فهم (٤) وکړه — چې په دا کې دې بهبود دی که په دا

سر د ننه په ګربوان کړه سترګې روڼې — ډېر په پورته پورته مه ځه سر هوا

سر هوا سر هوا مه ځه و آسمان ته — ته په اصل کې له ځمکې یې پیدا

د عمل په ځای به دا پوښتنه نه وي — چې ته زوی یې یا نمسی یې د فلانا (۵)

په خپل ځان ښېګڼه وکړه غږه مه شه — په ښېګڼه دادې (٦) او د بابا

هغه ناوې چې په ځان ښایسته نه وي — څوک یې څه کاندې ښایست د مور و نیا (۷)

دا خبره زه وځان ته کړم ای یاره (۸) — دلګیر مه شه که مې نوم واخیست دستا

نوم دستا او د بل خلم ځان ته وایم — دا عیبونه دې همه واړه زما (۹)

هر چې وایم همه واړه ځان ته وایم — نه مې کار نه مې غرض شته په نورچا (۱۰)

هر چې وایم همه واړه ځان ته وایم — دا عیبونه دې همه واړه زما (۱۱)

کړمې ځای د دې غمونو وې په زړه کې — ما به څه له کوله دا انشا

چې د مرګ سختې خوارې دا ستا په خوا دي (۱۲)
ای [illegible] ولې نه مرې لا پخوا

٣ — ٥٠

---

(۱) د "ب" له لومړي نسخې، "ق، ک" چاپ او "ق" چاپ نه پرته په نورو ټولو کې "هغه" راغلی دی.

(۲) د "ب" چاپ، "ب پ" چاپ، "ق" چاپ او د "خ" "لومړۍ نسخه": "ترو به ما ته خوله به څه کوې ثنا" ـ د "ق، ک" چاپ: "بیا به ما ته خوله به څه وایې ثنا".

(۳) د "خ" "لومړۍ او دوهمه نسخه او د "ب" "لومړۍ او مختلط نسخه": "وېره ثلې اړتېنې چې وینا وایي".

(٤) د "ب پ" چاپ کې د "فهم" پر ځای "عمل" راغلی دی.

(۵) د "ق، ک" چاپ کې د لومړۍ مسرۍ "نه وي" پر ځای "نه شي" راغلی دی او دوهمه مسره یې داسې ده: "چې ته زوی یې د فلانی ... د فلانا".

(٦) د "ب" لومړۍ نسخه: "په خپل ځان ښېګړه وکړه که په وېلې غږه مه شه په ښېګړه دادې او د ابا" (ق، ک چاپ: "چې ته خوی یې یا نمسی یې د فلانا".)

(۷) د "خ" لومړۍ نسخه: "څوک یې څه کاندې ښایست د مور و نیا". د "خ" دوهمه نسخه، "پ" چاپ، "ب پ" چاپ او "ب" مختلط نسخه: "څوک یې څه کوي ښایست د مور و نیا".

(۸) د "ق" چاپ: "دا خبره کړم ځان ته نه هو ښېيار ...".

(۹) چاپي دیوانونه: "نه مې کار، نه مې غرض شته په بل چا".

(۱۰) دا بیت په "ب" چاپ، "ق، ک" چاپ او "ق" چاپ کې نشته. د "ب پ" چاپ کې یې دوهمه مسره داسې ده: "څه مې کار څه مې غرض دی په نورچا". د "خ" په لومړۍ نسخه کې "په بلچا" راغلی دی او د "خ" په دوهمه نسخه کې د لومړۍ مسرۍ د "همه واړه" پر ځای "همګې" راغلی دی.

(۱۱) دا بیت په چاپي دیوانونو کې نه دی راغلی.

(۱۲) د "ب" لومړۍ نسخه: "چې د مرګ سختې خوارې دي په خوا دي". "ق" چاپ: "چې د مرګ سختې خوارې دې وي په خوا کې". د "خ" لومړۍ او دوهمه نسخه او د "ب" مختلط نسخه: "چې د مرګ سختې خوارې دې لا په خوا دي".

هيڅ ثابته نه کړه چا ددې دنيا وفا — واړه ميني کاندي بيهوده په دا دنيا [1]

هر څوك چې دعوى په دا دنيا كا دخپلوى — واړه باطل وايي دنيا نه ده د هيچا

دافلك كلال دى سازول او ماتول كا — د ده بې ماو تاغوندې پيدا كړه هم فنا

هر سنك و كلوخ چې څرګند ده دې دهر — واړه ګكړي دي څوك دشاه څوك دګدا [2]

دام دې هيڅوك نه دي د دنيا و رهګذر ته — شكار به وكړي نه شي دسيمرغ او دعنقا [3]

هر څوك چې لره دې فاني نفس وابستګي كا — نه به شي ترلې په ځنځير سره هوا [4]

ماه دى كه آفتاب دى عاقبت واړه خراب دي — ګل كه هميشه وي هسې نه تل ابدا [5]

مه درومه صالح په خلاف دداناياڼو
مينه د دنيا پسندلې نه ده هيڅ دانا

٥٨ — ٤

څه دوې ښځې وي د چا — هم سُني وي هم پارسا [6]

خدمت كړه ونې دخښتن وي — په ښه خوى وي آراستا

تفاوت پكې حرام دى — كه شري وي كه خاصا

لازم دادى وخښتن ته — تفاوت دې نه كا بيا

په خوراك هم په پوښاك كې — كه كڼه وي كه حذوا [7]

او كه داهسې به نه كا — خپل عمل به كا بېديا

يو دلې به مجنون و مرې — بل هورې به شي ړن وي سيا

دا حديث دى وارد شوى — كه څوك فهم كا په دا

هغه څوك چې تفاوت كا — نه وېنځاريږم دى لره ما

په مشكوة كې دي راغلي — ور ښه و پوښته عاما

صالح ژغوري يوه خدايه
له عذابه له خطا

٦٩ — ٥

---

(١) داغزل د "خ" په دوهم نسخه كې نشته. په چاپي ديوانونو، د "خ" په لومړي او مصوره نسخه كې د "بيهوده" پرځاى "بې وفا" راغلى دى.
(٢) د "ب" لومړى نسخه: "واړه ګكړي دي څوك دشاه ود ګدا".
(٣) دا بيت او ورپسې بيتونه په مصوره نسخه كې نشته.
(٤) د "ق . ك" چاپ: "كله شي ترلى په ځنځير سره هوا".
(٥) دا بيت د "خ" په لومړي نسخه كې نشته، د "ب ب" چاپ كې داسې دى: "ماه دى كه آفتاب دى همګې واړه خراب شي ګل كه هميشه وي هسې نه تر ابدا".
د "ب" لومړى نسخه: "ګل كه هميشه وي هسې نه تر ابدا".
(٦) دا شعر د مدون له مجموعې څخه چې په ١٨٤٧ كال كې ځيره شوې ده نقل شو او د "ب" په دريم نيمګړي نسخه كې هم وروسته لاس ته راغى.
(٧) په اصل نسخه كې "خذوا" راغلى دى مګر معنى يې څرګنده نه شوه ځكه نو ددلته د "حذوا" په شكل ونيول شو چې معنى يې "نال" دى.

ښه ده ښه ده دا دنیا — چې تو ښه ده د عقبا
مذمت د د دنیا مه کړه — واوره پند کړه د اوینا
د دنیا په بابان کېږي — د هغه جهان سودا
په دنیا کې ډېر حکمت دی — پرې پوهېږي حکما (۱)
که غلیم لره یې ورکړي — غلیم دوست کا په هوا
که تو سر یې صدقه کړي — رفع دفع کا بلا
که په اور باندې یې کېږدي — بوی د عود وکا پیدا
که یې تویه په صحرا کېږدي (۲) — ښایسته کاندي صحرا
که یې نذر کړي و پیر ته (۳) — خوشحال درومي په خندا
ځوی وندې وي په جهان کې — یادوي دې په دعا
د حاتم په خبر دې ستایي — خطاب درکا د سخا
سخي هر یو د خدای دوست دی — وَلَوْ کَانَ فَاسِقًا
هر بخیل د خدای دښمن دی — وَلَوْ کَانَ زَاهِدًا
دنیا کښت د آخرت دی — دا خبره ده رښتیا
د دنیا طالبان ډېر دي — که یې مومي څوک لدچا
ولې مرد یکې هغه دی — چې سخي وي هم پارسا
په دنیا کې بدي نشته — که بدي نه وي لدتا (۴)
په دنیا کې خطا نشته — که لدتا نه وي خطا (۵)
دنیا بحر دی ښېښي — اینې غوندې صفا
خپل خپل مخ یکې لیده شي — که څوک زشت وي که زیبا
هم خطر یکې د سر شته — هم ګوهر دی بې بها
وفادار لره وفا شوه (۶) — جفاکار لره جفا
لدیوه مخه یې درد وي — لدبل مخه یې دوا (۷)

---

(۱) پېښور چاپ او قلمي نسخې: "ډېر شه دي پوه ښه حکما".
(۲) د "ب" چاپ او د "خ" لومړۍ او دوهمه نسخه: "که یې توی کړې په صحرا کې".
(۳) د "ب" لومړۍ نسخه: "که یې ورکړې و فقیر ته".
(۴) د "ب" لومړۍ او دوهمه نسخه: "که لدتا نه وي خطا".
(۵) دا بیت په چاپي دیوانونو کې نشته.
(۶) د "خ" دوهمه نسخه: "وپا کارلره وپا شوه".
(۷) دا بیت د "خ" په لومړۍ نسخه کې نه دی راغلی، د "خ" دوهمه نسخه او د "ب" نسخې: "لدیوه مخه دوا"

چېرته خوند کاندي د زهرو | چېرته خوند کا د حلوا
کار همه واره موقوف دی | د سړي په مدعا
سالکان دې ننداره چې شي | د خپل ځان په تماشا
هېڅ کا هغه به مومي | دنيا ځای دی د جزا
لکه وي یا هسې به پاڅي | که نادان وي که دانا
فتوی و نیسه په مخ کې | پسې مه کړه په تقوا
دنیا نده هغه دین دی | چې له هغې وي سېوا
وطاعت و ته ولاړ وي | همېشه تړلې ملا
لړا مو یې پرهېز وي | هم مشغول په پنځ بنا(۱)
کلمه یې وي قبوله | هم په جهر هم خفا(۲)
د دنیا د کار د پاره | فرض لونځ نه کاندي قضا(۳)
هم صائم د رمضان وي(٤) | هم زکوة کاندي ادا
که یې توان د حج رسېږي | حج هم وکا پسې بیا
دا پنځه بنا د دین دي | چې بیان یې وکړ ما
چې یې یون په دا طریق وي | هغه کس دی اولیا
که یې مال د دنیا یوړ دی | هېڅ دې نه کاندي پروا
دنیا بده د هغو ده | چې یې کسب وي ریا
یا یې کسب د ریا وي | یا یې وکړي په غلا(٥)
یا یې تول له کا په ظلم | یا د خمر(٦) په سودا
یا یې وړکا په شراب | یا یې وړکا په زنا

---

(۱) د "خ" لومړی نسخه: "پای شپول پنځ بنا"، د "پ" دوهمه نسخه: "بیایې شپول وي پنځ بنا".

(۲) د "پ" چاپ کې "هم په جهر په اخفا"، په پېښور چاپ کې "هم په جهر هم خفا"، د "پ" په لومړی نسخه کې: "هم په جهر هم خفیا" د "خ" په لومړی نسخه او د "پ" په دوهمه نسخه کې "هم په جهر هم په خفا" او د "خ" په دوهمه نسخه کې "فرض لونځ نه کاندي قضا" راغلی دی.

(۳) دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کې نه دی راغلی.

(٤) په پېښور چاپ کې "هم صائیم وي د رمضان" او د "خ" لومړی نسخه "هم صایم به د رمضان وی" راغلی دی.

(٥) دا بیت د "پ" چاپ کې نه دی راغلی

(٦) په چاپي دیوانونو کې او د "پ" په دوهمه نسخه کې "خمر و" راغلی دی.

يا ناحق خونونه کا ندي — يا مالونه خوري د چا
عبادت کا په ځان فرض — د بادشاه د امرا (۱)
حق باطل کا، باطل حق کا — په سبب د رووي ريا (۲)
نه يې ويره شي (۳) له خدايه — نه يې شرم نه حيا
ديوې ګيډې د پاره — هزار خوني کا بيا بيا (۴)
همېشه يې له ستمه — خلقه وي په غوغا (۵)
ګوش او هوش يې هر ګز نه وي — د مظلومو په ژړا
د فرعون په څېر په (۶) ناوي ست — بې پروا او کبريا
بتخانې و ته يې مخ وي — و مسجد و ته يې شا
اختلاط کا له بدانو — له نېکانو وي جلا (۷)
هيڅ يې نه وي په خاطر کې — تولا و تبرا

٦ — ١٢٤

و رحمان ته پېښنه مه کړه (۸)
خدايه په هسې رنګ بلا

راشه مه کوه له چا سره جفا — لر ژوندون دې ضايع کېږي بې وفا
په دنيا کې هيڅوک نه دي پاتې شوني — واړه تلوني دي که نن دي که سبا
د ياران چې نن وتا و ته جلوه کا — په دوه ورځې پس به واړه شي فنا (۹)
که ديدن دې د دوي خوښ وي و ته ګوره (۱۰) — چې فنا شي بيا به کله شي پيدا
د خزان پاڼې چې بېلې شي له ښاخه — په حکمت به يې پيوند نه کا حکما
چې په ځمکه څاڅکي پرېوځي له آسمانه — بيا له ځمکې ختې نه شي په سما
ګومان مه کړه چې بيا سترګو له ورشي (۱۱) — هغه اوښکې چې له سترګو شي جدا

---

(۱) د "خ" په لومړي نسخه کې داسې راغلي دي: "د بادشاه او د ګدا". د "پ" په دويمه نسخه کې داسې راغلي دي: "د بادشاه و امراء" د "پ" لومړي نسخه: "د بادشاهانو د امرا".
(۲) دا بيت د "خ" په لومړي نسخه کې نه دی راغلی.
(۳) په چاپي ديوان کې د "شي" پر ځای "وي" راغلی دی.
(۴) د "پ" په دوهمه نسخه او د "خ" په لومړي نسخه کې د "بيا بيا" پر ځای "پيدا" راغلی دی.
(۵) په چاپي ديوان کې "واړه خلګ وي په غوغا" او د "خ" په دواړو قلمي نسخو کې "خلقه دي په غوغا". او د پښتو ټولنې په دويمه نسخه کې "خلقې وي په غوغا" راغلي دي.
(۶) د "خ" په دواړو نسخو او د "پ" په دوهمه نسخه کې "به" نه دی راغلی.
(۷) د "پ" چاپ او د "خ" په دوهمه نسخه کې "سيوا" راغلی دی.
(۸) د پېښور چاپ: "ما رحمان ته پېښنه مه کړې".
(۹) د "پ" په لومړي او په دوهمه نسخه کې "په دوه ورځې پسې به واړه شي فنا". او د "خ" په لومړي نسخه کې داسې راغلي ده: "په دوه ورځو پس به واړه شي فنا"
(۱۰) دا مسری د "خ" په لومړي او دوهمې نسخه کې "که ديدن دې د چا خوښ وي و ته ګوره". او د "پ" په دويمه نسخه کې داسې راغلې ده: "که ديدن دې حبيب خوښ وي ورته ګوره".
(۱۱) د "پ" لومړي نسخه "ګومان مه کړه چې به سترګو له بيا ورشي". د "پ" په دوهمه او د "خ" په لومړي نسخه کې داسې راغلي ده: "ګومان مه کړه چې بيا سترګو له ورشي". او د "خ" په دويمه قلمي نسخه کې داسې راغلې ده: "ګومان مه کړه چې نه سترګو له ورشي".

دا په هره دوزخ چې خېژي بېل بېل نښ دي ‎ ‎ هر چې پر پوځي هغه نه شي ځنې بيا

که جنت په زهد نه دي بې کرمه (۱) ‎ ‎ هر سړی دې خپله غاړه کا ادا

که د نفس (۲) دپاره سل محنته وکړي ‎ ‎ يو محنت به دې په کار نه شي فردا

که تمام جهان په خپله ګېډه وخوري ‎ ‎ ياد به نه شي په درود او په دعا

که يوه دانه (۳) د وږي په لاس ورکړي ‎ ‎ هم دغه به دې توښه شي د عقبا (۴)

که يو غاښکی او په تږي لره ورکړي ‎ ‎ د دوزخ اوستا ترميان به شي دريا

که يو ځله سر د خدای دپاره (۵) ټيټ کړې ‎ ‎ په قيامت به سربلند شې تر هر چا

بازار دا دی که ځوك سودا وسودا کاندي ‎ ‎ په هغه جهان نه سود شته نه سودا

آشنايان که ځوك (۶) پوهېږي نن يې وخت دی ‎ ‎ چې زارېږي يو آشنا تر بل آشنا

که ژوندون دی خو هم دا دی په جهان کې ‎ ‎ چې له چا سره تېرېږي په خندا (۷)

خدای امان راکړه له هسې زندګۍ (۸) ‎ ‎ چې ته بد وايې له بله، بل له تا

نړ هم ښه دي که په صلح او په صلاح وي ‎ ‎ نه شکرې په فتنه او په غوغا

نس په خاور و په خس ډك ښه دی بې ځه (۹) ‎ ‎ نه هم په خاروخس يخه حلوا

ماته ملا په مشقت په محنت ښه ده (۱۰) ‎ ‎ نه حرامه هميانۍ د چا تر ملا

ړوند بهتر دی چې څه نهويني په ستر ګو ‎ ‎ نه چې ستر ګې په پردي حرام کا وا (۱۱)

ګونګ بهتر دی چې بې کامه بې زبان وي ‎ ‎ نه چې ژبه شي په بد ويل ګويا (۱۲)

کوڼ بهتر دی چې څه نه اوري په غوږو ‎ ‎ نه چې غوږ کاندي په بد ويل شنوا (۱۳)

ديواوه دکه په خوا در شي خو بهتر دی ‎ ‎ خدای دې بد سړی در نه ولي په خوا (۱۴)

---

(۱) په چاپي ديوانو کې "بې له فضله" راغلي دي. او د "غ" په دوهمه نسخه کې دا مسرۍ داسې راغلې ده: "که جنت په زاهدی نه دی چا موندلی".

(۲) په "پ" چاپ کې د "نفس" پر ځای "نس" راغلی دی.

(۳) د "غ" په دوهمه نسخه کې د "يوه دانه" پر ځای "يو ذره" راغلی دی.

(۴) د "پ" په دوهمه او د "غ" په لومړۍ نسخه کې د "عقبا" پر ځای "بقا" راغلی دی.

(۵) په پېښور چاپ، د "پ" په دوهمه نسخه او د "غ" په لومړۍ نسخه کې د "دپاره" پر ځای "په لوري" راغلی دی.

(۶) د "پ" لومړۍ نسخه: "آشنايان که څوك پوهېږي نن يې وخت دی". او په پېښور چاپ کې داسې راغلې ده: "آشنايان که څه پوهېږي دا يې وخت دی".

(۷) دا بيت د "پ" په دوهمه نسخه کې نه دی راغلی.

(۸) د "پ" په دوهمه نسخه او د "غ" په لومړۍ نسخه کې: "خدايه امان وکړې له هسې زندګيه". د "غ" په دوهمه نسخه کې: خدای امان وکړې له هسې ژوندګۍ سره.

(۹) دا بيت د "غ" په دوهمه نسخه کې نه دی راغلی.

(۱۰) دا بيت د "غ" په دوهمه نسخه کې نه دی راغلی.

(۱۱) دا مسرۍ د "غ" په دوهمه نسخه کې داسې راغلې ده: "نه چې ستر ګې په پرديو دنيا نوا" او دا بيت د "پ" په دوهمه نسخه کې نه دی راغلی.

(۱۲) دا بيت په پېښور چاپ کې: "ګونګی ښه دی چې بې کامه وبې زبان وي. نه چې ژبه شي په بد ويل ګويا". د "غ" په لومړۍ او دوهمه نسخه کې: "ګونګ بهتر دی چې بې کامه بې زبان دی. نه چې ژبه شي په بد ويل ګويا". او د "پ" په دوهمه نسخه کې: "ګونګ بهتر دی چې مکام سرپا نه دی نه چې ژبه شي په بد ويل ګويا" راغلی دی.

(۱۳) دا بيت د "پ" په چاپ، د "پ" دوهمه نسخه او د "غ" په لومړۍ نسخه کې نه دی راغلی.

(۱۴) دا بيت د "پ" په دوهمه نسخه کې داسې راغلی دی: "ديو دده که پخوا در شي بهتر وي که له چا سره هم مردي اژدها". او د "غ" په دوهمه نسخه کې لومړۍ مسرۍ داسې راغلې ده: "ديو ليوه که پخوا در شي بهتر دی."

د جاهل تر همدمۍ نه به بهتر وي — که له چا سره همدم مروي اژدها (١)

که مشکل دي خو د نه روڼو رغول دي — سهل کار دی سودا و زیان د دې دنیا

سودا و زیان د دنیا واړه سهل کار دی — خرابی دې نه کا څوك په سهل کار سوا (٢)

چې د ورور او د عزیز زړه پرې آزار شي (٣) — حاصل مه شه هغه خپله مدعا

ښه خواره چې یوې خورې بل ورته ګوري — خواره نه دي هغه زهر دي ګویا

ګاه د نورو رضا بویه ګهې خپله — په کار نه ده همېشه خپله رضا (٤)

چې ښادي یې یو زمان وي یې غم تر تله — د غه هسې چارې نه کا نه یې دانا (٥)

لکه ځان هسې و بل و ته نظر کړه — لکه ستا دی هسې ځان دی د هر چا

منصفانو لره بویه چې انصاف کا — نه چې نغوته کا د حرص او د هوا

د سړي په خاطر هر څه هر څه کړ شي — هسې نه چې واړه وګنې روا (٦)

دین داران دې و خپل دین و ته نظر کا — څوك فکر و نه د صواب دي څوك خطا (٧)

خرابی دې نه کاندي خطا د چا له لاسه — څه نسبت دی د خطا و د عطا (٨)

هسې نه چې سړي واړه سره سم دي — څوك عالي (٩) دي څوك اوسط دي څوك ادنا

د هر چا حرمت په خپله اندازه دی — نه چې ځای مومي نفر د امرا (١٠)

٧

زه [رحمان] له چا شکوه شکایت نه کړم (١١)
نشته بل دوست او دښمن زما بې تا

١٩٤

---

(١) دا بیت د "پ" په دوهم نسخه کې نه دی راغلی.
(٢) دا بیت د "خ" په دوهم نسخه کې نه دی راغلی.
(٣) پېښور چاپ: "چې د ورور او د عزیز پرې زړه آزار شي". د "پ" دوهمه نسخه: "چې د ورور عزیز زړه پرې آزار یږي". د "خ" لومړی او دوهمه نسخه: ا- لومړی نسخه: "چې د ورور د عزیز زړه پرې آزاریږي". په دوهمه نسخه کې د "آزاریږي" پر ځای "زهیریږي" راغلی دی.
(٤) دا بیت د "پ" په دوهمه نسخه کې نه دی راغلی.
(٥) دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کې نه دی راغلی.
(٦) د "پ" لومړی نسخه: "نه چې همه واړه وګنې روا". او د "خ" په دوهم او د "پ" په دوهمه نسخه کې داسې راغلی دی: "نه چې وګنې همه واړه روا".
(٧) دا مسرۍ په "پ" چاپ او د "خ" په لومړی نسخه کې داسې راغلې ده "څوک فکر و نه د صواب څوك د خطا" په پېښور چاپ کې داسې راغلې ده: "څوك فکر و نه د ثواب کا څوك خطا". د "پ" په دوهمه نسخه کې "څوك فکر و نه د ثواب وی څوك خطا". او د "خ" په دوهمه نسخه کې "څوك پکر و نه د عطا دی څوك خطا" راغلی دی.
(٨) دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کې نه دی راغلی.
(٩) د "پ" چاپ، پېښور چاپ، او د "خ" په دوهمه نسخه کې د "عالي" پر ځای "اعلی" راغلی دی.
(١٠) دا مسرۍ په پېښور چاپ، "پ" چاپ، او د "خ" په لومړی نسخه کې داسې راغلې ده: "نه چې مومي کفر ځای د امرا"
(١١) د "خ" په لومړی نسخه کې: "رحمان شکر شکایت له هېچا نه کړم — نشته بل دوست دښمن ځما بې تا".
د "خ" په دوهمه نسخه کې: "زه رحمان شکر شکایت له چا نه کړم — نشته په جهان کې بل دوست دښمن ځما".
او د "پ" په دوهمه نسخه کې: "رحمان شکوه شکایت له هېچا نه کړم — نشته بل دوست دښمن ځما بې ما".

**۸ — ۱۷۲**

ته چې ماته والې چې په څه کوې ژړا — نه دې معلومېږي دغه (۱) خپل جور و جفا

ته جور و جفا کړې زه ژړا کوم دلبره — ستا که دغه نه وي دا به هم نه وي زما (۲)

څه بنا دې به کاندې طایفه د عاشقانو — رسم د بتانو (۳) که هم دا وي لکه ستا

دا خصلت چې ستا دی که هم تل په دغه شان وي — نه را معلومېږي د درد منو زړو دوا (۴)

یو دستامانې شو بل غوږ (۵) د رقیبانو — وار په وارې وژنې کله هغه کله دا

هر چې عاشقي کا که په قطع افلاطون وي — زه خو یې مجنون گڼم که نن وي که سبا

سپی هم په عذاب د جدایی د وژلو نه دی — زه خو گوندې ستا د کوڅې سپی شوم په دنیا (۶)

هیڅ مې په کار نه دی رحمان تا غواړم دلبره (۷)
زه په دا راضي یم باقي هر څه ستا رضا

**۹ — ۱۸۰**

عالمان دي روښنايي د دې دنیا — عالمان دي د تمام جهان پېښوا

که څوك لاره غواړي و خدای هم و رسول ته — عالمان دي د دې لارې رهنما

کیمیاگر که د کیمیا په طلب گرځي — هم مې د عالمانو ده کیمیا

په مجلس د عالمانو به سره زر شي — که څوك کاڼې وي که لوټه د صحرا (۸)

جاهلان دي په مثال د مړدگانو — عالمان دي په مثال د مسیحا (۹)

چې مړه یې له نفسه ژوندي کېږي — عالمان دي وارث هسې اولیا (۱۰)

هر سړی چې رتبه نه لري د علم — سړی نه دی خالي نقش دی گویا

زه رحمان حلقه بگوش د هر عالم یم (۱۱)
که اعلیٰ دی که اوسط دی که ادنا

---

(۱) د "پ" په لومړي نسخه کې "هغه" راغلی دی.

(۲) د "خ" دوهمه نسخه: ته جور و جفا کړې زه ملامت افسوس ژړا کوم — ستا که دغه نه وای دا به هم نه وو زما. د "ق، ک" چاپ او "ق" چاپ کې "له ما" راغلي دي او د "پ" په چاپ کې "دا به هم نه وو زما" راغلي دي.

(۳) د "خ" لومړي نسخه کې د "بتانو" پر ځای "خوبانو" راغلي دي.

(٤) چاپي دیوانونه: "نه را معلومېږي د درد من د زړه دوا". مصوره نسخه کې لومړۍ مسرۍ: "دا خصلت چې ستا دی که تل هم په دغه شان وي".
د "خ" دوهمه نسخه: "که دې جور وستم درست په دغه شان دی".

(۵) چاپي دیوانونه: "هر دور" او د "خ" لومړي نسخه کې: "غور زنگ" راغلي دي.

(۶) دا بیت د "خ" په لومړي او دوهمه نسخه او مصوره نسخه کې نشته، "ق، ک" چاپ کې داسې دی:
سپی هم په عذاب سره دې خدای چېرې مه نه کا — زه خو گوندې ستا د کوڅې سپی یم په دنیا
د "ق" چاپ: سپی هم په عذاب د خدای د وژلو یاره نه دی — زه خو گوندې ستا د کوڅې سپی شوم په دنیا

(۷) چاپي دیوانونه: "هیڅ یې په کار نه دی رحمان تا غواړي دلبره — دا نه مار رضا ده باقي هر چې ستا رضا".
مصوره نسخه: "هیڅ یې په کار نه دی رحمان تا غواړي دلبره — زه په دا راضي یم باقي هر چې ستا رضا".

(۸) "م، پ" چاپ: "که څوك کاڼې وي یا بوټی د صحرا". د "خ" لومړي نسخه: "که څوك کاڼې څوك لوټې د صحرا".
د "پ" لومړي نسخه: "که څوك کاڼې وي که څوك لوټه د صحرا".

(۹) د "پ" دوهمه نسخه: "عالمان دي وارث هسې اولیا".

(۱۰) د "خ" دوهمه نسخه: "چې مړه یې په نفس سره ژوندي کېږي — عالمان دي وارث هسې اولیا".

(۱۱) د "پ" دوهمه نسخه: "زه رحمان د عالمانو خاك پای یم".

کـه خيل زره غـواړې لـه چا — ځان صياد کړه د عنقـــا
د حباب کلاه پـه سر کړه — سوړ پـه آس شـه د هوا
لکـه خضر هسې پا خـــم — اوبـه وخښـه د بقـــا
لـه زمينـه قدم کېږده — پـه آسمان لکـه عيسا
د هغـه استاد شاګرد شـه — چې دې وښيي کيميا(۱)
دا چې ما درتـه بيان کړه — کـه حاصل کړې وارد دا

هالدطمع کړه ۱۰ — ۱۸۷

لـه خوبانو د وفا

دا دنيـا ده بې وفـــا — بې وفـا ده بې بقـــا
نه يې مخ شتـه نه يې خټ شتـه — لکـه لوټـه د صحـــرا
پـه يوه ګړۍ يې مخ وي — پـه يوه ګړۍ يې شـــا
پـه يوه ګړۍ دستا شي — پـه يوه ګړۍ زمـــا
پـه يوه ګړۍ يې درد وي — پـه يوه ګړۍ دوا
پـه يوه ګړۍ يې خوف وي — پـه يوه ګړۍ رجـــا
پـه ساعت کې يې بقـا وي — پـه ساعت کې يې فنـــا
پـه ساعت کې يې سکوت وي — پـه ساعت کې يې غوغـــا
پـه ساعت کې يې خنداوي — پـه ساعت کې يې ژړا
پـه ساعت کې يې وفـا وي — پـه ساعت کې يې جفـــا
پـه ساعت کې يې افلاس وي — پـه ساعت کې يې غنـــا
چې نـه شان لري نـه شکل — کلـه داشي کلـه دا

خدای خوک پښېمان مه کړه ۱۱ — ۲۰۰

پـه داسې رنګ بـــلا

پـه ښادي ښاد شوی نه يم د هېچا — تور تپ شوی يم پـه غم د هر آشنا(۲)
کـه زه طمع توقع لـه بلـه نـه کړم — د بل طمع توقع کېږي لـه ما

---

(۱) دا بېت د "پ پ" چاپ کې نشته.
(۲) دا مسرۍ د "خ" په لومړي نسخه کښې داسې راغلې ده: "نه ورېت شوی يم پـه غم د هر آشنا".

که مې و رو رکه مې عزیز دی که مې یار دی (۱) — واړه غواړي خپله خپله مدعا

په هر کور کې ژړاوان راته زګیروي کا (۲) — لاس مې نه رسي د هیچا په دوا

د دنیا خبرې واړه په دنیا شي — ما به څه کا خوک چې نه لرم دنیا (۳)

که په کلي کې مې کور دی زه ګومان کړم (۴) — چې کور نه دی دا مې کور دی په صحرا

چې څه کا پرې نه پوره وي نه نیمګړې (۵) — خوک به څه کا له هغو سره خندا

چې یې بند توښه وبله سره نه شي (۶) — تر هغه آشنا بهتر دی نا آشنا

۱۲ — ۲۰۹

په توده ځمکه استوګنه ده مشکله
څه به ژیست شي له ژواځ سره د چا

با د شاهي لري هر یو غلام دستا — د خاصانو په ځای ناست وي عام دستا

پخته کله وي چې لاف د پختګۍ کا — پختګان دي په داخم کې خام دستا

خو هم هومره یې په ننګ ونام نظر وي (۷) — چا چې نه وي او رېدلی نام دستا

همېشه به له مقامه بې مقام وي — هغه خوک چې لټوي مقام دستا

خو په خپلو وینو ګل غوندې غرق نه شي (۸) — و به نه وینې رخسار ګلفام دستا

صبح وشام په هغو خلقو باندې یو وي — چې آرزو لري هر صبح وشام دستا

بل کلام یې په زړه کله اثر کاندي (۹) — چې تر غوږ یې شي شیرین کلام دستا

فراموش کاندي هغه (۱۰) نور یې مستي — هر چې نوش کاندي باده په جام دستا

دام دستا د تور و زلفو عالم ګیر دی (۱۱) — تنها نه یم نښتی زه په دام دستا

---

(۱) په چاپي دیوانونو کې دا مسری داسې راغلې ده : "که مې ورور که مې عزیز که مې فرزند دی". د "خ" په لومړي نسخه کې داسې راغلې ده : "که مې ورور که مې عزیز دی که مې یار وي". د "خ" په دوهمه نسخه کې : "که مې ورور که مې عزیز که مې څه یار دی". راغلې ده.

(۲) دا بیت د "خ" په لومړي نسخه کې نه دی راغلی او په لوړو ټولو کې د "زګیروي کا" پر ځای "پراته دي" راغلی دی.

(۳) د "پ" لومړی نسخه : "ما به خوک څه کا نو چې نه لرم دنیا".

(٤) د "خ" په دوهمه نسخه کې د "ګومان کړم" پر ځای "یو یقین" راغلی دی.

(۵) د "خ" لومړی نسخه کې "چې دی نه پرې څه پوره وي نه نیمګړی" په "پ.پ" چاپ کې داسې راغلی دی : "چې پرې نه وي څه پوره او نه نیمګړی". د "خ" په لومړی نسخه کې "چې دې نه پرې څه پوره وي که نه نیمګړی" او د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې راغلې ده : "چې دې نه پرې څه نیمګړی نه پوره وي".

(۶) د "پ" لومړی نسخه : "چې یې هېڅ بند توښه وبله نه شي".

(۷) چاپي دیوانونه : "خو هم هومره یې نظر په ننګ ونام وي".

(۸) چاپي دیوانونه : "چې به خپلو وینو ګل غوندې غرق نه وي".

(۹) د "خ" دوهمه نسخه : "بل کلام به یې په زړه کله اثر که".

(۱۰) د "ق" چاپ او "ق.ک" چاپ : "هغه" او نوموړې مسری د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې ده : "فراموش که هغه نور جامونه واړه".

(۱۱) دا بیت په مصوره نسخه کې نشته. د "پ" په لومړي او دوهمه نسخه کې : "دام دستا د زلفو عالم ګیر دی". په "ق" او "ق.ک" چاپ کې داسې ده : "دام د زلفو دې دنیا کې عالم ګیر دی". او د "خ" په لومړي نسخه کې داسې ده : "بوی دستا د تورو زلفو عالم ګیر دی".

**۱۳** — **۲۱۹**

زه رحمان دعا سلام په هغه وایم (۱)
هر چې مالره راوړي سلام (۲) دستا

هر چې وويني په سترګو روی (۳) دستا — مخ یې کوږ وي همېشه په سوی دستا

بې دماغه به ترسره و ماله تېر شي — چې یې تېر شي تر دماغه بوی دستا

که لوی کمړي خدای یې ځایه خوی نه کمړي — چې په دا رنګه قامت دی لوی (٤) دستا

نو بهار شو عالم سیر د بوستان کا (۵) — خدای و ما وته بوستان کړ کوی دستا

د عیسیٰ له دمه دم وهلی نه شم — چې خوله بېرته شي په ګفتګوی دستا (۶)

هم په دامې لړ چشمانو نو (۷) لهېږي — چې یادېږي مې قامت د لجوی دستا

همېشه یې زړه په اور باندې سپند وي — و هغه ته چې خرګند شي (۸) خوی دستا

دلېر لا شه یې مانه وي په زړه کې — چې یې نقش وي په زړه ابروی دستا

و ځنځیر و ته یې څه لره را کاږي — لیونیو لره بس وي موی دستا

و ګمانګ و ته پېچیله ځان پرې باسي — چې و زړه و ته پرې باسي (۹) روی دستا

که ته سل ځله زما یې زه دستا یم (۱۰) — تلونی نه دی له ما جستجوی دستا

**۱٤** — **۲۳۱**

ګل لمبه شو د بلبل په آه رحمان (۱۱)
نه ګروهېږي یار په های و هوی دستا

خوی که په داشان وي دل آزار ستا — څه سبادي به کاندې طلبګار ستا

حیف چې اوریدله شي لیده نه شي (۱۲) — حسن و لطافت دی پرېوار (۱۳) ستا

---

(۱) د "خ" لومړۍ نسخه او مصوره نسخه: "رحمان تل دوعا سلام په هغو وایم".

(۲) د "خ" لومړۍ نسخه: "پیغام".

(۳) د "خ" لومړۍ نسخه: "بیان".

(٤) دا بیت د "خ" په لومړۍ نسخه کې نشته، په دوهمه نسخه کې د "لوی" پر ځای "دلجوی" راغلی دی.

(۵) چاپي دیوانونه، د "خ" دوهمه او مصوره نسخه: "نو بهار دی عالم سیل د بوستان کا".
د "خ" لومړۍ نسخه: "نو بهار به عالم سیر د بوستان کا".

(۶) دا بیت په مصوره نسخه کې نشته.

(۷) چاپي دیوانونه: "راود" او د "خ" درې واړه نسخې: "جوی".

(۸) د "خ" په درې واړو قلمي نسخو کې د "شي" پر ځای "وي" راغلی دی.

(۹) دا بیت په "ق ک" کې نشته. د "خ" په لومړۍ نسخه کې د "روی" پر ځای "موی" راغلی دی. او د "خ" په دوهمه نسخه کې "بوی" او په "ق" چاپ کې د "ګمانګ" پر ځای "ځنځیر" او د "روی" پر ځای "موږی" راغلی دی.

(۱۰) د "خ" درې واړه نسخې: "که سل ځله زه دستا یم ته ځما یې".

(۱۱) د "خ" لومړۍ نسخه: "ګل که سره لمبه شي د بلبل په آه رحمانه".

(۱۲) د "خ" لومړۍ نسخه: "حیف چې اوریدی شي لیدی نه شي په جهان کې".

(۱۳) د "خ" دوهمه نسخه: "په هر لور".

بیا دوباره نه گوري وبل ته (١) — هر چا چې لیدلی وي رخسار ستا

خدای زده چې ته یار د کوم یوه يې — هر طرف یاران دي صد هزار ستا (٢)

ځای د پښو ایښودو مونده نه شي — هومره عاشقان دي په دربار ستا (٣)

بل به هسې نه وي که يې خدای کا (٤) — ما غوندې خاکسار وهوادار ستا

بل گومان په ما باندې ومه کړه — عمر واره زه او انتظار ستا (٥)

عشق له حسنه حسن دی له عشقه — ته نگار زما يې زه نگار ستا

ته زما مطلوب يې زه طالب یم — ته زما طبیب يې زه بیمار ستا (٦)

ته که تازه گل د نوبهار يې — زه یم عندلیب په لاله زار ستا

جور که جفا ده که ستم دی — واره مې منلي دي یکبار ستا

جور و جفا څوك په بها پلوري (٧) — زه یم د جورونو خریدار ستا

یو تار که ضایع شي ستا د زلفو — ځان به صدقه کړم تر (٨) هر تار ستا

سل ازمېښتونه دې را وکړه — حیف دی چې لا نه شي اعتبار ستا (٩)

١٥ — تېر یم زه «خواجو» تر نوره (١٠) کاره — اوس مې ملا تړلې ده په کار ستا — ٢٤٦

که څوك یار په جهان غواړي یار دی دا — یار دی دا، که د جهان سینگار دی دا؟ (١١)

خیال د زلفو يې زما تر زړه چاپېر شو — یا ترگنجه چاپېر شوی مار دی دا؟

دا جهان دی خدای له عشقه پیدا کړی (١٢) — د جملهٔ مخلوقاتو پلار دی دا

---

(١) د "خ" لومړی نسخه: "بیا به دوباره ونه گوري بل مخ ته".

(٢) دا بیت د "خ" په لومړی نسخه کې نشته.

(٣) د "خ" لومړی نسخه: "په هغه ځای باندې چې ټول دی عاشقان ستا".

(٤) د "خ" لومړی نسخه: "بل به هسې څوك نه وي که خدای کا".

(٥) "ق.ك" چاپ: "عمر واره زه یم په انتظار ستا".

مصوره نسخه: "عمر واره زه یم انتظار ستا". د "خ" لومړی نسخه: "عمر واره او زه او انتظار ستا".

(٦) د "خ" لومړی نسخه: "ته زما نگار يې زه افگار ستا".

(٧) دا بیت په "ق.ك" چاپ کې نشته. قلمي نسخې: "جور د چا څوك په بها پیري".

(٨) په چاپي دیوانونو او ټولو قلمي نسخو کې د "تر" پر ځای "په" راغلی دی.

(٩) د "خ" دوهمه نسخه: "باری حیف دی چې لا نه شي اعتبار ستا".

(١٠) په چاپي دیوانونو کې "له هره کاره" راغلی دی.

(١١) دا مسری د "خ" په لومړی نسخه کې داسې راغلې ده: "یار دی دا که تمام جهان سینگار دی دا".

(١٢) دا مسری د "پ" په دوهمه نسخه کې داسې راغلې ده:

"دا جهان دی خدای په عشق کې پیدا کړی".

او د "خ" په دوهمه نسخه کې دا بیت بیخي نه دی راغلی.

تر عشق وار د ی کار بل په جهان نشته — تر همه کارونو وار د ی کار دی دا (۱)

بل بلبل به د ګل نوم اخستی نه وُ — که خبر وی چې ګل نه دی خار دی دا (۲)

بیا را تله دې جهان ته بل وار نشته — بل وار نشته بل وار نشته وار دی دا

د حباب عمر دې وګوره چې څو دی ؟ (۳) — که څوک شمار کاندي د عمر شمار دی دا

۱۶ — ۲۵۴

د مجنون صورت په زړه کړه نقش (؟) ګوره (٤)
ستا په عشق کې هسې خوار و زار دی دا

چې له تا سره په سر کاندي سودا — بل به نه وي هسې ماغوندې شیدا (۵)

نه به ماغوندې شیدا وي په جهان کې — نه به تا غوندې دلبر شي بل پیدا (۶)

ما د ستا جور و جفا دې قبول کړې (۷) — ولې نه شي د ژړا په ځای خندا

بې د ستا له مخه کون و که مکان دی — سنه تو سنه مې نه په دا شي نه په دا

جدایي به دې هیڅ رنګ قبوله نه کړم — خومې نه دی روح کالبوت سره (۸) جدا

لکه ور ستو مقتدیان ورانديې امام وي — ما په تا پسې ده کړې اقتدا (۹)

زه یې وینم درست جهان په تامین دی — که بادشاه دی د دې دور که ګدا (۱۰)

کاشکې خط د امانې و ما راکړې (۱۱) — چې له ما سره وعده کړې د فردا

زه چې له په تا نه یم مین شوی — ستا له لوري په ما شوې ده ندا

زه په تا باندې مین یم له ازله — نه چې کړې می نن ورځ ده ابتدا

---

(۱) دا بیت په "پ" چاپ کې داسې راغلی دی : "تر عشق غوره بل څه کار په جهان نشته — تر همه کارونو غوره کار دی دا". په "پ پ" چاپ کې "تر عشق غوره بل هیڅ کار په جهان نشته"؛ د "خ" په لومړۍ نسخه کې: "تر عشق غوره کار بل په جهان نشته — تر همه کارونو غوره کار دی دا". د "خ" په دوهمه نسخه کې "تر عشق غوره کار بل په جهان نشته" او د "پ" په دوهمه نسخه کې په عین شکل راغلی دی.

(۲) په "پ پ" چاپ کې "یو بلبل به د ګل نوم اخستی نه دُ"، د "خ" په دوهمه نسخه کې "لوم د ګل به بلبلان اخستي نه دو". او د "پ" په دوهمه نسخه کې دا بیت نه دی راغلی.

(۳) دا مسری په "پ پ" چاپ او د "خ" په لومړۍ نسخه کې داسې راغلی ده : "د حباب عمر ته ګوره چې څه دی ؟" په "پ" چاپ کې "د حباب عمر دې وګوره چې څه دی". د "پ" په دوهمه نسخه کې "د حباب عمر ته وګوره چې شودی" راغلی ده او دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته.

(٤) دا مسری د "خ" په دوهمه او د "پ" په دوهمه نسخه کې داسې راغلی ده : "د مجنون صورت په زړه کړه اې رحمانه".

(۵) دا مسری د "پ" په دوهمه نسخه کې داسې راغلی ده : "بل به تا غوندې دلبر شي راپیدا".

(۶) د "پ" لومړۍ نسخه : "نه به تا غوندې دلبر شي پیدا"، د "پ" په دوهمه نسخه او "پ پ" چاپ کې "نه به تا غوندې دلبر شي راپیدا". او د "خ" په دوهمه نسخه کې "نه به تا غوندې دلبر شي بیا پیدا" راغلی ده.

(۷) دا مسری د "خ" په لومړۍ نسخه کې "ما به صبر ستا په جور و جفا وکړ" او د "خ" دوهمه او د "پ" په دوهمه نسخه کې "ما به صبر ستا په جور په جفا کړ" راغلی ده.

(۸) د "خ" په لومړۍ نسخه کې "وبله" او په دوهمه نسخه کې "حُبله" راغلی دی.

(۹) دا مسری په "پ پ" چاپ کې داسې راغلی ده : "هسې ما تا پسې کړې اقتدا"

(۱۰) دا بیت په "پ" او "پ پ" چاپ کې داسې راغلی دی : "زه یې نه یم درست جهان په تامین دی — که بادشاه دی د دې دهر که ګدا". او ورستنۍ مسری یې د "خ" په دوهمه نسخه کې "که بادشاه د دې دهر که ګدا" د "خ" په مصوره نسخه کې داسې راغلی ده : "که بادشاه دی که وزیر دی که ګدا"

(۱۱) دا مسری په "پ" او "پ پ" چاپ کې "کاشکې خط د امانې و ما لره راکړې" راغلی ده.

چې دستا د عاشقۍ په تيغ شهيد شي — د رحمان غاړه به هاله شي ا د ا

**١٧ — ٢٦٦**

د رحمان وژړي رنګ وته نظر کړه
چې مدام په تا پسې کاندي ژړا (١)

هر چې ستا کوځه ما وا کا — ځای يې بر شي تر افلا کا (٢)

ځان هاله ور ته بادشاه شي — چې يې ستا د در ګدا کا (٣)

چې د ستا د در ګدا شي (٤) — بادشاهي و ته نور شا کا

نظر بې د ستا له رويه — نه په ارض نه په سما کا

مينه بې د ستا له مخه — نه په دين نه په دنيا کا

ستا په مهر و محبت کې — ځان جهان واړه فنا کا

د دنيا کور و کړي (٥) — ستا په مينه کې تالا کا

رضا ستا په رضا (٦) کړي دي — ترک خپله مدعا کا

و هر خواته چې ستا مخ شي (٧) — دی هم مخ په هغه خوا کا

که له چا سره جفا کړي — له هغه سره جفا کا

که له چا سره وفا کړي — له هغه سره وفا کا

که په چا چيري ژاړي — خو په تا پسې ژړا کا

که په چا چيري خاندي — خوله تا سره خندا کا

که مطلب يې د ديدار وي — ستا د حسن تماشا کا

که مطلب يې د ګفتار وي — ستا په ذکر مشغولا کا

د رښتينو مقام دا دی — که څوک مينه په رښتيا کا (٨)

**١٨ — ٢٨٣**

عاشقان په عاشقۍ کې
چې رحمان وايي هم دا کا

---

(١) دا بيت د "خ" لومړی او د "پ" د دوهم نسخو کې نشته.
(٢) دا غزل په مصور نسخه کې نشته او د "خ" په دوهمه نسخه کې د دوهم مسرې داسې ده : "ځای يې رسي تر افلاکه".
(٣) د "خ" په لومړی او دوهمه نسخه کې : "چې ځان ستا د در ګدا که".
(٤) "ق.ک" چاپ : "څوک چې ستا د در ګدا شي" ، او دا بيت د "خ" په لومړی نسخه کې نشته.
(٥) د "خ" لومړی نسخه : "د دنيا کور و کوټ" ، او د "خ" نيمګړی نسخه : "د دنيا کور او علونه".
(٦) د "پ" چاپ کې "قضا" راغلی دی.
(٧) د "خ" قلمي نسخه : "هری خوا ته چې ستا مخ وي". د "پ" لومړی نسخه : "په هره خوا چې د ستا مخ وي".
(٨) په "ق.ک" چاپ کې او هم د "ق" په چاپ کې د "رښتيا" پر ځای "رضا" راغلی دی.

چې امید په عمارت د دې دنیا کا — د کاغذ په کشتۍ سیر د دریا کا (۱)

د آسمان توسن هېڅ چا نه دی تېز لی — څوک به څرنګه سورلي د باد په شا کا

نه لېوه په آدمیت اموخته کېږي — نه امید د مروت شي له افلاکا

له فلکه د وفا امید باطل دی — کله د یوله آدمزاد سره وفا کا

زمانه په اسلام کفر سم ګرځي — فرق د تور و د سپین کله نابینا کا

ما د دهر علامت په سترګو ولید — په هر دم هزار پیدا هزار فنا کا

هیڅ امید مې د ایام په ګردش نه شي — چې فرصت به په خپل دور و مدارا کا

په خپل عمر به هېڅ بدلی نه وي — هغه چارې چې دی هر ساعت په ما کا

که د ګلو غونچه کېږدم په دستار کې — شوم طالع مې حلقه خار ځنې پیدا کا

که وزر و وته لاس کړم خاورې کېږي — که د خاورو په ارزو شم استغنا کا

جدايي د خدای بلا شوه نه توانېږم — خوشي زړه مې په دیدن پسې ژړا کا (۲)

هومره صبر دی عاشق سره لکومه — چې د ننه وعده موقوفه په سبا کا

که دا ور چا مې را وا غوندې دلبره — په نظر زما جلوه لکه دیبا کا

په خپل عشق کې (۳) که څوک به دا را باندې وايي — زه ګومان کړم چې هم زما تمنا کا

ملامت په عاشق بنایي دا دستور دی — چې روغ خلق په رنځور پورې خندا کا

عاشقي ننګ و ناموس دی و بله لرې — په روښانه ورځ به څرنګه څوک غلا کا

که زه طمعه کړم د ګلو له طالع نه — ما عاجز له د ګل په ځای خار درا کا (۴)

که زه ځان ژغورم په عشق کې له عالمه — زمانه مې په جهان باندې رسوا کا

همېشه به په عالم کې وي سرخرویه — چې ثنا لکه بلبل د خپل آشنا کا

دا ځواب [illegible] هغه کا چې د وي لیت
"که دلبر د دیدن مې پیاله را کا" (۵)

۱۹ — ۳۰۳

هغه ژوی چې مین وي ښه به خوب کا — چې مجنون غوندې کړمن وي ښه به خوب کا (۶)

---

(۱) دا غزل د "پ" په لومړي، دوهم او مصوره نسخه کې نشته. د "پ پ" چاپ کې د "سیر" پر ځای "سیل" راغلی دی.
(۲) د "غ" په لومړي او دوهمه قلمي نسخه کې د "ژړا" پر ځای "بلا" راغلې دی.
(۳) په "ق" چاپ او "ق ک" چاپ کې "ستا په عشق کې" راغلی دی.
(۴) دا بیت او ورپسې دوه بیتونه په قلمي نسخو کې نشته. دری بیت لومړی مسری په "ق ک" چاپ کې داسې ده: "که زه طمع کړم د ګلو له خپل بخته"
(۵) د "غ" دوهمه نسخه: "که دلبر د دیدن مسته پیاله را کا". د دولت دیوان: "که دلبر د دیدن مې پیاله را کا" ۱۴۳ مخ، پښتو ټولنه، ۱۳۵۳
(۶) دا مسری په چاپي دیوانو کې داسې ده: "چې فرهاد غوندې کوهکن وي ښه به خوب کا"، په مصوره نسخه او د "غ" لومړي نسخه کې داسې ده: "چې مجنون او کوهکن وي ښه به خوب کا" د "غ" دوهمه نسخه کې داسې ده: "چې مجنون او کوهکن دی ښه به خوب کا" او د "پ" دوهمه قلمي نسخه کې داسې ده: "چې مجنون او دیا کوهکن دی ښه به خوب کا"، او د پښتو چاپي دیوانو کې د "ژوی" پر ځای "زړی" راغلی دی.

هر نفس د سړي تله دي له جهانه (۱)  چې یې هر نفس رفتن وي ښه به خوب کا

چې سبا له خپله یاره جدا کیږي  که د سلو شپو کرهن وي ښه به خوب کا

عاشقي ده خدای له اوره پیدا کړي  که په اور کې یې وطن وي ښه به خوب کا (۲)

د اوبو تږی هم خوب کولی نه شي  څوک چې تږی د دیدن وي ښه به خوب کا (۳)

د رقیب له جوره خوب د عاشق نه شي  د هغو چې دیلو (۴) دښمن وي ښه به خوب کا

د مجاز بندي خو خوب کولی نه شي  چې یې زلفې طوق رسن وي ښه به خوب کا (۵)

٢٠ — ٣١١

خوب خندا له بې غمی شي (۶)  څوک چې ستا په خبر غمژن وي ښه به خوب کا

چې په ستر ګو کې یې خار وي ښه به خوب کا  چې په زړه یې غم د یار وي ښه به خوب کا

خوب له یاره سره هم د عاشق نه شي  چې یې یار په بل دیار وي ښه به خوب کا

په دنیا کې خوب هغه کا چې نادان وي  هغه زړی چې هوښیار وي ښه به خوب کا (۷)

کوم طالب مطلوب نیولی (۸) دي په خوب کې  هغه څوک چې طلبګار وي ښه به خوب کا

د دیدار نندې چا په پټو ستر ګو کړي  چې مطلب د چا دیدار وي ښه به خوب کا

بلا لار د مرګ تر لارې ګرانه نشته  چې په خوا کې هسې لار وي ښه به خوب کا

هرنګاه د دلبرانو ذوالفقار دی  هر چې غوځ په ذوالفقار وي ښه به خوب کا

دلبرم چې چلي خوب کولی نه شي  چې خورلي تور ښامار وي ښه به خوب کا

٢١ — ٣٢٠

زه د یار بنده هم خدمتګار یم  چې بنده او خدمتګار وي ښه به خوب کا

---

(۱) دا مسری په مصوره نسخه کې داسې ده: "هر نفس سړي په تله دی له جهانه".

(۲) د "پ" دلومړي نسخې نه پرته په ټولو کې "چه" راغلی ده.

(۳) دا بیت په چاپي دیوانونو او مصوره نسخه کې نشته، د دوهمه مسری یې د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې ده: "چې به تږی د دیدن دی ښه به خوب کا".

(۴) په چاپي دیوانونو او د "پ" په دوهمه نسخه کې د "دیلو" پر ځای "یار" راغلی دی.

(۶) په "پ" او "ب، پ" چاپ کې: "خوب خندا په بې غمی کیږي رحمانه  هر چې تا غوندې غمجن دی ښه به خوب کا".
د پېښور "ق، ک" چاپ: "هر چې ما غوندې غمجن دی ښه به خوب کا". د "خ" لومړۍ نسخه: "څوک چې تا غوندې دردمن دی ښه به خوب کا".
د "خ" دوهمه نسخه: "څوک چې ستا په خبر دردمن دی ښه به خوب کا"، مصوره نسخه: "څوک چې ستا په خبر غمجن دي ښه به خوب کا".
او د "پ" دوهمه نسخه کې داسې ده: "څوک چې تا غوندې غمجن دی ښه به خوب کا".

(۵) دا بیت په چاپي دیوانونو او نورو قلمي نسخو کې نشته د "خ" له دوهمې قلمي نسخې نه نقل شو چې ورد ستې مسری یې په اصل نسخه کې داسې ده: "چې یې زلفې په ګردن کړ طوق رسن دی ښه به خوب کا".

(۷) دا مسری د "ق، ک" چاپ کې داسې ده: "هغه زړی چې دانا دی ښه به خوب کا". او په نورو چاپي دیوانو کې د "ژړی" پر ځای "زړی" راغلی دی.

(۸) د "پ" دلومړي نسخې نه پرته په نورو ټولو کې "موندلی" راغلی دی. او هسې نو موړی بیت د "پ" په دوهمه نسخه کې نشته.

یادونه: لاندې بیت یوازې په دیوان د "خ" په دوهمه نسخه کې راغلی دی، او د اس لاندې نورو نسخو او دیوانو کې نشته.

دلبرم په چلي خوب کولی نه شي
چې خورلي تور ښامار وي ښه به خوب کا

هغه ژوي چې بې خدایه[۱] محبت کا — هغې واره بې ځایه محبت کا

محبت بې خدایه واره د زړه رنځ دی — که مدام له چنګ و نایه محبت کا

خرخاري ده چې بې یو ځبله[۲] کاندي — هر خود رای چې له خود رایه محبت کا

نتیجه یې ریش کنده جامه پاره وي — آدم زاد چې له چارپایه محبت کا[۳]

هغه سرای لره به تله وربانده ګران وي — هر سړی چې له دې سرایه محبت کا[۴]

بوالهوس به نه پتنګ نه پروانه شي — د مګس په څېر له ورایه محبت کا[۵]

چې د تورو زلفو سیوري په چا وشي — هغه کا له همایه محبت کا

ځکه دریبار متابعت کړم[۶] رحمان

چې هر ولړ رهنمایه محبت کا

۲۲ — ۳۲۸

اورنګ زیب چې آرایش د تخت و تاج کا — تخت و تاج به یې مرګی تاراج کا[۷]

په جهان کې به یې پاتې بند بد نوم شي — دی که چارې د کسرۍ که د حجاج کا

او به ستر ګولړه لاړې اور د زړه شو — خوک به څه شکل ژوندون په دا مزاج کا

جدا یې زما په زړه کا هسې چارې — لکه بازې په تارو او په دراج کا

زما او ښکې چې پیدا د زړه له یم شوې — لکه اوږې له کبابه نم اخراج کا

زه غمجن د عید په جشن خبر نه شوم — که نور خلق هوی و های ته احتیاج کا

هر ناوک چې د قضا له شسته خېژي

زمانه د رحمان زړه ورته آماج کا[۸]

۲۳ — ۳۳۵

د بې دردو همدمي[۹] به دې بې درد کا — د نامردو همدمي به دې نامرد کا

صحبت بې تاثیره نه دی دا حدیث دی — ګنګو نمرې هم په څېر د ګنګو زرد کا[۱۰]

---

(۱) د "پ" چاپکړ د "بې خدایه" پر ځای "بې پیاره" راغلی دی.

(۲) په چاپي دیوانونو کې "یو له بله" راغلی دی، او دا بیت په مصوره نسخه کې نشته.

(۳) دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته او د لومړۍ مسرې د "ریش کنده" کلمه د "خ" په لومړۍ نسخه کې د "ریش کندن" په شکل راغلې ده.

(٤) دا بیت په مصوره نسخه او د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته.

(۵) دا بیت د "پ" په دوهمه نسخه کې نشته په "پ" چاپ او "پ، پ" چاپ کې یې لومړۍ مسره داسې ده: "بلهوس به نه پتنګ و پروانه شي."

(٦) دا مسره په چاپي دیوانونو کې داسې ده: "رحمان ځکه دریبار متابعت کا"، د "خ" لومړۍ نسخه: "زه رحمان ځکه د یاره محبت کړم."

(۷) دا غزل په مصوره نسخه، د "خ" په لومړۍ نسخه او "ق، ک" چاپ کې نشته.

(۸) د "خ" د دوهمې قلمي نسخې کې "امواج" راغلی دی.

(۹) په مصوره نسخه د "خ" لومړۍ او د "پ" په دوهمه نسخه کې "همراهي" او د پېښور "ق، ک" چاپکړ "همدردي" راغلې ده.

(۱۰) دا مسره په "پ" نسخه کې او هم په "خ" نسخه کې داسې ده: "ګنګو نمرې د ګنګو په څېر د زرد کا".

هر کالي چې څوک په څمکه باندې کېږدي — هغه څمکه يې له جنسه د خپل گرد کا

په مجلس د ويږ ليو(۱) څوک ورمه شه — که صحيح وسلامت وي آه يې سرد کا

چې دويي له ميانه لرې شي رحمانه(۲) — معشوقې عاشق پخپله ناز پرورد کا

۲٤ — ۳٤٠

که په گنج د شاهي فخر شهريار کا — عاشقان يې د دلبرو په رخسار کا

خرقه پوشو په خرقه کې دی موندلی — هغه حظ(۳) چې په دنيا کې دنيادار کا

پتنگانو له ورکړ خدای په اور کې — هغه عيش چې بلبله په گلزار کا(٤)

نېک ساعت(۵) په بد بدل د هجران شه — په وصال کې غم د هجر ور د وخار کا

نس(٦) د گور او د مور يو دی په معنی کې — خو په چا يې تور لحد په چا بازار کا

د بېړې په دو بېړه چې خدای راضي شي — يگانگي د زړونو هلته کله کار کا(٧)

هغه مخ چې مادرزاد بنايسته نه وي — مشقت د مشاطې واړه مردار کا

يار د ناز له خوبه پاڅي پسې گرځي — چې فلک د عاشقانو بخت بيدار کا(٨)

بې له تا نه مدام سوزي دا يې حال دی — لکه شمع چې څوک بله په مزار کا(٩)

د مستۍ د هوښيارۍ يون څرگند وي — په هر چا کې چې خدوي هغه رفتار کا(۱۰)

د بلبلو نغمې زاغ کولی نه شي — هر سرود آواز په طور د خپل تار کا(۱۱)

رحمان هسې بې وقوف سوداگر نه دی — چې د دين متاع بدله په دينار کا(۱۲)

۲۵ — ۳۵۲

---

(۱) په قلمي نسخه کې "ويږ ليو" راغلی دی.

(۲) دا بيت د "خ" په لومړي نسخه کې نشته، د "خ" په دوهمه نسخه کې د "دويي" پرځای "د دهي" او په مصوره نسخه کې "د ودی" راغلی دی.

(۳) د "خ" په دوهمه نسخه کې "خوند" راغلی دی.

(٤) د "پ" لومړۍ نسخه او د "خ" لومړۍ نسخه: "هغه عيش چې بلبلې په گلزار کا"

(۵) په مصوره نسخه کې "نېک حمل" راغلی دی.

(٦) دا بيت د "خ" په لومړي نسخه کې نشته، په قلمي نسخه کې د "نس" پرځای "نفس" راغلی دی په "ق، ک" چاپ کې د "بازار" پرځای "گلزار" راغلی دی.

(٧) دا مسرۍ په چاپي ديوانونو کې داسې ده: "بيا ملاح د زړونو کله هلته کار کا" په مصوره نسخه کې داسې ده: "يگانگي د ملاحانو کله کار کا".

(٨) دا بيت د "خ" په لومړي نسخه کې داسې راغلی دی: "يار د زماله خوبه پاڅي پسې گرځي چې فلک د عاشقانو محنت بيدار کا".

(٩) دا بيت د "خ" په لومړي نسخه کې نشته، لومړی مسرۍ يې په "پ" او "پ پ" چاپ کې داسې ده: "نيمې شپې يې يادوتر سره پورې کيني". د "ق، ک" چاپ کې د "يې" پرځای "مې" راغلی دی. په مصوره نسخه کې دا مسرۍ داسې ده: "نيمې شپې مې تر سره وير دې پورې کيني".

(۱۰) دا بيت په "پ" نسخو او د "خ" نسخو کې داسې دی: "د مستۍ د هوښيارۍ يون څرگند وي په هر چا کې چې خدوی هسې رفتار کا". "ق، ک" کې لومړی مسرۍ داسې ده: "د مستۍ د هوښيارۍ يون سره څرگند دی" او د "خ" په لومړي نسخه کې دا بيت داسې دی: "د مستۍ د هوښيارۍ يون سره څرگند وي په هر چا کې چې خدوی هسې رفتار کا".

(۱۱) په "پ" چاپ کې د "تار" پرځای "کار" راغلی دی.

(۱۲) د "پ" په دوهمه نسخه کې "دنيا" راغلی دی.

ورځ چې بده شي عاقل و دانا څه کا ... چې قضا شي ورد وشاره حکما څه کا (۱)

مور و پلار خوښېږي فرزند له خدایه غواړي ... چې بد بخت شي ادې څه کا بابا څه کا (۲)

یار له یاره په لوی لاس کله بېلېږي (۳) ... چې لاس نه رسي یار څه کا آشنا څه کا

په ښېرو په دعا څه شي کم و ني خدای دی ... چې خدای نه کا ښېرې څه کا دعا څه کا

بخت په زور او په زر نه دي چا خپل کړي (٤) ... په دا کار کې ناتوان څه کا توانا څه کا

۲۶ — ۳۵۸

ای ﷺ پتنګ ولې شه چې وسو (۵)

نور د شمع خندا څه کا ژړا څه کا

زما او ښکې چې دا هسې شست و شو کا ... د محنت واره زما مخ په ولو کا (۹)

تل یې مخ وي تر خوبانو پورې ولسی ... عاشقي چې د چا اوښکې په شېبو کا

د عاشق د سینې چاک به ور څرګند شي ... که څوک سر و خپل ګرېوان وته فرو کا

د عشق اور چې شمع خود په سر قبول کړي ... پروانه به څه حجت د ځان په سو کا

ګل څه نه والې چې غرق په وینو ناست وي ... بلبل څه لره بې ځایه ګفتګو کا

زه که مرګ غواړم بې یاره ګرم خو نه یم ... جد ایې سرې په ځان پورې پکو کا

۲۷ — ۳۶۵

معشوقې په محنت نه دي چا موندلې

مګر خدای یې په ﷺ با ندې پېرزو کا

څوک یې ځله یې تاراج په جفا نه کا ... یار له هیچا (۷) سره مهر و وفا نه کا

که یې سر په بوسه ورکړم زه پوهېږم ... چې قبول به دغه عجز زما نه کا

چې په خپله رضا تللی ما درزاد وي ... هغه هیچېرې د نور و رضا نه کا

څو یې خپله مدعا حاصله نه شي ... مهرویان په خوله د خضر سودا نه کا

که یې سل ځله دعا کوم په عمر ... ګوش و هوش د دعاګوی په دعا نه کا

که آهو نه آشتین پسې وکاږم ... لکه سرو له خزانه پروا نه کا

---

(۱) دا غزل د "خ" په لومړي نسخه کې نشته.
(۲) د "پ، پ" چاپ کې دا مسرۍ داسې ده: "چې بخت بد شي ادې څه کا بابا څه کا".
(۳) د "خ" په دوهمه نسخه کې "خپلېږي" راغلې دی.
(٤) دا مسرۍ په مصوره نسخه او د "خ" دوهمه نسخه کې داسې ده: "بخت په زور و زاری نه دی چا خپل کړی". د "پ" په دوهمه نسخه کې داسې ده: "بخت په زور و په زر نه دی چا موندلی" او د پېښور "ق ک" چاپ کې داسې ده: "محبت په زور چا نه دی حاصل کړی".
(۵) د "پ" او "پ پ" چاپ کې "غلی شه" او د "ق ک" چاپ کې "اوسو" راغلی دی.
(۹) په چاپي دیوانونو کې "د مخ ابرو کا" راغلی دی.
(۷) په چاپي دیوانونو کې "له یاره" راغلی دی.

**٢٨ — ٣٧٢**

که آرام غواړې ناصح په عاشقۍ کې
دغه واړه ناروا کاروانه کا

ذره مې بې له خپل نگاره(۱) آرام نه کا — کامراني را څخه غواړي ناکام نه کا
بې ناکامه زیست محال دی په دنیا کې — د کوم آس په خوله کې د ځل لگام نه کا (۲)
د آسمان مانۍ به هم په قرار نه وي — سالک ځکه قصد د قصر و د بام نه کا (۳)
گاه یې کښېنوي په تخت کله په خاورو — زمانه رضا د هیچا مدام نه کا
بې له سروي چې آزاده خدای پیدا کړه — ترکې ځکه و هیچا ته سلام نه کا (٤)
کوه و دشت هم د خزان له غمه زېړ دي — ځکه زرکه و چمن ته خرام نه کا
چا چې سر دی په سجده و یار ته ایښی — دوباره له دې سجوده قیام نه کا (۵)
چې یې کله ده دیار په لوري لوښتې (۶) — لکه بحر هسې د روح مقام نه کا
نشستن د عاشق نشسته لکه شمع — خو صورت د عشق په اور کې تمام نه کا
چې محظوظ وي په تش بوی د مهرویانو — هغه فکر د بوسې د پیغام نه کا
چې لذت یې د سرو شونډو وي موندلی — نوره مینه د شرابو په جام نه کا
په هغو د لعل لبو مې حرام دی — څو د انور لذت په خپس حرام نه کا

**٢٩ — ٣٨٥**

ناصح هسې و خپل یار ته بې حجت دی (۷)
لکه عذر چې صاحب ته غلام نه کا

چې امید په عمارت د دې جهان کا — لکه کرښه په اوبو هسې نښان کا
د اوبو په مخ د کرښې بقا نشته — په نابود بانديې ناحق د بود گومان کا (۸)
نادانانو هسې دین په دنیا بایلود — لکه و ورکې دُر بدل په پارچه نان کا
د دنیا د دین نسبت (۹) و بل ته نه شي — اور او اوبو سره استوګه په څه شان کا

---

(۱) په "پ" چاپ او "ق" چاپ کې "یار" راغلی دی.
(۲) د "پ" په لومړۍ نسخه او د "خ" په لومړۍ نسخه کې "لغام" راغلی دی.
(۳) له دې بیت نه وروسته بېتونه او ځینې دابیت د "پ" په لومړۍ نسخه کې نشته.
(٤) دابیت د "خ" په لومړۍ نسخه کې نشته.
(۵) د "خ" دوهمه نسخه: "دوباره یې له سجوده قیام نه کا"
(۶) د "غ" دوهمه نسخه: "چې بې ذره وې تل د یار په لوري تللی". د "خ" په لومړۍ نسخه کې د "لوښتی" پر ځای "ایښی" راغلی دی.
(۷) د "خ" په دوهمه نسخه کې "لاجواب دی" راغلی دی.
(۸) دابیت په مصوره نسخه کې نشته.
(۹) د "خ" په لومړۍ نسخه کې "نښسته" راغلی دی.

عشق د نفس له خاصیته منـزه دی — کار د سترګو به خوله ځړنګ په دهان کا
لکه چشم و ګوش په کار کې وبله بیل وي(۱) — هسې دین و دنیا حکم ځان په ځان کا
په پیرۍ کې د ځوانۍ خیال دی هسې — لکه خوله چې د باغ سیر په خزان کا

## ۳۰ — ۳۹۳

بې درګاه یې بل ځای د رحمان نشته
په سفر استوګه خو مسافران کا

عاشقان د ناصحانو وینا نه کا — مست هاتي د مهوتانو پروا نه کا
واړه جور د دې دوران(۲) مې قبول دی — که خدای مې د خپله یاره جدا نه کا
چې د ګلو پریشانۍ شوه ور څرګنده — غوټۍ چې سر په زانو کېښو د خندا نه کا
و سېلاب ته د پرند وکې خدا استاد(۳) وي — زړه چې ژاړي سترګې ځړنګ ژړا نه کا
دنیا کل په احمقانو ده ورانه — دانا ځکه وابستګي د دنیا نه کا
چې یې زړه دی په هوا پورې تړلی — د حباب عمارت ځکه بقا نه کا
بې هنر دی چې خوله دین په دنیا پلوري — هنرمند سړی دا هسې سودا نه کا
که خوله والي هوښیار کوم دی وایه دا دی — چې یې خدای په نوره مینه په چا نه کا
ګدایي که ورپېښېږي دالي ځای دی — هر بادشاه چې دلجویي د ګدا نه کا (٤)
چې یې دل یې په یوه نګاه رغېږي — خدا انصاف دی چې دلبرې دوا نه کا
هر چې زړه یې وي په یار باندې بایللی — نوره مینه په چا یې له آشنا نه کا(۵)
چې تر غوږ یې وي وینا د آشنا شوې — هغه غوږ هرګز په نوره وینا نه کا
و به نه رسي د یار تر بلند بامه — چې د زړه غولی روښن په ژړا(۶) نه کا

## ۳۱ — ۴۰۷

زه رحمان د هغه یار په جفا خوښ یم
که اغیار مې خدای له میانه پیدا نه کا(۷)

که سړی د خپلې پوهې تقصیر نه کا — د خدای کړه به خوله په پوهه تغییر نه کا
خواه ناخواه به د تقدیر شوي(۸) ورپېښ شي — که خوله هیڅ یې نظر په تقدیر نه کا

---

(۱) "پ" چاپ او د پېښور لور چاپي دیوانونه: "لکه کار د ګوش و چشم سره بېل دی."
(۲) په چاپي دیوانونو او د "خ" په دو قلمي نسخو کې "دهر" راغلی دی.
(۳) په چاپي دیوانونو کې "حاجت" راغلی دی.
(٤) دا بیت د "خ" په دو قلمي نسخو کې نشته.
(۵) دا بیت او ورپسې دوه نور بیتونه په قلمي نسخو کې نشته.
(۶) په "ق، ک" چاپ کې "ژړا" راغلی ده.
(۷) "ق" چاپ او "ق، ک" چاپ: "چې اغیار مې خدای له میانه جدا نه کا" د "خ" لومړۍ نسخه او مصوره نسخه: "که اغیار مې تر دا میانه پیدا نه کا".
(۸) د پېښور په چاپي دیوانونو کې "کښلي" راغلی دی.

د هغو چې بخت بېدار شو غم یې نشته — که هیڅېري بېداري وشبګیر نه کا

دا له خپلې کم فهمۍ مونږ خو وایو — چې فلانی سړی تلاش وتدبیر نه کا (١)

دلګیري او خوشحالي که په خپل لاس وي — په خپل لاس به خپل سر هیڅوک دلګیر نه کا

معرفت د خدای خرګند دی په هر شه کې — سترګې وخوره چې څوک هومره نظیر نه کا

دا نفس په مثال برق صورت فانوس دی — برق به هیڅوک په فانوس کې اسیر نه کا

د دنیا سړي هم واره د ر مانند دی — کوم پادشاه دی چې منت د وزیر نه کا

کوم واده کوم د کوژدن ده په جهان کې — چې فلک یې واخر ته په ویر نه کا

په خوله هر یو سړی اسم د پیر اخلي — باري خه په کار چې نغوته د پیر نه کا

خه نسبې د قیامت نه دي لور خه دي — چې د پلار و پل په زویو تأثیر نه کا

هسې چاري له ناصحو واقع کېږي — چې له شره مې یې هیڅ غل وکاسیر نه کا

په مرده پسې تکبیر وکاروان شي — هیڅ ګومان په ځان د هسې تکبیر نه کا

په دنیا پسې د رهست عمر زهیر یږي — ځان یو دم د خدای د پاره زهیر نه کا

د عیال د پاره تېر تر سر و مال شي — دلجوي یې په لوه تهوك د فقیر نه کا

٤٢٣ — ٣٢

ګرم دی چې ناري د هجران اوري
واشنا وته کا تد په خیر خیر نه کا

ترحد تېره شوه په یار پسې ژړا زما — نه ګروهېږي په ژړا سره آشنا زما (٢)

که مې هره وینا دُر یا مرغلر شي — لا د غوږ لایق نه ګڼي وینا زما (٣)

په نارو به ما بېدار کړ که اوده وي — باري ولېښ راته اوده شو دلربا زما (٤)

زه مکتوب غوندې په پټه خوله ګویایم — خاموشي زما تېرې کا تر غوغا زما (٥)

کښت د عشق په توده ځمکه آسان نه دی — سمندر بویه چې زیست کا په صحرا زما (٦)

---

(١) دا بیت په مصوره نسخه کې نشته.

(٢) دا بیت په "پ" چاپ کې داسې راغلی دی: "د بېره شوه په یار پسې ژړا زما — نه ګروهېږي په ژړا آشنا زما". او د پېښور چاپ د "خ" په دوهمه او "پ" په دوهمه مصرع کې نه یوازې دا بیت بلکه د دې ردیف ټول بیتونه نه دي راغلي.

(٣) دا بیت د "خ" لومړۍ نسخه کې داسې راغلی دی: "که مې هره وینا دُر شي مرغلرې — لایقت د غوږ و نه کړي وینا زما". او د "پ" چاپ کې داسې راغلی دی: "که مې هره وینا دُر شي یا ګوهر شي — ستا د غوږ نه ده لایق وینا زما".

(٤) د "خ" په لومړۍ نسخه کې: "په نارو به ما پیدا که که خوب دی وړی — ولې وبښې راته اوده شد دلربا ځما".

(٥) "پ" چاپ: "زه مکتوب غوندې په پټه خوله ګویا یم — لاندې کړله خاموشۍ غوغا زما".

(٦) د "خ" لومړۍ نسخه: "کښت د عشق په توده ځمکه اسمان نکه — سمندر بویه چې زیست کا په صحرا زما". په "پ" چاپ کې: "کښت د عشق په توده ځمکه اسان نه دی — سمندر بویه په دې صحرا زما".

دا یار نه دی چې هجران له مانه بېل کړ — روح زما دی چې له تنه دی جدا زما (۱)

زه رحمان بې خپله یاره هیڅ نه غوارم (۲)

۳۳ — ٤۳۰

که قبول دي د خدای په دړ دعا زما

سل ځله که وخوري نا څېړان ځیګر زما — بېل به ځبله نه کا درد ستا او سر زما (۳)

صبر ستا په عشق کې دا خبره څوك اوزه (څوك) — نشته د دې چارې توان یو موی قدر زما (٤)

ستا له محبته جار واته وما ته عار دي (۵) — ولې خاورې نه شي په دا لاړ بشر زما

واړه معشوقې د عاشقانو خبر اخلي — بې له تا چې نه اخلي یو دم خبر زما

هیڅ انده مې نشته بې د ستا له جدا ئیه — نور انده وه به څه دي تر دغه بتر زما

خوب د کور و کلي په نار و زمار هم شو — څه چل دی (٦) چې نه شي ستا په زړه اثر زما

درست جهان که واړه ما رحمان له ره دلبر شي (۷)

۳٤ — ٤۳۷

چېرې دی دلبره بې تا بل دلبر زما

هسې یادې همېشه مدام زما — چې او را ذمې په هر صبح و شام زما

هر کلام چې بې د ستا له یاده وکړم — سل توبې دي په هغه کلام زما

زه که بې له تا له زړه آرام کړم په سل رنګه — نه شي نه شي په هیڅ رنګ آرام زما (۸)

ننګ و نام که ستا په مینه له ما درومي — زار شه ستا تر مینې ننګ و نام زما

چې قایم شوم په مقام د عاشقۍ — هېر شو دلته واړه بل مقام زما (۹)

څو د عشق په خم خانه مې داخل نه کړ — پخته نه شو دغه عقل خام زما (۱۰)

نن دې وخت دی که مې آه و فریاد اوري — څو چې خاورې نه دی هر اندام زما (۱۱)

---

(۱) د "خ" لومړۍ نسخه : " دا یاران چې دی هجران له ما بېل کړی — روح زما دی چې له تنه دی جدا زما ".
"پ" چاپ : " دا یار نه دی چې هجران له ما نه بېل کړ — دغه روح له تنه شه جدا زما ".

(۲) "پ" چاپ : " زه رحمان بې خپله یاره هیڅ نه غوارم — که قبول له خدای نه وي دعا زما ".

(۳) دا غزل د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته.

(٤) په "ق" او "ق ك" چاپ کې د "موی" پر ځای "جو" راغلی دی.

(۵) چاپي دیوانونه او د "خ" لومړۍ نسخه : " جار واته زما دروغ دی ". مصوره نسخه : " جار واته زما غلط دی ".

(٦) قلمي نسخې " څه چار ده ".

(۷) چاپي دیوانونه : " کل واړه جهان که ما رحمان لره دلبر شي ".

(۸) د "پ" نسخې : " بې له تا که زړه ارام کړم په سل رنګه — نه شي نه شي بیا په هیڅ رنګ ارام زما "
د "خ" لومړۍ نسخه او مصوره نسخه : " که بې تا د زړه آرام کړم په سل رنګه — نه شي نه شي په هیڅ رنګ ارام زما "

(۹) قلمي نسخې : " هېر شو دلې وته بل مقام زما ".

(۱۰) چاپي دیوانونه : " څو د عشق په خم خانه بې داخل نه کړم — پخته نه دی دغه عقل خام زما ".

(۱۱) د "پ" لومړۍ نسخه : " څو تر خاورو نه دی لاندې هر اندام زما ". د "خ" لومړۍ نسخه : " څو چې لاندې شي تر خاورو هر اندام زما ".
د "خ" دوهمه نسخه : " بیا به څوك درسوي پیغام زما ". مصوره نسخه : " څو لاندې تر خاورو هر اندام زما ".

هزار جام د صراحي دې فلك مات کړل — ځو به ګرځي په دا دور جام زما

زه رحمان به دانا کام کوم تر کومه
وايه (۱) کله به حاصل کړي (۲) کام زما

۳۵ — ۴۴۶

چې هرچا ليدلې نه وي يار زما — خبر دې دا ګډ والي بد په کار زما (۳)

هرهغه چې وي دلبر زما ليدلې (۴) — نه به کا انشاءالله انکار زما

سر زما د درګاه د هغه يار عزيز وي — بې له دې لار نشته بله لار زما (۵)

ما بې عشقه بل څه څېز زده کړې نه دی — چې څه دی هم دا دی واړه کار زما (۶)

خدای دې هيڅوك يو ځبله ازار نه کا — اې دلبره مه اخله ته ازار زما (۷)

ياره ستا په جدايي او په در غم کې (۸) — سيند د اوښکو درومي په رخسار زما

لوی دي که هلاك دي واړه ستا خبرې کاندي — بل ګفتګوی نشته په ديار زما (۹)

زه رحمان به لاف په عشق کې څه وهمه
خود به ځان ځرګند کا انتظار زما

۳۶ — ۴۵۴

سر زما سامان زما زار شه تر جانان زما — زار شه تر جانان زما سر زما سامان زما

زيان زما نقصان زما واړه د يار هجر دی — واړه د يار هجر دی زيان زما نقصان زما

ګل زما ريحان زما ستا رخسار و زلفې دي — ستا رخسار و زلفې دي ګل زما ريحان زما (۱۰)

مشك زما زعفران زما ستا د کوڅې خاورې دي — ستا د کوڅې خاورې دي مشك زما زعفران زما

فکر زما توان زما ستا په غم کې نه رسي — ستا په غم کې نه رسي فکر زما توان زما

آه زما فغان زما هيڅ په تا اثر نه کا — هيڅ په تا اثر نه کا آه زما فغان زما (۱۱)

---

(۱) د "خ" لومړۍ نسخه : "خدايه".

(۲) "پ" چاپ ، "ق" چاپ ، او "ق ک" چاپ : "شي".

(۳) قلمي نسخه : "چې هرچا ليدلې نه وي يار زما — خبر دی دا ګډ والي بد په کار زما".
د "خ" دوهمه نسخه : "چا ليدلې نه دی په جهان کې يار زما — څه شوه که بد والي په کاروبار زما".

(۴) قلمي نسخه : "هرچا چې زما دلبر ليدلې دی". د "خ" دوهمه نسخه : "هرچا چې يې ليدلې مهر و دلبري وي — نه به که انشاءالله انکار په کار زما".

(۵) چاپي ديوانونه : "سر زما د درګا د هغه يار عزيز وي — بې له دې نه نشته بله لار زما".

(۶) قلمي نسخه : "ما بې عشقه هيڅ نه دی نور زده کړي — هرچې دی همه غه دي واړه کار زما".
د "خ" لومړۍ نسخه : "خود به ځان ځرګند کا انتظار زما" دوهمه نسخه : "ما په عاشقۍ کې نور څه نه زده که باور کړی — هرچې دی د غه دی واړه کار زما".

(۷) قلمي نسخه : "هيڅوك دې خدای يو له بله ازار نه کا — اې دلبره مه اخله هرګز ازار زما".

(۸) قلمي نسخه : "ياره ستا د جدايي په غمونو کې". او دا بيت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته.

(۹) "پ" چاپ او د "پ ، پا" چاپ : "لوی هلاك کړی همه واړه ستا خبرې — ګفتګوی نشته بل په ديار زما".
"ق" چاپ او "ق ک" چاپ : "لوی واړه کړی همه واړه ستا خبرې — ګفتګو نشته بل څه په ديار زما".
مصوره نسخه : "لوی هلاك واړه ستا خبرې که". د "خ" دوهمه نسخه : "لوی هلاك همه واړه ستا خبرې که دلبره". او دا بيت د "خ" په لومړۍ نسخه کې نشته.

(۱۰) د پېښور "پ پ" چاپ او د "خ" قلمي نسخه : "ګل زما ريحان زما ستا د رخسار زلفې دی — ستا د رخسار زلفې دی ګل زما ريحان زما".

(۱۱) دا بيت په مصوره نسخه کې نشته.

دا پیران شیخان زما ستا په غم کې نه رسي ستا په غم کې نه رسي دا پیران شیخان زما (١)

زړه زما چشمان زما بې تا هیڅ حال نه لري بې تا هیڅ حال نه لري زړه زما چشمان زما

باغ زما بوستان زما بې تا میوه نه نیسي بې تا میوه نه نیسي باغ زما بوستان زما

وصل هم هجران زما ای رحمانه خیر دی
ای رحمانه خیر دی وصل هم هجران زما (٢)

٣٧ ٤٦٤

ستا په څېر نه دي خوبان لیدلي ما نه په غوږ و چېرې اوریدلي ما (٣)

هیڅ وفا له عاشقانو سره نه کا دلبران دي واړه ازمایلي ما (٤)

چې مې ستا وښکلي مخ ته دي کتلي بل یو مخ ته نه دي بیا کتلي ما (٥)

د زړه غولي مې نیولي ستا غمونو نور غمونه دي له زړه ویستلي ما (٦)

چې مې کار د عاشقۍ په لاس کې واخیست دي له بله کاره لاس وکښلي ما (٧)

نور غمونه مې له زړه نه دي وتلي ستا غمونه دي پکې کړلي ما (٨)

که جفا کوې که جور واړه ځای لري د ستا جور و جفا واړه دي منلي ما (٩)

زه رحمان بې یاره خوب و خنداته کړم
بې ده نه دي خوب خندا پسندلي ما (١٠)

٣٨ ٤٧٢

---

(١) په نورو قلمي نسخو کې دا بیت نشته او د "پ" په لومړۍ نسخه کې داسې دی:
"پیران شیخان زما ستا په غم را نه رسي ستا په غم را نه رسي پیران شیخان زما".

(٢) قلمي نسخې: "وصال زما هجران زما رحمانه واړه خیر دي رحمانه واړه خیر دی وصل هم هجران زما".

(٣) دا بیت په قلمي نسخو کې داسې راغلی دی: "نور خوبان د ستا په څېر نه دي لیدلي ما نه لیدلي نه په غوږ د اوریدلي ما".

(٤) قلمي نسخې: "دلبران د زمانې دي ازمایلي ما".

(٥) د "پ" لومړۍ نسخه: "چې مې ستا ښکلي مخ وته کتلي دي نور کاروند دي له لاسه غورځولي ما".
په "پ ب" چاپ کې: "چې مې ستا دې ښکلي مخ ته دي کتلي بل یو مخ ته نه دي بیا کتلي ما".
د "خ" لومړۍ نسخه: "چې مې ستا د ښکلي مخ وته کتلي دي نور بیا نه دي و بل مخونو ته کتلي ما".
د "ب" په دوهمه نسخه کې دا بیت نه دی راغلی او د "خ" په دوهمه نسخه کې دا ردیف "نسخې" نه دی راغلی.

(٦) قلمي نسخې: "د زړه غولي مې نیولي ستا غمونو دي نور غمونه دي له خاطره ویستلي ما".

(٧) قلمي نسخې: "چې مې کار د عاشقۍ په لاس اخیستی دی نور کاروند دي له لاسه اچولي ما".

(٨) قلمي نسخې: "هم په دا مې نور غمونه له زړه دواته چې په زړه کې ستا غمونه دي کړلي ما".

(٩) دا بیت په چاپي دیوانو کې نشته.

(١٠) قلمي نسخې: "زه رحمان بې یاره خوب و خنداته کړم
خوب خندا بې یاره کله دي پسندلي ما".

د "خ" لومړۍ نسخه:
زه رحمان بې یاره خوب و خنداته کړم
خوب خندا بې یاره کله پسندلي ما".

چې واده یې کا په ډول او په سرنا[1]     بیا پرې والي زما نه دوېر وینا

که مې هر څو دلبري او دلجوئي کا     زه پوهېږم دخپل یار په استغنا[2]

په یوه ګړۍ مې یار هم مې آشنا شي[3]     بیا مې بله ګړۍ نه ګڼي آشنا

دا زه خپله تسلي کوم یار بولم[4]     څه یاري ده د ناتوان او د توانا

یو زمان یو دم او بې خپله صنمه[5]     زه بهتره تر بقا ګڼم فنا

هر سړی په یوې چارې خدای مشغول کړ     زه مشغول کړم خدای د ترکو په ثنا

ما بې عشقه بل هنر نه زده ناصحه     په خندا[6] شه که نادان یې که دانا

چې مې غوږ په نارو نه باسي حیران یم     پروانه لري که وور وي که برنا[7]

بې دیار له ښه د بد نه دې خلاصه کا
د رحمان په زړه کې بله تمنا

۳۹     ٤٨١

چې یې نقش په زړه خیال شي د آشنا     صدقه یې سر و مال شي د آشنا

پس له مرګه یې تبغ هسې مخ روښانه وي     چې آشنا په تیغ حلال شي د آشنا[8]

په آسمان د آشنایۍ به یې مکان وي     چې زمین غوندې پایمال شي د آشنا[9]

خوشحالي زما د زړه په هغه دم وي     په هر دم چې زړه خوشحال شي د آشنا

روح هغه ساعت داخل ګڼم په تن کې     چې مې[10] دخل په وصال شي د آشنا

هم هغه یوه ګړۍ را باندې کال وي[11]     چې یوه ګړۍ محال شي د آشنا

نور د هیڅ قیل و قال مې په کار نه وي     چې تر غوږ مې قیل و قال شي د آشنا

زرغونه کاندې دانه زما د عیش[12]     چې په زړه مې زرغون خال شي د آشنا

---

(۱) د "خ" لومړۍ نسخه: "چې واده وي په ډول په سرنا بیا پرې زمانه دوېر وینا". د "خ" دوهمه نسخه: "چې واده یې وي په ډول او په سرنا بیا پرې والي زمانه دوېر وینا".
(۲) دا بیت د "خ" په لومړۍ نسخه کې داسې راغلی دی: "که یې هر څو دلبري او دلجوئي کړم زه پوهېږم دخپل یار په استغنا".
(۳) د "خ" په لومړۍ نسخه کې د "شي" پر ځای "وی" راغلی دی.
(٤) د "پ" او "پ پ" چاپ: "دا زه خپلې تسلی کړم یار یې بولم".
(۵) د "خ" لومړۍ نسخه "یو زمان یو دم بې خپله دلبره". او دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته.
(٦) په لوړو قلمي نسخو او دیوانونو کې د "په خندا" پر ځای "بخشنده" راغلی دی.
(۷) په چاپي دیوانونو کې دا مسرې داسې راغلې ده: "پروانه لري واده دی که برنا" د "خ" په لومړۍ نسخه کې داسې راغلې دی: "پروانه لري که زوړ وي که برنا". او د "خ" په دوهمه نسخه کې دا بیت نه دی راغلی.
(۸) مصوره نسخه: "چې زمین غوندې پایمال شي د آشنا".
(۹) دا بیت په مصوره نسخه کې نشته.
(۱۰) چاپي دیوانونه: "چې یې دخل په وصال شي د آشنا".
(۱۱) د "خ" لومړۍ نسخه: "هم یوه ګړۍ ورځ را باندې کال وي".
(۱۲) مصوره نسخه: "عشق".

نه بل څوك زما طبيب بې آشنا شته دي(١) — نه بل څوك به په مثال شي د آشنا

د رحمان نظر په هيڅ باندې نه وي
چې نظر يې په جمال شي د آشنا

۴٩١

٤٠

که ما بنام ترستوني سنکته کړې حلوا — سبا خواست کوي له خدايه د سنبوروا
په هيڅ حال کې دې قرار وصبر نه شي — لبوني کړې د بر حرص د بزې هوا
تمامي عمر تريار تر عزيز پورې — لوې گبېږې(٢) مختورن کړې هم رسوا
چې په خپله رسوايي دې پروا نه شي — نور به څه کړې په جهان د چا پروا
چې د نفس د پاره لاس وخدای ته نيسې(٣) — دا زحمت له خدايه غواړې که دوا
نفس بې شماره عالم پر پوست وکوهي ته — خدای دې نه کا نابينا د چا پيشوا(٤)
په روا په ناروا کله پوهېږي — وچارپای ته څه روا څه ناروا
چارپايان که غوږ وسترگې لري څه شو — په معنی کې نابينا دي ناشنوا

زه رحمان له هغه علمه(٥) پناه غواړم
چې له دينه له مذهبه وي سيوا

۵٠٠

٤١

دل و دين مې هغې ترکې کړ رها(٦) — لا يې نه حسابوي د ځان بها
د بنايست صفت يې څوک وحيران يم — په هيڅ رنگ يې موندنه شي انتها
د صورت له عيبه هسې پاکيزه دی — لکه ذات د وبېنته نشته دی په ها(٧)
که يې مخ په زلفو پټ وي پاک يې نشته — تل به گنج باندې پراته وي اژدها
لکه نمر هسې جلوه کا په شفق کې — چې په سر کا ندې او دنې د سوها(٨)
نه پوهېږم چې په کوم لاره درومم — چپ و راست مې رقيبان دي هزارها
خدای دې هسې تنها نه کا څوك په غم کې — لکه زه يم ستا په غم کې يک تنها(٩)

---

(١) د "خ" لومړۍ او دوهمه او مصوره نسخه : "نه بل څوك زما طبيب نه مې اشنا شته".
"ق" چاپ او "ق،ك" چاپ : "نه بل څوك زما طبيب او اشنا شته دی".
(٢) چاپي ديوانونه : "يوې گبېږې"
(٣) " " : "د چا نه نيسې"
(٤) "ق" چاپ : "اشنا"
(٥) مصوره نسخه : "زه رحمان له هغه خلکه پناه غواړم".
(٦) چاپي ديوانونه : "دل و دين مې په هغه ترك کړ فدا"
(٧) دا بيت د "خ" په دوهمه نسخه او مصوره نسخه کښ نشته.
(٨) دا بيت د "خ" " " کې نشته.
(٩) د "خ" لومړۍ نسخه : "خدای هسې رنگ تنها په غم څوك نه کا لکه زه ديار په غم کې يم تنها".

۴۲ — ۵۰۱

**همېشه د بېلتانه په غم کې لولم**
**زه رحمان نعوذ بالله منها (۱)**

که مين يې په خپل يار باندې رښتيا — اواره کړه اول دين، پسې دنيا

په وفا د دلبرانو غلط مه شه — دغه قوم دی بې وفا او کبريا

د خوبانو طايفه ده هسې شوخه — چې غوږ نه باسي د چا په واويلا (۲)

د ډېر ناز او د ډېر کبر له سببه — عمل نه کا په گفتار د اوليا

زړه و دين په نيم نگاه د سترگې يوسي — نه يې وېره له چا کېږي نه حيا

بل به هسې سرگردان په جهان نه وي — يا عاشق دی يا آسمان دی يا آسيا

ته چې ژغورې سر و مال په عاشقۍ کې — عاشقي دا هسې چېرې وي ورېيا (۳)

د جنت تر حور و ترېشه که يار غواړې — خدای دې نقد د چا نه کا ندې نسيا (۴)

د ساقي له لاسه هسې باده نوش کړه — چې دې غوښ کا د زړه خيرې دريا

چې يې کسب عاشقي شي د دلبرو (۵) — نظر نه کا ندې په کسب د کيميا

۴۳ — ۵۱۹

**يو گفتار ورلره بس کاندي رحمان**
**خدای به هر ساعت پوښتنه کړي بيا بيا**

عاشقي مې يې په زړه وکړ لگنه بيا (۶) — بېلتانه مې لمبې بلې کړې په سر بيا

که دفتر د خپل قسمت مې په خپل لاس وي — ما به ستا له غم (۷) وران کا دا دفتر بيا

ما لا نو مر د آشنايۍ اخستی نه و — جدايۍ يې راته جمع کړ لښکر بيا (۸)

پس له مرگه به يې بيا تر تا قربان کړم (۹) — که صورت مې خدای پيدا کړ په محشر بيا

د هجران محنت مې وار له زړه هېر شو — چې مې وليده په ستر گو ستا بشر بيا

---

(۱) د "خ" درې واړه نسخه: "زه رحمان اعوذ بالله منها".

(۲) دا بيت د "پ" په دوهمه نسخه کې داسې راغلی دی: "د خوبانو طايفې دې هسې شوخې چې غوږ نه باسي د چا په واويلا". او د "خ" په لومړۍ نسخه کې د "واويلا" پر ځای "انگولا" راغلی دی.

(۳) دا مسرۍ په مصوره نسخه کې او د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې راغلې ده: "عاشقي دا هسې چېرې ده ورېيا".

(۴) دا مسرۍ په پ نسخه کې داسې راغلې ده: "خدای دې نقد د چا ونه کا ندې نسيا".

(۵) دا مسرۍ په چاپي ديوانونو کې او هم د "خ" په لومړۍ نسخه کې داسې راغلې ده: "چې يې کسب عاشقي شوه د دلبرو". او د "ب" په دوهم او د "خ" په مصوره نسخه کې د "شوه" پر ځای "ده" راغلی دی.

(۶) د "ب" لومړۍ نسخه: "عاشقي مې يې په زړه وکړ اشر بيا". د "پ" په چاپ کړې لومړۍ مسرۍ داسې راغلې ده: "عاشقي مې په زړه او کړ لوگنه بيا".

(۷) د "خ" په لومړۍ نسخه او مصوره نسخه کې "له غمه" پر ځای "له لاسه" راغلی دی.

(۸) دا مسرۍ په چاپي ديوانو کې داسې راغلې ده: "جدايۍ دې راته جمع کړ لښکر بيا". او د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې راغلې ده: "بېلتانه يې راته جمع کړ لښکر بيا".

(۹) د "خ" په لومړۍ نسخه کې د "کړم" پر ځای "شوم" راغلی دی.

چې آسمان یې مخ پټ کړی په سحاب وُ(۱) — خدای وماوته خرګند کړ هغه نمر بیا

چې رقیب راته تړلی په ځنځیر وُ — خپل حبیب را باندې پرانت هغه ور بیا(۲)

په یوه نظر یې زړه راځخه یو ور — خدای دې خیر کا چې لا وکا بل نظر بیا(۳)

په وصال یې منت بار او وسه — په صدف کې دخل نه وي د ګوهر بیا

۴۴ — ۵۲۸

هغو بیا موند سعادت په دا دنیا — چې یې وکړ قناعت په دا دنیا(۴)

نه ملکونه د سلیمان په هزار کاله — نه یوه ګړۍ طاعت په دا دنیا

یو نفس د خدای په یاد واولې تر دی — نه د درست جهان دولت په دا دنیا

په دنیا کې لوټ هغو عالمو وکړ(۵) — چې یې وکړ عبادت په دا دنیا

که نعمت دی خو طاعت او عبادت دی — ګنې نشته بل نعمت په دا دنیا

که محنت که مشقت دی خو د دین دی — په کار نه دی بل محنت په دا دنیا

بې له خدایه هر چې دي همه فاني دي(۶) — که لذت دی که زینت په دا دنیا

که بادشاه دی آخر خاورو له درومي — څه عزت دی څه قربت په دا دنیا

تر هغه به بل نادان په جهان نه وي(۷) — هر چې غواړي فراغت په دا دنیا

نه چې څو وخته فرصت په دنیا غواړې(۸) — چا موندلی دی فرصت په دا دنیا

عمارت په سر د ریګو روان کاندي(۹) — هر چې کاندي عمارت په دا دنیا

د مستانو تر لغزشه څه کم نه دی — د سړي استقامت په دا دنیا

هر ژوندی چې دم ده په قبر ور شي — بس دی هومره نصیحت په دا دنیا(۱۰)

په روانو اوبو ور شه عمر ګوره — ډېر دی هومره اشارت په دا دنیا

---

(۱) دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کښې نه دی راغلی.

(۲) دا بیت د "خ" په لومړۍ او د "پ" په دوهمه نسخه کښې داسې راغلی دی: "خپل یې را باندې پرانت هغه در بیا".

(۳) دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کښې نه دی راغلی، د "پ" چاپ کښې یې وروستی مسره داسې راغلې ده: "خدای دې خیر کا چې لا بل وکړي نظر بیا".
او د "خ" په لومړۍ نسخه او د "پ" په دوهمه نسخه کښې داسې راغلې ده: "تر دې وګوره که لا وکا نظر بیا".

(۴) د "خ" په لومړۍ قلمي نسخه کښې دا غزل نه دی راغلی.

(۵) د "خ" په دوهمه قلمي نسخه کښې "په دنیا کې لوټ هغو زلمیو وکړ".

(۶) دا مسره د "خ" په دوهمه قلمي نسخه کښې او هم د "پ" چاپ کښې داسې راغلې ده: "بې له خدایه هر چې دي واړه فاني دي".

(۷) دا مسره په "پ" چاپ کښې داسې راغلې ده: "له هغه به زیات نادان په جهان نه وي".

(۸) دا مسره په قلمي نسخو کښې داسې راغلې ده: "نه چې چند ګاه فرصت په دنیا غواړې".

(۹) دا مسره په "پ" چاپ کښې "عمارت په سر د ریګ روان کاندي". او په "پ پ" چاپ کښې "عمارت په سر د ریګ به روان کاندي" راغلې ده.

(۱۰) قلمي نسخو کښې "بسکه ..." راغلی دی.

دا پاخه پاخه سرايونه محلونه ‏ خوبه وران شي عاقبت په دا دنيا

ورېږي ستر‌گي د آسمان څه هسې نه دي[1] ‏ چي څوك پرېږدي سلامت په دا دنيا

هر چي راشي هم واړه ځني درومي ‏ مسافر دی هر صورت په دا دنيا

رياضت په قيامت نه شي مرد هغه دی ‏ چي يې وكړ رياضت په دا دنيا

هم په دا خوی وخصلت به سبا پاڅي[2] ‏ خدای څوك مكره با خصلت په دا دنيا

هم هغه به يې خرمن وي پس له مرګه ‏ هر چي كاندي زراعت په دا دنيا

كه هغه جهان په دا كي ليده نه شي ‏ زه يې وينم علامت په دا دنيا

په قيامت به بنه توښه حُبله نه شي ‏ ما ليدلی دی قيامت په دا دنيا

امانت به د لحد په ميان كي پروت وي ‏ هر چي اوسي امانت په دا دنيا

نيك عمل حضور جنت دی طاعت بويه[3] ‏ چي حاصل كا څوك جنت په دا دنيا

نيك كردار هم نيك عمل هم نيك خويونه ‏ هم جنت دی هم راحت په دا دنيا[4]

ضديت د سړي عمر په عذاب كا ‏ په كار نه دی ضديت په دا دنيا

لاس په سر په سينه ايښي وهر چا ته ‏ هم دغه دی شرافت په دا دنيا

كه بلنده مرتبه د چا په كار وي ‏ لوی مقام دی عدالت په دا دنيا

بل ارمان به له جهانه يووړنه شي[5] ‏ مګر مهر محبت په دا دنيا

د هغه جهان سودا واړه دلي ده[6] ‏ كه څوك كا نه يي تجارت په دا دنيا

كه طالع د سړي نه وي جاروتلي ‏ هيڅ پته نه دی حقيقت په دا دنيا

نيك له نيكو سره بويه بد له بدو ‏ كه څوك غواړي ولايت په دا دنيا

ولايت دی خدای هغه له وركړی ‏ چي يې وراكړ سكونت په دا دنيا

كه تمام دنيا واړه سره يو شي ‏ نور به نه كا خپل قسمت په دا دنيا

كه څوك[7] مرد دی خو هغه دی په دنيا كي ‏ هر چي نه لري حاجت په دا دنيا

---

(۱) د "پ" نسخه او د "ق" لومړی نسخه: "ورېږي ستر‌گي د آسمان څه هومره نه دي."

(۲) قلمي نسخه: "هم په دا خوی وخصلت به پاڅا وه شي."

(۳) په قلمي نسخو كي "طالع" راغلی دی.

(٤) دا بيت د "پ" په نسخو كي نه دی راغلی، د "ق" په دوهمه قلمي نسخه كي: "نيك كردار له نيك عمله سره بويه" راغلی دی.

(٥) "ب" په "چاپ" "بل ارمان به له جهانه يورد نه شي."

(٦) "پ" "چاپ" "د هغې جهان سودا واړه دلي شي."

(۷) په قلمي نسخو كي "كه څه" راغلی دی.

چې رغبت یې د جمله بلاؤ سر دی — څوک به څه کا د لې رغبت په دا دنیا(۱)

په زړه باندې داغم هسې تېر شو — لکه تېر شو یو ساعت په دا دنیا

۴۵ — ۵۶۵

هوښیار مه ګڼه هوښیار د دې دنیا — بې وقوف دی وقوف له د دې دنیا

روښنایي په هغو زړونو ده حرامه(۲) — چې پرې کښېني ګرد غبار د دې دنیا

پوچ ګویي ده چې یې اهل د دنیا کا(۳) — هر کلام او هر ګفتار د دې دنیا

د طفلانو په څېر وار ه خاکبازي کا — هر چې کاندې کاروبار د دې دنیا

واړه ډکې خولې د پیو هلکان دي — کار دیده او پخته کار د دې دنیا

همېشه به بې وقوف او بې شعور وي — چې مخمور وي په خمار د دې دنیا

د شرابو هم لاهو مره مستي نه وي — لکه مست وي خمخوار د دې دنیا

هر بیمار له دارو په جهان شته دي — دارو نه لري بیمار د دې دنیا

د هر سوي علاج وشي په جهان کې — مګر سوی په شرار د دې دنیا

هر چې اچوي واورته واړه سوځي — مور به نه شي طلبګار د دې دنیا

ګرفتار یې همېشه په غم کې ډوب وي — هیڅوک مه شه ګرفتار د دې دنیا

تل به پروت وي په ظلمت او په تورتم کې — چې اسیر وي په کفار(۴) د دې دنیا

په مسلمو کې خاصه مسلم هغه دی — چې یې وشلاوه زنار د دې دنیا

څه وبت وته سجده څه ودنیا ته — بت پرست دی پرستار د دې دنیا

تن یې پاتو شي بې سره، سر یې لا ړ شي — سردار کله دی سردار د دې دنیا(۵)

زوی او لونه یتیمان کا ځني دړ ومي(۶) — بې وفا دي موړ او پلار د دې دنیا

همېشه به یې یو پېنه د غم په سر وي — چې په سر یې وي دستار د دې دنیا(۷)

واړه غم دی که یې پېرې که یې(۸) پلورې — نور څه نشته په بازار د دې دنیا

---

(۱) دا بیت په "پ" چاپ کې نشته.

(۲) د "خ" په دواړو نسخو کې "روښنایي ده په هغو زړونو حرامه". راغلی دی.

(۳) د "خ" په دواړو نسخو او "پ، پ" چاپ کې "پوچ ګویي ده چې یې حل د دنیا کاندي" راغلی دی

(۴) د "خ" په لومړۍ قلمي نسخه کې "ګفتار" راغلی دی.

(۵) دا بیت د "خ" په دوهمه قلمي نسخه کې نه دی راغلی.

(۶) په "پ، پ" چاپ کې: "زامن لونه یتیمان که ځني دړومي".

(۷) دا بیت د "خ" په لومړۍ قلمي نسخه کې نه دی راغلی.

(۸) د "پ" په نسخه کې "یا یې" راغلی دی.

هګي واړه نهګان دي تهګي کاندي — فروشنده او خريدار دي دنيا [1]

په دنيا به مينه نه کاندي هيڅېري — چې خبر وي په اضرار [2] دې دنيا

چې نظر د چا په دين او په ايمان وي — هغه نه کا انتظار د دې دنيا [3]

چې وېرېږي له کوهي او له ګرنګه [4] — هغه نه دړومي په لار د دې دنيا

آشنايان يې هم واړه مکاران دي — خړوېسا ده په مکار د دې دنيا

لوی، هلاك يې، هم واړه اغياران دي — يار دی چېرې په ديار د دې دنيا

چې پيدا شي هګي واړه فنا شي — راشه وګوره ناتار د دې دنيا

هر سړي له چې ورشي څني دړومي — مال يې لي دي رفتار د دې دنيا

په يوه ګړۍ بهار وي بيا خزان شي — بقا نه لري بهار د دې دنيا

که هزار هزار پښتي ورته تکېږدي [5] — بې بنياده دی ديوار د دې دنيا

که د اوسپنو حصار ترځان چاپېر کړي — سنبېنه وګڼه حصار د دې دنيا [6]

لکه سيوری د آفتاب په مخ کې ګرځي — نشته هيڅېر ته قرار د دې دنيا

هيڅ ګومان د لهتري ورباندې مه کړه [7] — لهتري ده وار په وار د دې دنيا

بې مقراضه غوڅوي د سړي عمر — هم د اليل او هم نهار د دې دنيا

پس له مرګه به حساب له سړي غوښت شي — پلاندازه او په مقدار د دې دنيا

عاقبت خو به يو موټی شي د خاورو — ګلعذار او ګل رخسار د دې دنيا

برابر به له ګدايه سره پا څي — شهزاده او شهريار د دې دنيا [8]

پاس به داغ وي د لئيم په سينه باندې — هر درم او هر دېنار د دې دنيا [9]

د قانع تر قناعته صدقه شه — هم دنيا او هم دينار د دې دنيا [10]

پس له مرګه به هم واړه مظلوم وي — ظالمان او ستمګار د دې دنيا

تر قيامت به د غه شل او د غه لس وي [11] — پوره نه که هيڅ چا شمار د دې دنيا

---

(۱) دا بيت د "خ" په لومړي نسخه کښې نه دی راغلی او د "ب پ" چاپ کښې داسې راغلی دی: "هم د واړه يې نهګان دي تهګي کاندي".

(۲) په چاپي نسخو کښې "اسرار" راغلی دی.

(۳) د "ب" نسخه: "هغه نه لري نظر په کار د دې دنيا". د "خ" دوهمه نسخه: "هغه نه لري هيڅ کار د دې دنيا".

(٤) د "خ" په دوهمه قلمي نسخه کښې: "چې يې وېره نشي له کوهه له ګرنګه".

(٥) قلمي نسخه: "که هزار هزار پښتي ورته کېږدي".

(٦) د "خ" په دوهمه قلمي نسخه کښې: "بې بنې وګڼه حصار د دې دنيا"، د "ب پ" چاپ کښې: "سنبېنه وګڼه ديوار د دې دنيا".

(۷) قلمي نسخه: "هيڅ ګومان د لهترې پرې مه کړه".

(۸) دا مسره د "خ" په دوهمه قلمي نسخه کښې داسې راغلې ده: "شهزاده او شهسوار د دې دنيا". (۹) دا بيت د "خ" په نسخو کښې نه دی راغلی.

(۱۰) دا بيت په "ب پ" چاپ کښې نه دی راغلی.

(۱۱) دا مسره په چاپي ديوانو کښې داسې راغلې ده: "تر قيامته د غه لس او د غه شل دی".

چې ایام پرې د کفن او غسل ورشي — بې پردې شي پرده دار ددې دنیا
په تخته باندې بیرون شي له حجابه — شرمناک او شرمسار ددې دنیا (۱)
تر هر چا به پېغمبر ځنه وه ډېره — که څه قرب وي یا وقار ددې دنیا
یو فساد به یې بیان په زلح نه شي (۲)
فساد و نه دي بسیار ددې دنیا

٤٦ — ٦٠٨

هسې مست یم ستا د شونډو په شراب (۳) — چې به نه وي بل داهسې مست خراب
لاس دستا په مینه اچوم و گل ته — لکه بوټي ته لاس اچوي غرقاب
دا سرخي او سفیدي دستا د مخ ده — که زما په مخ باران دی د خوناب (٤)
څه اثر به زما او ښکو په تا کاندي — لا تازه شي اور په او ښکو د کباب
عاشقان دې ستر گې رونې کا په عشق کې — دا خواب نه دی دا منزل دی د سیلاب (۵)
ما چې خال دستا د ورځو په میان ولید — نه بل هسې رنگ امام شته نه محراب (٦)
ښا پېرې چې لباره نه شي سبب دا دی — مخ دستا له شرمه نغاړي په حجاب (۷)

(۱) دا مسرې د "خ" په لومړي قلمي نسخه کې داسې راغلې ده : " شرمناک و شرمدار ددې دنیا ".
(۲) د "خ" په لومړي قلمي نسخه کې : " یو فساد به یې بیان تر رحمان نه شي ".
(۳) دا مسرې په پېښور چاپ کې داسې راغلې ده : " هسې مست یمه د شونډو و په شراب "
(٤) دا بیت په "پ" چاپ کې داسې راغلی دی : " دا سرخي او سفیدي ده ستا په مخ کې — که زما په مخ باران دی د سحاب ".
د "خ" په لومړۍ نسخه کې داسې راغلی دی : " دا سرخي او سفیدي چې ستا د مخ ده — دا زما په مخ باران دی که سیلاب ".
د "خ" په دوهم نسخه کې داسې راغلی دی : " دا سرخي او سفیدي خوستا د مخ ده — که زما په مخ باران دی د خوناب ".
د "پ" په دوهم قلمي نسخه کې داسې راغلی دی : " دا سرخي او سفیدي چې ستا د مخ ده — که زما د مخ باران دی د خوناب "
(۵) دا مسرې په "پ" چاپ کې داسې راغلې ده : " دا خواب نه دی منزل گاه دی د سیلاب ".
(٦) دا مسرې په "پ" پېښور چاپ کې داسې راغلې ده : " نه بل هسې رنگ امام شته د محراب ".
د "پ" په دوهم قلمي نسخه کې داسې راغلې ده : " نه بل هسې رنگ امام شته په محراب ".
(۷) دا مسرې په "پ" چاپ کې داسې راغلې ده : " مخ دستا له غمه نغاړي په حجاب ".

چې سبا شي ستا تر مخ پورې شرمېږي — ځکه زیست په توره شپه کاندي مهتاب

حجاب واخله مخ کړه تور د هغو خلقو — چې تحسین کا ستا په دور د آفتاب

هسې نه چې زه دلبر وایم و تا ته — خدای دې تا له درکړی دا خطاب

ستا د مخ په ورق باندې خط وخال دي — د مصحف په صحیفو باندې اعراب

ستا د حسن حساب هیڅ په رحمان نه شي — هم په دا چې بې حسابه دي بې حساب

یو کتاب په سربند کې چا ونه کړ (۱)
بې رحمان نه چې یې وکړ دا کتاب

۴۷ — ۹۲۱

چې یې ولید د ستا حسن بې حساب — لړدې قصه تا و پیدا شوله آفتاب (۲)

ستا له غم مې ستر غلې سرې ناغې شوې — یا خیمې د سیاه پوش سره طناب (۳)

په آرزو دې د نرگس ستر گې خلور شوې — غوټچه سره د زړه په وینو شوه غرقاب (۴)

که دې زلفې په مخ پېچو تاب شوې بنایي (۵) — و سپینه طاقت لري دا ورله تاب

زه چې خدای د ستا له غم سره آشنا کړم — خوشحالي مې نور نایاب شوه نایاب

ستر غلې مې د فراق په ژړا سره شوې — د سبزې اثر یې پا خپله له آب (۶)

مه خورشید چې دې بنایست پورې شرمېږي — ځکه مخ پناه کوي تر کوه قاف (۷)

زه دې پېژنم په اصل کې خاکي یې — ځان به خوځنې په گوتې له تراب (۸)

خو دې خیال د آشنا کړي په لیمه کې — خبر زده کړه ته دا وینکوله سیلاب (۹)

د رحمان بخت به هاله له خوبه وېښ شي
که ته ستر گې ورته پورته کړې له خواب (۱۰)

۴۸ — ۹۳۱

---

(۱) دا مسره په "ب پ" چاپ کې داسې راغلې ده: "بې رحمانه چې بې جوړ کړو دا کتاب". او ددې بیت لومړی مسره د "خ" په دوارو قلمي نسخو کې داسې راغلې ده:
"یو کتاب په سربند کې چا ونه کړ".

(۲) ددې بیت ردیف په "ب" چاپ کې نه دی راغلی او دا بیت د "خ" په دوهمه قلمي نسخه کې داسې راغلی دی: "چې مې ولید ستا حسن بې حساب لړدې قصه تاو پیدا شو د آفتاب".

(۳) دا بیت په "ب پ" چاپ کې داسې راغلی دی: "ستا په غم مې ستر غلې سرې ناغې شوې یا خیمې دی سیه پوش سره طناب" خو په نورو قلمي نسخو او "پ" چاپ کې دا بیت نه دی راغلی.

(۴) دا بیت په "ب پ" چاپ کې داسې راغلی دی: "په ارزو مې د نرگس ستر گې خلور شوې غنچه سره د زړه په وینو شوه غرقاب".
د "خ" په دوهمه قلمي نسخه کې داسې راغلی دی: "په ارزو د نرگس دوې ستر گې خلور شوې غنچه سره د زړه په وینو شوه غرقاب".
د "خ" په لومړۍ قلمي نسخه کې داسې راغلی دی: "په ارزو یې د نرگس ستر گې خلور شوې غنچه شوه د زړه په وینو کې غرقاب".
د "پ" په دوهمه قلمي نسخه کې داسې راغلی دی: "په ارزو د نرگس ستر گې خلور شوې غنچه سره د زړه په وینو کې غرقاب".

(۵) دا مسره د "خ" په لومړۍ نسخه کې (قلمي نسخه کې) داسې راغلې: "که دې زلفې په مخ پېچ، پېچ دی بنایي".

(۶) دا مسره د "خ" په دوارو قلمي نسخو کې داسې راغلې ده: "ستر غلې مې د فراق په ژړا سپین شو". او د "پ" په دوهمه نسخه کې د "سپین" او "سره" پر ځای "شنه" راغلی دی.

(۷) دا بیت د "خ" په دوارو قلمي نسخو او د "پ" په دوارو قلمي نسخو کې نه دی راغلی.

(۸) ددې بیت دوهمه مسره د "خ" په دوهمه قلمي نسخه کې داسې راغلې ده "ځان به خوځنې په گوتو له تراب". مگر په نورو ټولو قلمي نسخو او "پ" چاپ کې نه دی راغلی.

(۹) دا بیت پرته له "پ" چاپ څخه په نورو نسخو کې نه دی راغلی.

(۱۰) دا مسره د "خ" په دوهمه قلمي نسخه کې داسې راغلې ده: "که به ستر گې ورته پورته کړې له خواب".

لاس مې وتړي د زلفو په طناب — بیا مې وپلوري دسترګو په قصاب (۱)

هسې آب یې دی د دووسترګو په تیغ کې — چې بې سره په سر نه لري حباب

چې توسن د فلك زین کاندي له نازه — داهلال یې په ځای راوشي د رکاب (۲)

په درګاه یې د دوبږه کاندي د حسن — کنه ولی په لاس سپوږمۍ هم آفتاب (۳)

چې رایادې یې سرې شونډې سوریږن وا کړم (٤) — تر چشمانو مې بهیږي سره شهاب

چې د مخ و آب وتاب ته یې نظر کړم — راته هیڅ شي د ګلونو آب وتاب (٥)

چې نسیم یې د زلفینو راپیدا شي — درست مې ډوب کاندې په مښکو په ګلاب

چې د سپې اوازې واورم هسې خوښ شم — لکه څوك په نغمه خوښ وي د رباب

ماوې ګوندې مخ یې ووینم په خوب کې — باري چېرې شي بې یاره د چا خواب (٦)

په غزل کې خو دوه بیته انتخاب وي (۷)

۴۹ — ٦٤١

## د رحمان تمام غزل دی انتخاب

هر مطرب چې غوږی تاو کا د رباب — په دا تا و کې زما زړه کاندي خراب (۸)

چې سامع یې په نغمه په ترانه شم — دیوانه شم ګرېوان څیرې مست خراب

هم یې تار هم یې ګفتار هسې اثر کا — چې هیڅوك یې نه طاقت لري نه تاب

بو یې ساز بل یې اواز دی د لبستیو — دریم شعر پرې آغاز کا انتخاب

څلورم یې یو ساقي د ځنګه ناسته وي (۹) — چې مخې یې نه افتاب وي نه مهتاب

داڅلور واړه فتنې په څلور کنجه — او پنځم یې صراحي د میو ناب

شپږم وخت د نوبهار او وم ځواني د مې — اتم شغل د کتاب نهم رباب (۱۰)

چې دا هومره آفتونه سره ټول شي — تر وڅوك څرنګ ځنې کاندي اجتناب

---

(۱) دوې غزل پنځه بیته په مصوره نسخه کې نشته په چاپي دیوانونو کې د "وپلوري" پر ځای "وسپاری" راغلی دی.

(۲) قلمي نسخې: "داهلال په ځای راوشي د رکاب". د "خ" دوهمه نسخه: "دهلال پر ځای یې ونښلي رکاب".

(۳) "ق، ك" چاپ او "ق" چاپ: "کنه ولی په لاس نیولی دی مهتاب". د "خ" دوهمه نسخه: "کنه ولی په لاس سپوږمۍ هم د آفتاب".

(٤) چاپي دیوانونه: "چې په یاد کې مې سرې شونډې سپین رخسار دی".

(٥) "ق" او "ق، ك" چاپ: "راته هېڅ شي د ګلونو آب وتاب".

(٦) چاپي دیوانونه: "ما وې مخ یې ګوندې ووینم په خوب کې باری چېرې شي بې یاره خورد وخواب".

(۷) د "خ" لومړۍ نسخه: "په غزل کې یو دوه بیته انتخاب دي".

(۸) په چاپي دیوانونو او د "خ" په لومړۍ او دوهمه نسخه کې د "خراب" پر ځای "کباب" راغلی دی.

(۹) چاپي دیوانونه او د "خ" لومړۍ نسخه: "څلورم یې یو ساقي تر ځنګه کښیني"

(۱۰) قلمي نسخې: "شپږم وخت د نوبهار او د ځوانۍ اووم شغل د بیاض و د کتاب"

چې داهسې دلبران پرې اثر نه کا — یا به دیو وي یا دېوال وي یا دواب

راڅرګند به شي پرهېز د پرهېزګارو — که قادر شي په شاهد او په شراب(۱)

**۵۰**

زه رحمان له ریا زهده(۲) پناه غواړم

د ریا زهد عذاب دی هم عتاب

۶۵۲

ورقونه لټوم د هر مکتوب — پکې غواړم خال وخط د خپل مطلوب(۳)

یاتنور دی یادکان د آهنګرو — چې په عشق کې تصور کړم خپل قلوب

په خندا خندا ځان اچوي واورته — خدای خوښ مه کړه په جذبه د عشق مجذوب(۴)

زه چې غم د هر ویانو راپه زړه کړم — له دې غمه ولاړ شي زړه راڅخه ډوب

ګوره څرنګ عشق آسان کړه وعاشق ته — دامشکل مشقتونه د ایوب (۵)

په ژړا ژړا ترهسې حده راغی — چې ځان ړوند کړ په یوسف پسې یعقوب

عشق دے داچې معشوقه شوه وعاشق ته — نه رخسار د هر و یانو په اسلوب(۶)

هغه څه پوهېږي له هجره له وصاله — چې په خپله هم محب شي هم محبوب

**۵۱**

چې نظر یې له صورته په معنو کړ (۷)

و رحمان وته یکسان شو زشت وخوب

۶۶۱

چې نظر کړم په قسمت او په نصیب — راته هیڅ شي خپل تلاش وخپل ترتیب(۸)

مګر خود په خپله خدای د چا طبیب شي — ګنه نشته په جهان کې بل طبیب

راڅرګند دی په سود او زیان د رقیبانو — که خدای نه کاندې خپل یار د چا رقیب(۹)

چې خپل یار د چا رقیب شي دلیل دا دی — لکه څوک چې په وطن کې شي غریب(۱۰)

چې غریب شي په وطن کې فرق یې نه وي — که فرسنګ یې وي ترمیانه که جریب

ما په عشق کې هیڅ حاصل نه کړه بې غمه — هرچې والي واره(۱۱) سنه والي ادیب

---

(۱) مصوره نسخه: "که قادر شي څوک په شهد و په شراب". (۲) په "ق" چاپ او د "خ" لومړۍ نسخه کې "پرهېز" او په "ق ک" چاپ کې "امان" راغلی دی.

(۳) دامسری په چاپي دیوانونو او د "خ" په دوهمه قلمي نسخه کې داسې راغلی ده: "پکې غواړم خال وخط د خپل محبوب". د "خ" لومړۍ نسخه: "او پکې غواړم خط وخال د هر مطلوب".

(٤) دابیت د "خ" په لومړۍ او دوهمه نسخه کې داسې راغلی دی: "په خندا خندا ځان اچوم واورته خدای څوک مه کړه په جذبه د عشق مجذوب". خو په لومړۍ قلمي نسخه کې د "مجذوب" پر ځای "میزوب" راغلی دی. په "پ" چاپ کې داسې راغلی دی: "په خندا خندا ځان اچوي بل اورته خدای چې څوک کړي په جذبه د عشق مجذوب".

(۵) چاپي دیوانونه: "ګوره عشق څرنګ اسان کړه وعاشق ته دامشکل مشقتونه دایوب". د "خ" په لومړۍ نسخه کې د "ایوب" پر ځای "وعیوب" راغلی دی.

(٦) دابیت د "خ" په دوهمه قلمي نسخه کې نشته، ددې بیت په لومړۍ مسرۍ کې د "شو" پر ځای، په "پ" چاپ کې "نشه" په "پب" چاپ کې "شوه"، د "خ" په لومړۍ قلمي نسخه کې "شي" او د "پ" په دوهمه نسخه کې "واه" راغلی دی.

(۷) دابیت د "خ" په لومړۍ قلمي نسخه کې داسې راغلی دی: "چې نظر یې له صورته په معنو کړ ورحمان وته یکسان شي زشت وخوب".

(۸) ددې ردیف ټول بېتونه د "خ" په دوهمه قلمي نسخه کې نه دي راغلي (۹) دابیت په "پ" چاپ کې داسې دی: "راڅرګند دی سود وزیان د رقیبانو که خدای دې نه کاندې خپل یار د چا رقیب". په "پب" چاپ کې: "راڅرګند دی سود و زیان د رقیبانو که خدای نه کاندې خپل یار د چا طبیب". د "خ" لومړۍ قلمي نسخه کې: "راڅرګند دی پسورا واز د رقیبانو که خدای نه کاندې خپل یار د چا رقیب".

(۱۰) دابیت په "پ" چاپ کې داسې راغلی دی: "چې خپل یار د چا طبیب شي مثال دادی لکه څوک چې په وطن کې شي غریب". مګر د "خ" لومړۍ نسخه کې یې دوهمه مسرۍ داسې راغلې ده: "لکه څوک چې خپل وطن کې شي غریب".

(۱۱) په "پب" چاپ کې د "داره" پر ځای "هغه" راغلی دی او دوهمه مسرۍ یې د "پ" په دوهمه قلمي نسخه کې داسې راغلې ده: "هرچې وایي واره به وایي ادیب".

۵۲ دښمن هم د سړي کله کله دوست شي
دوستي نه کاله سره حبيب ۶۶۸

| | |
|---|---|
| زه په سل رنگه راغب | ته په سل رنگه غايب |
| دا به څرنگ شي دلبره | چي زه مست يم ته تايب |
| که له جوره دې فرياد کړم | دا هم نه دی مناسب |
| که څه وايم نه مې رسي | زه مغلوب يم ته غالب |
| څه سيالي برابري ده | د مطلوب او د طالب[1] |
| دا ستا مهر و محبت کړو | خدای په ما باندې واجب |
| درد و غم دې هومره نه دی | چي يې وکښم په کاتب |
| جدايي ده ډېره سخته | دا رواح او د قالب |
| چي مجنون په ځنکندن شو[2] | زه يې پرېښودم نايب |
| وصيت يې راته وکړو | په څو رنگه[3] عجايب |

۵۳ چي روزي دې شه
زما وا ړه مراتب ۶۷۹

که مې وشي له دلبره ملاقات
پس له دې مې د استوګنه خدای نصيب کا
بيا به نه ځم له دې دره په حيات (٤)
په دا درکې که حيات وي که ممات

(۱) دا بيت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته.
(۲) د "خ" دوهمه نسخه: "چي مجنون له دې جهان ته".
(۳) "ق" او "ق،ک" چاپ: "په سل رنگه"
(٤) دا مسرې په "پ پ" چاپ کې داسې راغلې ده: "پا به نه سم له دې دره په حيات".

۵۴

ځای لري که زه و یار و ته سجده کړم (۱) | هغه یار زما قبله دی د حاجات (۲)

د خپل یار تر لعلو لبو به یې زار کړم | که شکرې وي که قند وي که نبات

دا زما د یار جلوه ده چې لیده شي | لکه لمر په صومعه د سومنات (۳)

تر ما لا په دلبرانو د پر مین دي | چې خبرې کا د کشف او کرامات

د ریا له زاهده زما توبه ده | چې یې کاندي څوک په رسم او په عادات

په ورځ پند او نصیحت والي وېل ته | په شپه ناست وي د مغان په خرابات

دین یې دام وي د دنیا په لار کې ایښی | پرې را رو وي وحشیان د مخلوقات (۴)

د هغو په لور یې سترګې وي ختلې | چې په لاس یې سر سایه وي یا زکات

زه رحمان له هسې اهله پناه غواړم (۵) | هر چې لاف کا په خلاف د مقامات

۶۸۸

آفرین د عاشقانو په همت | چې په عشق کې یک انداز وي یک جهت

نه یې هیڅرې تغیر نه یې تبدیل وي | که تمام جهان پرې والي ملامت

که څوک سل نصیحتونه ورته کاندي | غوږ یې نه وي د هېچا په نصیحت

چې په یار پسې تر ځان تر جهان تېر شي | څوک کولی شي دا هسې مشقت

که تمام عمر یې یار په سترګو ناست وي (۶) | تمام عمر ور سنکاریږي یو ساعت

که یو دم شي هغه یار ور ځنې لرې | هغه دم شي ورته عمر د قیامت

که دوزخ لره د یار په مینه درومي | دوزخ هم ورته جلوه (۷) کا د جنت

د عشق لار د توکل په پښو غوښتې | نه په پښو د ریاضت او دیانت (۸)

په تدبیر او په تلاش کله موندې شي | چې موقوف وي هغه کار په عنایت

---

په چاپي دیوانونو کې د "ځای لري" پر ځای "ښایي دا" راغلی دی.

(۲) دا مسری د "خ" په لومړي نسخه کې داسې راغلی ده: "هغه یار که قبول که دعاحاجات". "خ" په دوهمه نسخه کې داسې راغلی دی: "هغه یار زما قبله دی هم حاجات".

(۳) دا مسری په "ب" چاپ کې داسې راغلی ده: "لکه لمر په صومعه او په سومنات". په "پ" چاپ کې داسې راغلی ده: "لکه لمر په صومعه وسومنات".

(۴) دا بیت د "خ" په لومړي قلمي نسخه کې داسې راغلی دی: "ایښی دام وي د دنیا په لار کې نیسي بري را رو وي وحشیان او مخلوقات".

(۵) دا بیت د "ب" په دوهمه نسخه کې داسې راغلی دی: "زه رحمان له هسې علمه پناه غواړم هر چې لاف کا په خلاف د مقامات".

د "خ" په لومړي قلمي نسخه کې داسې راغلی دی: "زه رحمان حال پناه غواړم وخدای ته هر چې لاف کا په خلاف د مقامات".

(۶) دا مسری د "خ" په دوهمه قلمي نسخه کې داسې راغلی ده: "که تمام عمر مې یار په عبر کې ناست وي".

(۷) مسری د "ب" په دوهمه قلمي نسخه کې داسې راغلی ده:

"دوزخ هم ورته کوځه کا د جنت".

(۸) ... په لومړي قلمي نسخه کې داسې راغلی ده: "نه په پښو د ریاضت د وانیت".

دعاشق خاطر له غیره پاکیزه دی | د دریاب په مخ کې نه وي نجاست

٦٩٩ | ٥٠

خدای چې زړه د مطلوب کاڼی کړ رحمانه[1]

کاڼي پریوت د طالب په عمارت

---

وصال شپې بار له په بېلتون شوه الغیاث | د قیامت خوارۍ راپېښه په ژوندون شوه الغیاث

ما لالطمع د وصال نعمتونو ترې کول له | ناګهان کاسه[2] نسکوره د ګردون شوه الغیاث

هغه چار چې مې په لاس وه زه پرې نه وم پوهېدلی[3] | اوس چې پوه شوم له اختیاره مې بېرون شوه الغیاث

د وصال په طمع طوق د جدایۍ شو راپه غاړه | هغه طمع چې زما وه اوس طاعون شوه الغیاث[4]

په حکمت په عقل پېښې د عشق اخستی څوک نه شي[5] | په دا کار کې ما ملا د افلاطون شوه الغیاث

ما رحمان دیار وصال په اسانۍ موندلی نه دی[6]

زرد رویي مې سرخ رویي په ځګر خون شوه الغیاث

٧٠٥ | ٥٦

یار یاري را سره نه کړه الغیاث | نه یې ترس شي نه یې کړه کړه الغیاث

سر و مال واړه زما و دلارام ته | نه ارزېږي په ګنجکه الغیاث

په حملو حملو مې زړه وړي نه پوهېږم[7] | افریدی ده که خټک ده الغیاث

بېلتانه یې پېښور راته تنور کړ د | له خیبره تر اټکه الغیاث

---

(١) دا بیت د "خ" په قلمي نسخه کې داسې راغلی دی: "چې خدای زړه د مطلوب نرم کړ رحمانه کاڼي بوټي پروت طالب په عمارت".
او دوې بیت دوهمه مسرې د "خ" په دوهمه قلمي نسخه کې داسې راغلې ده: "کاڼي پروت وی د طالب په عمارت".

(٢) په چاپي دیوانونو کې "پیاله" راغلې ده.

(٣) د "خ" دوهمه نسخه: "زه پرې هېڅ نه پوهېدلم".

(٤) دا بیت په مصوره نسخه کې نشته.

(٥) مصوره نسخه: "په حکمت په عقل کله څوک په عشق پوهېږي".

(٦) د "خ" لومړی نسخه: "ما رحمان مثال په اسانه موندلی نه دی." د "پ پ" چاپ کې د "اسانه" پر ځای "اشنایي" راغلې ده.

(٧) د "خ" لومړی نسخه: "په حملو حملو یې زړه را نخدیوور".

خو چې راکاږي چوګان په مخ د زلفو — ګوی زما دا خراب زړه کړه الغیاث

هیڅ سبب مې لیده نه شي جفا کاندي — نه پوهیږم چې په څه کړه الغیاث

په اخلاص و په راستي ورته ولاړ یم — یار جفا هومره په څه کړه الغیاث[1]

سل خبرې کړه له صدقه ورته وکړم — یار یوه راسره نه کړه الغیاث

چې مې ویني له رقیبه سره خاندي — په ژړا مې لیمه سره کړه الغیاث

زه رحمان مدام د یار په رضا دروم

۵۷ — یار په خپله رضا تله کړه[2] الغیاث — ۷۱۵

چې ویلي مې له تا دی دا حدیث — سرنامه دهر انشاء[3] دی دا حدیث

چې آغاز مې کړ په مدحه د خوبانو[4] — څه ګنج بې بها دی دا حدیث

په ثنا د دل پسند و دلرباؤ[5] — دل پسند او دلربا دی دا حدیث

لکه باد د صبحدم چې غوټۍ واکا — هسې زړګه د لکشا دی دا حدیث

چې اوصاف مې د سروشونډو وکړې راوړه — خوږ تر قند و تر حلوا دی دا حدیث

نه پوهیږم چې اوبه دي د حیاتو — که نفس د مسیحا دی دا حدیث

د غونډ ژبو شاعرانو د خولې نه دی — څه هسې رنګ صفا دی دا حدیث

ستا د مخ نه که خوک شمس و قمر وايي — دروغ نه دی په رښتیا دی دا حدیث

که خوک وايي چې چاکړی دا حدیث دی

۵۸ — رحمان وايي چې زما دی دا حدیث — ۷۲٤

---

جي برهم کا عاشقي د چا مزاج — حکیمان يې درمانده شي په علاج

په آشنا پسې تل ژاړي په دوه سترګو[6] — داوبو په ځای خوناب کاندي اخراج

---

(۱) دا بیت او ورپسې دوه نور بېتونه په قلمي نسخو کې نشته. "ق، ک" چاپ: "یار وفا راسره نه کا الغیاث"

(۲) د "خ" لومړۍ نسخه کې د "تله کړه" پر ځای "نه کړه" راغلی دی.

(۳) د "خ" دواړو قلمي نسخو او د "پ" په دوهم نسخه کې: "سرنامه د هر اشنا دی دا حدیث".

(٤) د "خ" دوهمه قلمي نسخه: "چې آغازه يې کړه مدح د خوبانو".

(۵) د "پ" دوهم او د "خ" لومړۍ قلمي نسخه: "په ثنا د دل پسند و دلبرانو".

(٦) دا مسره د "خ" په لومړۍ قلمي نسخه کې داسې راغلې ده: "په اشنا پسې تل نه د واړو سترګو".

دوارہ لاس یې وي له دوارو کونو وللي — ډوب وي تل دعاشقۍ په لوی امواج (١)

په هغو کې چې څه بوی دعاشقۍ وي — پکې نه وي بوی د رسم او د رواج

ابراهیم ادهم څه هسې نادان نه ؤ — چې نظر یې یا په تخت ؤ یا په تاج (٢)

مجنون هسې رنګ مین په لیلی نه ؤ — چې په نورو یې موقوف وي احتیاج (٣)

لېونتوب له لېونیو تلونی نه دی — کړې راج په خونه وړشي که تاراج

کړې سر لکه منصور غوندې په دار شي
دغه دار دی و رحمان وته معراج

٥٩ — ٧٣٣

ح

به طلب د مهرویانو سرګردان دی زما روح
لکه باد د ګل په بوی پسې پرېشان دی زما روح

ستا د حسن و آفتاب ته ځان سپاري په تبسم کې (٤)
لکه صبح د ژړا په ځای خندان دی زما روح

چې مې ولید د ستا د جمال عکس په خپل ځان کې
هم په داد آیینې په خبر روښان دی زما روح (٥)

ستا د مخ د آیینې له برکته زما ځانه
همیشه لکه توتي هسې ګویان دی زما روح

---

(١) دا مسری په "پ" چاپ او د "خ" په لومړي قلمي نسخه کې داسې راغلی ده : " ډوب وي تل دعاشقۍ په امواج ".

(٢) دا بیت د "پ" په دوهم او د "خ" په لومړي قلمي نسخه کې داسې راغلی دی : " ابراهیم ادهم هسې نادان نه دی چې نظر یې یا په تخت وي یا په تاج ".

(٣) دا بیت د "پ" په دوهمه قلمي نسخه کې داسې راغلی دی : " مجنون هسې رنګ مین په لیلی نه دی چې په نورو یې موقوف دی احتیاج ".
د "خ" په لومړي قلمي نسخه کې دا بیت داسې راغلی دی " مجنون هسې رنګ مین په لیلی نه دی چې له نوره یې موقوف وي احتیاج ".

(٤) چاپي دیوانونه : "ستا د حسن و آفتاب ته چې سپارلي ځان شبنم دی". د "خ" لومړۍ نسخه : "ستا د حسن آفتاب ته ځان سپارلی د شبنم کې".
مصوره نسخه : " ستا د حسن و آفتاب ته ځان بسیار په شبنم کې ".

(٥) چاپي دیوانونه : " چې مې ستا د جمال عکس دی لیدلی په خپل ځان کی هم په داد آیینې په خبر حیران دی زما روح ".
د "خ" لومړۍ نسخه کې لومړۍ مسری داسې ده : " چې یې ولید د ستا د جمال عکس ځنې له ".

لکه رنګ د میو نابو چې لېده شي په شیشه کې

هسې رنګ په ضعیف تن کې نمایان دی زما روح

منتظر دې د وصال د ګلستان یم تل ترتله

سر تر پایه د شبنم په څېر چشمان (۱) دی زما روح

چې حاصله مې له حسنه روښنايي شوه په طلب کې

شپه او ورځ لکه آفتاب په لار روان دی زما روح (۲)

ستا په زلفو په رخسار پسې رحمان (۳) یم بې وطنه

مسافر د هندوستان خراسان دی زما روح

٦٠ — ٧٤٠

ستا وصال دی رابښلی زما روح — ستا هجران دی رانولی (٤) زما روح

ستا په مخ پسې یې مخ وینو راهي شو (٥) — له صورته دی وتلی زما روح

چې هرګز ملك الموت پرې نه پوهېږي — هسې شان دی تا وکښلی زما روح

ځان یې هسې ستا په مینه پسې ورک کړ — چې هیڅ چا نه دی لیدلی (٦) زما روح

که وي هم به تا ځنی وي کړې خدای کا — نه دی بلې خواته تللی زما روح

بلبل نه دی دا چې الوځي په ګلو — ستا په لور دی الوتلی زما روح

چې یې خاوري کما صورت د ستا په در کې — سر تر عرشه دی وکښلی زما روح

ته یې پېژنې چې څه دی یا څه نه دی — نور چا نه دی پېژندلی زما روح (٧)

٦١

زه رحمان له خپله ځانه خبر نه یم (٨)

چې په څه رنګ دی وکښلی زما روح

٧٤٩

---

(۱) "ق، ک" چاپ کی "ګریبان" راغلی دی.

(۲) دا بیت په مصوره نسخه کی نشته.

(۳) په چاپي دیوانونو کی د "یم" پر ځای "شو" راغلی دی.

(٤) په چاپي دیوانونو او د "خ" په لومړۍ او مصوره نسخه کی "پیوږ دلی" راغلی دی.

(٥) چاپي دیوانونه: "ستا په مخ پسې مې درست وجود رهي شو". د "خ" لومړۍ نسخه: "ستا په مخ پسې مې وینې رهي شوې".
د "خ" دوهمه نسخه: "ستا په مخ پسې مجنون عوندې رهي شو" او مصوره نسخه: "ستا په مخ پسې مې وینو چې رهي شو".

(٦) په چاپي دیوانونو کی "موندلی" راغلی دی.

(٧) دا بیت د "خ" په لومړۍ نسخه کی نشته.

(٨) چاپي دیوانونه: "زه رحمان له خپله یاره خبر نه یم چې یې څه شان دی کوتلی زما روح".
د "خ" دوهمه نسخه: "چې په څه رنګ دی وتلی زما روح".

# خ

اسحر سبا لېدلی ؤ دچا مخ	چې مې درسته ورځ ونه لیده داستا مخ
داخو مخ زما و تا وته خدای ښخ کړ	گنه هر یو آشنا گوري د آشنا مخ
ډېر مخونه دجفا ډېر راڅرگند کړل	لا به کله راڅرگند کړې د وفا مخ
خود مرگ په تماچه اوښتی نه دی	اوښتونی له تا نه دی دا زما مخ[1]
زه په تا پسې راغلی په داغ یم	که ته نه وې ما به څه کول په داغ مخ
ما به څه لره په تا پسې ژړا کړه	که مونده شوی بل دستا په څېر زېبا مخ
درقیب طمع مې نه وه ستا په در کې	رادې ؤښود په جنت کې د بلا مخ (۲)
زه به څرنگ درقیب ورمخ ته گورم	کله اهل سنت گوري د ترسا مخ
دچکنا چکنی بېلتون په نیمه شپه وې	ستا زما په حال څماز شود سبا مخ[3]

۶۲ رحمان ستا په مخ داورانه دنیا گوري
خدای بې تا راڅرگند مه کړه د دنیا مخ (۴) ۷۵۹

کله شولا کله خریدار یم ستا د مخ	تېر تر سر و مال په بازار یم ستا د مخ (۵)
بې دستا له مخه نور مې هېڅ په مخ کې نشته	هسې رنگ نتلی په ناتار[6] یم ستا د مخ
هېڅ په ستر گو نه وینم داخېل صورت چې کوم دی	ډېر وب تر هسې حده په انوار یم ستا د مخ (۷)
درد و آه و کار[8]م بهانه د تماکو کړم	سوی لوغرن مدام په نار یم ستا د مخ
نور و گړي واړه هغي د دنیا کار کا	زه همېشه غرق په انتظار یم ستا د مخ

(۱) چاپي دیوانونه او د "خ" لومړۍ او دوهمه نسخه : " اوښتونی له تا مه گنه زما مخ ".
(۲) "ق، ک" چاپ : " په جنت کی خدای را وښود د بلا مخ ". نورچاپي دیوانونه او د "خ" دوهمه نسخه کی : " په جنت کې دې راوښود د بلا مخ ".
(۳) دا بیت په قلمي نسخو کی نشته.
(۴) چاپي دیوانونه : "خدای بې تا ورڅرگند مه کړه د دنیا مخ ".
(۵) دا غزل د "خ" په لومړۍ نسخه کی نشته.
(۶) په مصوره نسخه کی د " ناتار " پرځای " انتظار " راغلی دی.
(۷) د "خ" دوهمه نسخه : "سوی لوغرن یم زه په نار داستا د مخ "
(۸) قلمي نسخې : " دود و آه د کار مې بهانه د تماکو " . او دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کی نشته.

شکر چې يې خلاص کړم د نور خلقو له منته ... سر په سجده ايښې منت بار يم ستا د مخ

**۶۳** — **۷۶۶**

هره خواچې درومم زه رحمان د زړه په سيل (۱)
بل مطلب مې نشته طلبگار يم ستا د مخ

چې پيدا شوه ستا چشمان داهسې شوخ ... نور به نه وي مردمان داهسې شوخ

کږې زلفې کږ ابرو لکه چې ستا دي (۲) ... نه لړم شته نه ماران داهسې شوخ

د پرغمونه شوخ شوخ شته په دادنيا کې (۳) ... ولې نه لکه هجران داهسې شوخ

مگر ديو وي چې بې غم وي په هجران کې ... گنهه نه به وي انسان داهسې شوخ

دا فتنې او فساد ونه به و وچيرې ... چې پيدا نه وي آسمان داهسې شوخ

داشنا له غمه زړه د آشنا نه چوي ... آفريده کړه خدای جهان داهسې شوخ (٤)

چې يوسف يې د دنيا په مطاع ورکړ (۵) ... پيدا امده شه بل کاروان داهسې شوخ

**۶۴** — **۷۷٤**

چې بوسه له ياره غواړي بې ادبه
خدای دې نه کاندي رحمان داهسې شوخ

---

---

پادشاهانو که قصرونه کړل بنياد ... ما دعشق عمارتونه کړل آباد (۶)

نوم د کوم يوه بادشاهسې يادېږي ... لکه نوم چې د مجنون او د فرهاد (۷)

---

(۱) "ق ک" چاپ کې د (سيل) پرځای "مينه" راغلی ده. (۲) دا مسرۍ په "پ" چاپ کې داسې راغلې ده: "کږې زلفان کږ ابروان لکه چې ستادي".
د "پ" لومړي نسخه: "لکه کږې زلف کږ ابرو دستارکج دي". او د "پ" په دوهم قلمي نسخه او د "خ" په دواړو قلمي نسخو کې دا مسرۍ داسې راغلې ده:
"لکه کږې زلف کږ ابروی ستادي".

(۳) دا مسرۍ په "پ" چاپ کې داسې راغلې ده: "د پرغمونه شوخ شوخ شته په جهان کې". په "پ پ" چاپ او د "خ" په لومړي نسخه کې داسې راغلې ده:
"د پرغمونه شوخ شوخ شته دي په جهان کې". د "پ" په دوهم نسخه کې: "د پرغمونه شوخ شوخ شته په دا جهان کې".
او د "خ" په دوهم قلمي نسخه کې داسې راغلې ده: "د پرغمونه شوخا شوخ شته په دنيا کې".

(٤) دا بيت د "خ" په دوهم قلمي نسخه کې نه دی راغلی او د "خ" په لومړي قلمي نسخه کې داسې راغلی دی: "داشنا له هجره زړه داشنا چوي ... افريده کا خدای جهان داهسې شوخ".

(۵) دا مسرۍ د "خ" په لومړي نسخه کې داسې راغلې ده: "چې يوسف غوندې د دنيا په مطاع پلورې". د "پ" دوهم نسخه کې: "چې يوسف د دنيا په متاع پلورې". راغلی دی.

(۶) دا بيت په چاپي ديوانونو او د "پ" په دوهم قلمي نسخه او د "خ" په لومړي قلمي نسخه کې داسې راغلی دی: "بادشاهانو که قصرونه کړل آباد ... ما د عشق عمارتونه کړل بنياد".
او د "خ" په دوهم قلمي نسخه کې دا بيت داسې راغلی دی: "بادشاهانو خو قصرونه کړه آباد ... ما د عشق عمارتونه کړه آباد".

(۷) دا مسرۍ په "پ" چاپ او د "خ" په قلمي لومړي نسخه کې داسې راغلې ده: "لکه نوم دی د مجنون او د فرهاد".

عشق عاشق لره یو هسې پیر استاد دی — چې به نه وي بل داهسې پیر استاد (۱)

دغه واړه کرامات د عاشقۍ دي — چې څوك قطب كا څوك غوث كا څوك اوتاد (۲)

د دنیا چارې همه واړه فاني دي — څوك په څه كا په دا چارو اعتماد (۳)

لكه سیورې چې د لمر په مخ كې ګرځي — نه استوګنه چېرته كاندي نه استاد

هیڅ وفا یې له هیچا سره و نه كړه — كه جمشید ؤ كه بهمن ؤ كه قباد

كه جمشید ؤ كه بهمن ؤ كه قباد ؤ — كه نمرود ؤ كه فرعون ؤ كه شداد (۴)

رسولي یې تر مراده هیڅوك نه دي — همه واړه هسې پاتې شو نامراد

نه چا ختم نه دعا ورپسې وكړه — كه یې آل كه یې عیال ؤ كه اولاد (۵)

زه رحمان د زمانې له جوره دې وهم
خپل صاحب لره په داد او په فریاد

۹۵ — ۷۸۵

كه قاصد یې د مقصود — او واړه كړه زیان او (۶) سود

هر چې د رښتیا په مخ كې (۷) — واړه وګڼه بهبود

هر چې وي سېوا له خدایه — واړه وګڼه نابود (۸)

رضا پا سله وقضا ته (۹) — مدام خوښ اوسه خوشنود

وهستۍ وته جلوه كا (۱۰) — لكه ابر هسې د و د

ته وځان وته نظر كړه — چې قبول یې كه مردود

ننداره چې د خپل صورت شه — چې مسلم یې كه جهود

---

(۱) دا بیت د "خ" په لومړي قلمي نسخه کې نه دی راغلی.

(۲) دا بیت د "خ" په لومړي قلمي نسخه کې نه دی راغلی او په چاپي دیوانونو او د "خ" په دوهم قلمي نسخه کې یې لومړی مسری داسې راغلی ده: "دغه واړه کرامت د عاشقۍ دی".

(۳) دا مسری په چاپي دیوانونو او د "خ" په دواړو قلمي نسخو کې داسې راغلی ده: "څوك به څه كا په دا چارو اعتماد".

(٤) دا بیت د "خ" په لومړي قلمي نسخه کې نه دی راغلی او لومړی مسری یې په چاپي دیوانونو کې داسې راغلی ده: "كه جمشید ؤ كه بهمن كه كي قباد ؤ".

(۵) دا بیت د "خ" په لومړي قلمي نسخه کې نه دی راغلی.

(۶) یوازې په "پ پ" چاپ کې "او" راغلی دی په نورو ټولو قلمي نسخو او "پ" چاپ کې "و" راغلی دی.

(۷) دا مسری په چاپي دیوانونو کې داسې راغلی ده: "پ" چاپ :- "هر چې د رښتیا په وړاندې". د "پ" لومړي نسخه: "هر چې د رښتیا په مخکښې" او د "خ" په دوهمه نسخه کې: "هر چې د ربه ښتیا په مخ کې".

(۸) دا بیت په "پ پ" چاپ کې داسې راغلی دی: "هر چې دی بغیر له خدایه همه وشمېره نابود".
لومړی مسری یې د "خ" په لومړي نسخه کې داسې راغلی ده: "هر چې د رښتیا له خدایه" په "پ" چاپ او د "پ" په دوهمه نسخه کې د دې مسری د "هر چې وي" پر ځای "هر چې دی" راغلی دی.

(۹) دا مسری په "پ پ" چاپ کې داسې راغلی ده: "رضا وسپاره قضاته". او د "خ" په لومړي قلمي نسخه کې داسې راغلی ده: "رضا پا سوله قضات".

(۱۰) د "خ" په دوهمه نسخه کې د "جلوه کا" پر ځای "نظر کړه" راغلی دی. او دا مسری د "خ" په لومړي قلمي نسخه کې داسې راغلی ده:
"وهستۍ وه جلوه کړه".

اُمتي دابراهيم شه — تابع مه شه د نمرود

دغفلت له خوبه پاخه — خوبه اوسي خواب آلود

مُقيد(١) اومشغول اوسه — په دعا او په درود

آسمان طوره په رکوع شه — زمين طوره په سجود

هر(٢) اشيا دحق ثنا کا — په نغمه لکه داود

که بېدار شي خود به اورې — په هر لوري داسرود(٣)

که اياز شې بندگي کې(٤) — نوربه نازکړې په محمود

هر(٥) اسباب د بنود بد و — مُهيا دی هم موجود

که دانايي وبله بېل کړه — فرمودۀ ونا فرمود(٦)

چې سپند نه شي په اور کې(٧) — نه وي خوند دبوی دعود(٨)

ځان له غشه(٩) پاکيزه کړه — لکه بحر نامعدود

هلاك ځکه شو رحمانه — چې بې پاك نه شو وجود(١٠)

٦٦ — ح — ٨٠٥

بې د يار له ذکره

نه زده بل گفت وشنود

زه که لافه دوفا کوم هرچند(١١) — هغه يار مې باورنه کا په سوگند

زه بې ياره هسې زيست کوم پېچهان کې — لکه زيست وکې(١٢) په مجمر کې دسپند

---

(١) يوازې د "پ" په لومړي نسخه کې "متعبد" راغلی دی په نورو ټولو کې "مقيد" راغلی دی.

(٢) په "پ" چاپ کې د "هر" پر ځای "ټول" راغلی دی.

(٣) دا بيت د "خ" په لومړۍ قلمي نسخه کې نه دی راغلی او لومړي مصرۍ يې په چاپي ديوانونو کې داسې راغلې ده: "که بيدار شې خود به وا وري". او د "خ" په دوهمه قلمي نسخه کې دا مصرۍ داسې راغلې ده: "که بيدار شې دابه اوري".

(٤) دا مصرۍ په "پ" چاپ کې داسې راغلې ده: "که اياز غوندې بنده شې". په "پ" لومړۍ نسخه کې داسې راغلې ده: "که اياز شې په بندگۍ کې". او د "خ" په لومړۍ قلمي نسخه کې دا ټول بيت داسې راغلی دی: "له ايازشه په بندگي لې نور به نازکړې په محمود".

(٥) په "پ" چاپ کې د "هر" پر ځای "ټول" راغلی دی. او دا بيت د "خ" په لومړۍ نسخه کې نه دی راغلی.

(٦) دا بيت د "خ" په لومړۍ او د "پ" په دوهمه نسخه کې نه دی راغلی او لومړۍ مصرۍ يې په "پ پ" چاپ کې داسې راغلې ده: "هر دانايي وبله بېل کړه".

(٧) په "پ" چاپ کې د "چې" پر ځای "څو" راغلی دی.

(٨) دا مصرۍ د "خ" په دواړو قلمي نسخو کې داسې راغلې ده: "نوی خوند بوی دعود". د "پ" په دوهمه نسخه کې: "نوی خوند ولوی دعود". او په "پ پ" چاپ کې داسې راغلې ده: "نه وي خوند او بوی دعود".

(٩) په "پ پ" چاپ، "پ" چاپ، د "پ" په دوهمه نسخه او د "خ" په لومړۍ نسخه کې د "غشه" پر ځای "خبثه" او د "خ" په دوهمه نسخه کې "غلوغشه" راغلی دی.

(١٠) دا بيت د "خ" په دواړو قلمي نسخو کې نه دی راغلی. په "پ" چاپ کې داسې راغلی دی: "هلاك ځکه شې رحمانه چې پاك نه شې دا وجود".

په "پ پ" چاپ کې دا بيت داسې دی: "هلاك ځکه شه رحمانه چې پاك نه شه دا وجود".

د "پ" په دوهمه نسخه کې دا بيت داسې راغلی دی: "هلاك ځکه شه رحمانه چې پاك نه شه دا وجود".

(١١) مصرۍ په چاپي ديوانونو کې داسې راغلې ده: "زه که لاف دوفا کړم هرچند". د "خ" په لومړۍ نسخه کې د "کړم" پر ځای "کوم" او د "خ" په دوهمه نسخه کې "وهم" راغلی دی.

(١٢) د "خ" په لومړۍ نسخه کې د "وي" پر ځای "دي" راغلی دی.

آبروي د طالبانو خپل مطلب (۱) وي — آبروي د غلامانو خپل خاوند
لکه یار مي سربلند دی په جهان کي — په تأثیر یې هسې زه شوم (۲) سربلند
چي مي مدحه د خوبانو کړه آغازه — هر کلام مي دل پذیر شو (۳) دل پسند
لکه خوند لري زما خوږې خبرې — په شکرو کي هم نشته هسې خوند
هغه قند چي خدای زما په خوله کي کېښود — حلوایانو څخه نشته هسې قند
لکه زه چي سخندان و هنرمند یم — بل به نه وي سخندان و هنرمند (٤)
په اشعار کي قوت ناك لکه مزري یم — ولې نه یم د مزري په څېر ګزند
هم په مدح بند پوهېږم هم په هجوه — ولې نه یم په دا چارو د بر خورسند (۵)
بې له عشقه که مي عیب که مي هنر دی — ما غوڅ کړی دی له ځانه بل پیوند
زه عاشق یم سروکار مي دی له درده (۶) — نه خلیل نه داودزی یم نه مهمند
چي و ما ته نصیحت کا څوك په عشق کي — ګویا پلار ته نصیحت کاندي فرزند
هر سړی چي آیینه په لاس کي خاندي — ګویا کاندي په خپل ځان پوري ریشخند

۶۷ — رنګ رېزان دي اول خپلې ږیرې رنګ کا
بیا حال دي و رحمان ته وایي پند (۷) — ۸۲۰

---

چي مي یار و لید په سینه د اغیار ګل — له غیرته مي لمبه شوه په خونبار ګل (۸)
دغه حق د بلبلانو په جانب دی — خدای دې نه کا مبتګیرك په لاله زار ګل (۹)

---

(۱) د "خ" په لومړي نسخه کي د "مطلب دی" پر ځای "مطلب دی" راغلی او د "خ" په دوهم نسخه کي "محبوب دی" او د "پ" په دوهم نسخه کي "مطلوب دی" راغلی دی.
(۲) په چاپي دیوانونو، د "خ" په لومړي نسخه او د "پ" په دوهم نسخه کي د "شوم" پر ځای "یم" راغلی دی.
(۳) په "پ" چاپ کي د "شو" پر ځای "دی" راغلی دی.
(٤) دا بیت د "خ" په لومړي قلمي نسخه کي داسي راغلی دی: "لکه زه چي سخندان هنرمند یم — بل به نه دی سخندان هنرمند".
(۵) دا بیت د "خ" په لومړي قلمي نسخه کي نه دی راغلی او په چاپي دیوانونو او د "پ" په دوهم نسخه کي یې لومړی مسری داسي راغلی ده: "هم په مدح هم په هجو بند پوهېږم". خو د "خ" په دوهمه قلمي نسخه کي دا مسری داسي راغلی ده: "هم په مدح بند پوهېږم هم په پوهېږم".
(۶) دا مسری په چاپي دیوانونو کي داسي راغلی ده: "زه عاشق یم سروکار می دی له عشقه". د "خ" په دواړو او د "پ" په قلمي نسخو کي د "سروکار" پر ځای "سربیکار" راغلی دی.
(۷) دا مسری په "پ پ" چاپ کي داسي راغلی ده: "نور بیا حال دی رحمان ته وایي پند"
(۸) مصوره نسخه: "خدای دی نه که مبتګیرك په لاله زار ګل".
(۹) دا بیت په مصوره نسخه کي نشته.

زه په وصل کې هجران هسې پېژنمه (۱) — لکه غوک چې خالي لاس وي په بازار ګډ

زړه مې بې خپله نګاره آرام نه کا — که هر څو يې کړم په نقش وپه نګار ګډ (۲)

په امېد د زلفو ونښتم په دام کې — روهېلي و مرساده دل په هندوبار ګډ

د دېدن په ګدايي کې مې ننګ نه شي — درويزه کړم د بتانو په ديار ګډ (۳)

د وفا د ګلو پاڼي پکې نشته — کاشکې مه وی د دې هم په ګلزار ګډ

که څخوا تر آشنايي بېلتون ليدی شوی — هېڅ بنده به د خدای نه وُ په دا کار ګډ

زه (رحمان) يې د فردوس له غمه خلاص کړم — چې په کلي په کوڅه شوم د خپل يار ګډ

۶۸ — ۸۲۹

---

پـه بزرګۍ (۴) هغه پاک پروردګار — موقوف مه شه په سړي د سړي کار

په سړي د سړي غرض موقوف شي — نور بې آبه بې حرمته شي ر و زګار

احتياج هسې بلا دی په جهان کې — چې پلار زوی کاندی زوی او زوی پلار

که د پير په خپل مريد باندې غرض وي — هيڅ يې نه وي په مريد باندې وقار (۵)

زمانه هسې په مخ ده بې رويه — چې غالب کا په اسلام باندې کفار (۶)

په ساعت کې شاه ګدای کا ګدای شاه کا — دا فلک ځکه بالا شي کج رفتار (۷)

چې هم عمر يې تاج وي په سر ايښی — ور په سر کاندي ګېډۍ د خس وخار (۸)

---

(۱) د "خ" په دوهمه نسخه کې "خراب کړم" راغلی دی.

(۲) دا بيت په مصوره نسخه کې نشته.

(۳) چاپي ديوانونه، د "خ" لومړۍ نسخه او مصوره نسخه: "درويزګر يم د بوتانو په بازار ګډ".

(۴) د "خ" په لومړۍ نسخه کې "په پاکۍ" راغلی دی.

(۵) دا بيت په چاپي ديوانونو کې نشته.

(۶) دا بيت په "پ" چاپ او "ق" چاپ کې نشته.

(۷) د "خ" دوهمه نسخه: "دا فلک ځکه پيدا شو کج رفتار".

(۸) دا بيت د "خ" په لومړۍ نسخه کې نشته.

چې قادر نه په درهم و په دینار وي — په هغو باندې ګنجونه کا انبار

۶۹ — ۸۳۸

زماني د رحمان زړه دی کباب کړی

له احوالې ئې څوک نه دي خبردار

هومره اوښکي مې بهېږي په رخسار (۱) — چې غرقاب مې هم ګرېوان دی هم کنار

هغه یار مې هسې ناست د زړه په سر دی — لکه اېښې چې (۲) چا ګل وي په دستار

که څوک والي چې مار کله په کټ خېژي — زه خو رلې یم په کټ د زلفو مار (۳)

خو د یار بیمارې سترګې خدای خوني کړې — ګنه خون کله کولی شي بیمار (۴)

که په دار شم زه د یار له لاسه خوښ یم — سروقد دی زما یار او زما دار (۵)

بسکه (۶) دا چې زه په یار پسې غوښ غوښ یم — خدای دې نه کا لکه زه یم هسې یار

هومره جور لکه یار له ما سره کا (۷) — یاد مې نه دی هومره جور د اغیار

دلبران کوړې جادو کړي زړونه اخلي — هغه وایه چې بې کوړه وي دلبر (۸)

چې د زړونو له نماځلو بې پروا دي (۹) — تروکه زړه د سري یو سي څه په کار

۷۰ — ۸۴۸

په ګرېبان ئې تل د اوښکو باران اوري (۱۰)

نه ورکېږي د رحمان د زړه غبار

چې دې زړه پورې ترلې استوار — دا جهان دې د نیکه دی که د پلار (۱۱)

ته خپل پلار او نیکه وګوره چې څه شول — هسې ستا دې په هغو پسې رفتار (۱۲)

---

(۱) د "پ" لومړی نسخه او د "خ" لومړی نسخه: "هسې سرې اوښکي مې بهېږي په رخسار".

(۲) په "پ" چاپ، د "پ" په دوهم نسخه او د "خ" په لومړی نسخه کی د "چې" پر ځای "د" راغلی دی.

(۳) دا مسری د "خ" په لومړی او د "پ" په دوهمه نسخه کی داسی راغلی ده: "زه خو خو دم په کټ د زلفو مار".

(۴) دا مسری د "خ" په لومړی نسخه کی داسی راغلی ده: "ګنه خون کله کولی شی په بیمار".

(۵) دا مسری په "پ" چاپ کی داسی راغلی ده: "سروقد دی زما یار زما دلدار". د "خ" په لومړی نسخه کی: "سروقد دی زما یار هم زما یار". په دوهم نسخه کی "سروقد دی زما یار دی د غه دار". او د "پ" په دوهمه نسخه کی داسی راغلی ده: "سروقد دی زما یار هم زما دار".

(۶) په "پ" چاپ کی د "بسکه" پر ځای "بس کړه" راغلی دی.

(۷) دا مسری په "پ" چاپ کی داسی راغلی ده: "هومره جور لکه یار چې ما سره کا". په "پ پ" چاپ کی "هومره جور لکه چې یار ما سره وکړ". د "خ" په لومړی نسخه کی "هومره جور لکه یار دا سره کا ندی". په دوهمه نسخه کی "هومره جور لکه یار چې له ما سره کړ". او د "پ" په دوهمه نسخه کی داسی راغلی ده: "هومره جور لکه یار سره وکړ".

(۸) د "پ" په لومړی او د "خ" په دوهمه نسخه کی: "دلبری او دلجوئي خو کو ډګر کړی ده دکو ډګرو هغه وایه چې دلبرشی هم دلدار".
د "پ" په دوهمه نسخه کی: "دلبری خو کو ډګر هم په کوډو وکا هغه وايي چې دلبرشی هم دلدار".
د "خ" په لومړی نسخه کی: "دلبری خو کو ډګر هم په کوډو وکا هغه وايي چې دلبرشی هم دلدار".

(۹) د "پ" لومړی نسخه: "چې د زړونو له نما ځلو بې پروا یې".

(۱۰) دا بیت د "خ" په لومړی قلمي نسخه کی داسی راغلی دی: "په ګرېوان مې تل د اوښو باران ووري نه وروېږی د رحمان د زړه غبار".

(۱۱) د دې غزل د "خ" په مصوره نسخه کی لومړی پنځه بیتونه نه دی راغلی او هم نومړی غزل د "خ" په لومړی قلمي نسخه کی نشته.

(۱۲) دا مسری په چاپي دیوانونو کی داسی راغلی ده: "هسې ستا دې هم په دوی پسې رفتار".

تل دې مې دوستي پل دی پرې تېرېږي — کړې نه دی چا په پل باندې قرار

هسې نه چې زه تنها(1) وتا ته وایم — راغله لاړه ستا په طور صد هزار

دعوه مه کړه په ناحق بدې خپل نه کړې — پردی شهر، پردی ملك، پردی دیار(۲)

چې استوګه په پردي وطن کې کاندې — هغه نه لري د هېڅ واك واختیار(۳)

که هزار قسمه وخوري په یو کار کې — نه کا خوك په مسافر واعتبار(٤)

چې په صبح شګفته شي په شام رژي — خه امید دی د ګلونو په ګلزار(۵)

که دې ورور که دې عزیز دی که دې یار(۶) — مه دې وروره دې عزیز ګڼه مه یار

۸۵۸ — چې پیدا شي همګي واړه فنا شي — ای رحمانه! دا جهان دی دا یې کار — ۷۱

خوجفا قبوله نه کړې دا غیار — وبه نه وینې په ستر ګو مخ د یار

چې اول یې خار زرغون شي په پلو کې(۷) — غوټه هاله شګفته شي په ګلزار

جنت چا په ریاضت موندلی نه دی — ولی بویه هر بنده لره خپل کار(۸)

که مونده شوی خوشخویي په خوشبویه — پروت به نه وو په چندن باندې سامار(۹)

آب تر لعلو د لاله ګلونو(۱۰) ډېر دی — بخت دی دا چې خوك عزیز کاندې خوك خوار

۸۶٤ — هسې زیب کا په بیاض د رحمان شعر — لکه زلفې د خوبانو په رخسار — ۷۲

---

(۱) په چاپي دیوانونو کې د "تنها" پر ځای "یوازې" راغلی دی.

(۲) د "پ" لومړی نسخه او د "خ" نسخې: "دعوه مه کړه په ناحق په خپل نه کړې پردی ملك، پردی شهر، پردی دیار".
د "پ" په دوهمه نسخه کی داسې راغلی دی: "دعوی مه کړه په تحقیق بدې خپل نه کړې پردی شهر، پردی ملك، پردی دیار".

(۳) د "پ" په لومړی نسخه او د "خ" په لومړی نسخه: "هغه نه لري هیڅ واك واختیار". او د "خ" په دوهمه قلمي نسخه کی داسې راغلی ده: "هغه نه کړی هیڅ ـ واك وخپل اختیار". د "پ" په ګډه نسخه کی ددې بیت د لومړی مسری د "استوګنه" پر ځای "استوزه" راغلی دی.

(٤) د "پ" لومړی نسخه او د "خ" نسخې: "که هزار قسمه وخوري په معامله کی نه کا خوك په مسافر واعتبار".
د "پ" په دوهمه نسخه کی داسې راغلی دی: "که هزار قسمه وخورم په مالہ کې نه کا خوك په مسافر واعتبار". او دا بیت په مصوره نسخه کی نه دی راغلی.

(۵) دا بیت په "پ" چاپ کی داسې راغلی دی: "چې سبا شګفته کېږی ما بنام رژي خه امید دی په ګلونو د ګلزار".
د "پ" په دوهمه نسخه کی لی لومړی مسری داسې راغلی ده: "چې په صبح شګفته کېږی په شام رژي".

(۶) دا مسری په "پ" چاپ کی داسې راغلی ده: "که دې ورور که دې عزیز وي که دې یار وي".
په "پاپ" چاپ کی داسې راغلی ده: "که دې ورور که دې عزیز او که دې یار وی".

(۷) دا مسری د "خ" په لومړی نسخه کی داسې راغلی ده: "چې اول د خار زرغون په بهار کی".

(۸) دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کی داسې راغلی دی: "جنت چا په زاهدی که موندلی نه دی ګنه بویه هر بنده لره اختیار"

(۹) دا بیت د "پ" په لومړی نسخه کی داسې راغلی دی: "که مونده شوی خوشبویي په خوشبویه پروت به نه وُ په چندن د پاسه مار".
په "پاپ" چاپ کی داسې راغلی دی: "که موندی شوی خوشبویي په خوشحالۍ کی پروت به نه وُ په چندن باندې سامار".
د "خ" په لومړی نسخه کی داسې راغلی دی: "که موندی شوی خوشخویي له خوشبویي پروت به نه وُ د چندن د پاسه مار".
د "پ" په دوهمه نسخه کی داسې راغلی دی: "که موندی شوی خوشخویي له خوشبویي پروت به نه وُ په چندن د پاسه مار".
په مصوره نسخه کی داسې راغلی دی: "که مونده شوی خوشبویي بې خوشبویي پروت به نه وُ په چندن باندې سامار".

(۱۰) د پېښور په چاپي دیوانونو، د "خ" په لومړی، دوهمه نسخه او د "پ" په نسخو کی د "ګلونو" پر ځای "ګلونه" راغلی دی.

خوك دې راكاندې قسم په كردګار — كه د رملرم په كوركې يا دينار (١)

نه دينار او درم نه لرم په كور كې — ولې نورعالم مې بولي د نيا دار

هم په دا چې نه لرځايه چېرته خوځم (٢) — نه د هيڅ يوه مخلوق يم منت بار

نه مې سكته ملك ليدلى دى نه پورته — خبر نه يم په يمين او په يسار

آب وخور لكه آسيا په ځاى رارسي — په خپل كور كې مې سكون دى هم رفتار (٣)

لكه ونه مستقيم په خپل مكان (٤) يم — كه خزان را باندې راشي كه بهار

توكل مې لاس پښې سره كړل په نكريزو — چې په ځاى يې كېنولې يم قرار (٥)

چې زما په باب دې سنكلى دي رارسي — كه راحت دى كه زحمت دى وار په وار (٦)

چې هر ده هزار قومونه يې پيدا كړل — مربي مې دى هغه پروردګار (٧)

كار همه په اراده د خداى موقوف دى — هيڅ موقوف نه دى دچا په اختيار (٨)

٧٣ — ٨٧٥

غم به هيچيرې ونه كا په دنيا كې
كه خدا كبرې د رحمٰن په اختيار (٩)

د غه يار دى دا اغيار — د غه ګل دى د غه خار (١٠)

د غه ګل دى د غه خار دى (١١) — دا منصور دى د غه دار (١٢)

---

(١) دا بيت د "پ" په دوهمه نسخه كې نه دى راغلى او لومړى مسرى يې په مصوره نسخه او د "خ" په دوهمه نسخه كې داسې راغلې ده: "كه څوك دا كاندې قسم په كردګار".

(٢) د "پ" په لومړى نسخه او د "خ" په دوهمه نسخه كې "د روهم" راغلى دى.

(٣) دا بيت د "پ" په لومړى نسخه او د "خ" په لومړى نسخه كې داسې دى: "آب وخور لكه آسيا په ځاى رارسي — په خپل كور كې هم سكون دى هم رفتار".
د "خ" په لومړى نسخه كې داسې راغلى دى: "آب خوراك مې هم په ځاى رارسېږي — په خپل كور كې مې سكون دى هم رفتار".

(٤) د "پ پ" په چاپي ديوانونو، د "خ" په نسخو او د "پ" په لومړى نسخه كې "مقام" راغلى دى.

(٥) د "پ" لومړى نسخه: "توكل مې لاس او پښې كړه په نكريزو — چې په ځاى كې يې ښولي يم قرار".

(٦) دا بيت په مصوره نسخه كې نه دى راغلى، په "پ" چاپ كې داسې راغلى دى:
"چې څما په باب كې كسبلي دى رارسي — كه رحمت دى كه زحمت دى وار په وار".
"پ پ" چاپ: "چې زما په باب خه سنكلي دى رارسي — كه رحمت دى كه زحمت دى وار په وار".
"د خ" لومړى نسخه: "چې زما په باب كې دې هغه رسېږي — كه راحت دى كه زحمت دى وار په وار".
د "پ" دوهمه نسخه: "چې زما په باب يې سنكلي وما رسي — كه راحت وى كه زحمت وي وار په وار".

(٧) د "پ" لومړى نسخه: "مربي يې دى هغه پروردګار".
د "خ" لومړى نسخه: "مربي مې وه يې هغه پروردګار".
د "خ" دوهمه نسخه: "منزه دى هغه پاك پروردګار". لومړى بيت په مصوره نسخه كې نه دى راغلى.

(٨) دا بيت په مصوره نسخه كې نه دى راغلى، د "خ" په لومړى نسخه كې داسې راغلى دى: "كار هغه په اراده د خداى موقوف دى — هيڅ موقوف نه دى زما په انتظار".
د "پ" دوهمه نسخه: "كار كاهمه په اراده پورې موقوف دى — هيڅ موقوف نه دى دچا په انتظار". د "پ" په لومړى نسخه كې يې دوهمه مسرى داسې راغلې ده:
"هيڅ موقوف نه دى زما په اختيار". د "خ" په دوهمه نسخه كې دا مسرى داسې راغلې ده: "هيڅ موقوف نه دى زما په اختيار".

(٩) دا بيت په مصوره نسخه كې نه دى راغلى او د "خ" په لومړى نسخه كې دا بيت داسې دى: "غم يې هيچيرې ونه كړه په دنيا كې — كه خدا كبرې د رحمان په اختيار".
د "پ" لومړى، دوهمه او د "خ" دوهمه نسخه: "كه څوك كبرې د رحمان په اختيار".

(١٠) دا غزل په مصوره نسخه او د "خ" په لومړى نسخه كې نه دى راغلى. دا بيت دوهمه مسرى د "خ" په دوهمه نسخه كې داسې راغلې ده: "د غه ګنج دى د غه مار".

(١١) په چاپي ديوانونو او د "پ" په دوهمه نسخه كې د "دى" كلمه نه ده راغله.

(١٢) دا مسرى د "خ" په دوهمه نسخه كې داسې راغلې ده: "د غه ... ار".

دا رقیب دی د احبیب دی — دغه ګنج دی دغه مار (۱)
دغه عشق دی دغه عقل — دغه غم دی دا غمخوار
دا هجران دی دا وصال دی — دا خزان دی دا بهار (۲)
دا طاعت دا معصیت دی — دغه نور دی دغه نار
دا عالم دی دا جاهل دی (۳) — دا خفته دی دا بیدار

۸۸۳ — ۷۴

دا رحمان دی دا جانان دی (٤)
دا طبیب دی دا بیمار

هر چې نه وي خوار و زار — په طلب د خپل دلدار (۵)
تر پروني يې صد قدشه — د هغه عاشق دستار
هزار حیف دی هزار حیف دی — هزار ځله لا صد هزار
چې عاشق په عاشقۍ کې — نه حلال وي نه مردار
نه پتنګ د خپل چراغ وي — نه بلبل د خپل ګلزار
نه مجنون غوندې رسوا وي — نه منصور غوندې په دار

۸۹۰ — ۷۵

دوا ړه نه کیږي رحمانه
یا به یار شي یا به بزار

دا ځه مخ دی منور — چې هم شمس دی هم قمر (۶)
دا ځه زلفې دې مشکینې — چې هم مشک دی هم عنبر
دا ځه پیوسته ابرودې (۷) — چې هم نیش دی هم نشتر
دا ځه سترګې دې قاتلې — چې هم سیف دې هم خنجر
دا ځه شونډې دې مې ګونې — چې هم مئ دی هم شکر

---

(۱) دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې راغلی دی: " دا رقیب دی دا حبیب ' دا طبیب دی دا بیمار ".
او دوی بیت لومړی مسرې په "پ" چاپ کې داسې راغلې ده: "دا رقیب دی دا حبیب".
(۲) دا بیت اوله دی نه وروسته بیتونه د "پ" په دوهمه نسخه کې نه دی راغلي او دوی بیت لومړی مسرې په "پ" چاپ کې داسې راغلې ده: " دا هجران دی دا وصال ".
(۳) په "پ" چاپ کې د "دی" کلمه نه ده راغلې.
(٤) په "پ" چاپ کې "دی" نه دی راغلی.
(۵) دا غزل په مصوره نسخه د "خ" په لومړی نسخه او د "پ" په دوهمه نسخه کې نه دی راغلی.
(۶) دا غزل د "خ" په لومړی قلمي نسخه او مصوره نسخه کې نه دی راغلی.
(۷) دا مسرې په "پ" چاپ کې داسې راغلې ده "دا ابروځه پیوسته دی".

داخه سپین سپېڅلي غـــابه دي — چې هم دُر دي هم گـــوهر
داخه سپب زنخـــدان دي — چې هم سیم دي هم ثمـــر
داخه قد او ځه قـــامت دي — چې هم گل دي هم عـــرعر
داخه ملا ده باریك وضـــع — چې هم موی دي هم کمـــر
داخه زړه دي د خوبـــانو — چې هم موم دي هم حجـــر
داخه یار دي نه پوهـــېږم — چې هم دل دي هم دلـــبر
داخه بت دي زمـــا به (۱) — چې هم بت دي هم بشـــر

۷۶ — داخــــه شعر د رحمـــان دي (۲) — ۹۰۳
چې هـــم گنج دي هـــم هنر

تل به نه وي شگفته گلزار د عمر — نه به جور وي همیشه بازار د عمر (۳)
لکه سیند د اباسین په غورځنگ (۴) د رومي — هسې یون دي په تلوار تلوار د عمر
لکه برق چې مخ ځرگند کاندي بیا نه وي — هسې تېز دي بې سکون رفتار د عمر (۵)
سرکشي لري تر هسې حده پوري (۶) — چې نیوی نه شي هیڅوك (۷) مهار د عمر
چې سمند یې نه جلب لري نه واگي — خود به پرېوځي عاقبت شهسوار د عمر (۸)
په ساعت د سلو کالو یاري پرې کا — بې وفا دي هسې رنگه یار د عمر (۹)
خپل صورت به د حباب په سترگو گوري (۱۰) — که څوك وکاندي په زړه کې شمار د عمر
نه له کوره چېرته ځم نه سفر کړم (۱۱) — بې سفره مې غوځېږي لار د عمر
عاقبت به د اجل په مقراض غوځ شي — پیوسته به مدام نه وي تار د عمر

۷۷ — بیا یې وار په دا دنیا نشته رحمان دی (۱۲) — ۹۱۳
په هر چا بان دي چې تېر شو وار د عمر

---

(۱) د "پ" په دوهمه نسخه کې دا مسرې داسې راغلې ده : " داخه یار دي نه پوهېږم".
(۲) دا مسرې په چاپي دیوانونو او د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې راغلې ده : " داخه شعر دي رحمانه".
(۳) "ق" چاپ : " تل به نه وي شگفته بهار د عمر — نه به جور وي همېشه گلزار د عمر".
د "پ پ" چاپ : تل به نه وي شگفته بازار د عمر — نه به جور وي همېشه بهار د عمر".
(۴) د پېښور په چاپي دیوانو کې " غورځنگ" راغلی دی. (۵) قلمي نسخې : "هسې تیز دی په سکون رفتار د عمر".
(۶) د "خ" لومړۍ نسخه : "سرکشي نه دي تر هسې حده پورې ". (۷) په " ق، ک " چاپ کې "هرگز" راغلی دی.
(۸) دا بیت په مصوره نسخه کې نشته . (۹) چاپي دیوانونه : " بې وفا په هسې رنگ دی یار د عمر".
(۱۰) پېښور په چاپي دیوانونو کې " په خپر د گورې " راغلی دی.
(۱۱) د "پ" نسخې او د "خ" دوهمه او مصوره نسخه : " نه د ځم چېرته له کوره نه سفر کړم". د "خ" لومړۍ نسخه : "نه سفر کړم نه له کوره چېرته ځمه".
(۱۲) د "پ پ" چاپ او د "خ" دوهمه نسخه : " بیا یې وار په دنیا نشته د ی رحمانه ".

زه تېر شوی یم تر سر — په طلب د خپل دلبر
خوځوندی یم په دنیا کې — پرې به نه ږدم دغه در
د آشنا په طلب ګرځم — وچې شونډې لیمه تر (۱)
یو قدم مې دی په بحر — بل قدم مې دی په بر
دواړه لاس مې دي نیولي — هم په شام هم په سحر
مناجات مې دی وخدای ته — که یې ووینم بشر
همیشه له خپله بخته — ګله من یم مرور
چې په مالې پېر زوند کړ (۲) — د خوبانو په نظر
هم یې ونه سود وماته — بې له عشقه بل هنر
عاشقي مې خدای رسوا کړه — په جهان کې لکه نمر
نصیحت را باندې نه کا — لکه موی هومره اثر
واوره غوږ باسه ناصحه — کوتاه وایم مختصر
په مولا مې دي سوګند وي — هم په روح د پېغمبر
جار واته مې بېرته نشته — چې عالم (۳) شو را خبر
ترمینه به یې زار کړم — که مې سیم دی که مې زر
که مې سیم دی که مسې زر دی — که مې دُر دی که ګوهر (۴)

۷۸ — ۹۳۰

زه رحمان تر هر څه تېر یم
تېر به نه شم تر دلبر

پورته بدر را ښکاره شو ښکته نمر — ښکته پورته واړه مخ دی د دلبر
نمر سپوږمۍ مې د پالنګ د پاسه رغړي (۵) — چې مې یار په بالښت ولګوي سر
په سرو سپینو درو لعلو یې غوږ ډک شي — چې مې غوږ کاندي داوښکو په دُر دُر (۶)

---

(۱) دا بیت په مصوره نسخه کې نشته.
(۲) د "ب" لومړۍ نسخه: "چې په ما پېر زوند کړ".
(۳) د "خ" په لومړۍ او دوهمه نسخه کې د "عالم" پر ځای "جهان" راغلی دی.
(۴) دا بیت په مصوره نسخه کې نشته په چاپي دیوانونو او د "خ" لومړۍ نسخه کې دوهمه مسرۍ داسې ده: "که مې دُر که مې ګوهر".
(۵) د "خ" دوهمه نسخه: "نمر سپوږمۍ یې پر پالنګ د پاسه رغړي".
(۶) دا بیت د "خ" په لومړۍ نسخه کې نشته.

چې دې ووینم (۱) په مخ مې اوښکې دې رومې | لکه موم چې په آفتاب شي برابر
بل مذکور د سخنګو یو سترګو نه زده | بې له دې ذکره چې (الله اکبر)
ضد دی اور و اوبه بې دیار له شونډو | چې هم اور دی هم اوبه دي د کوثر (۲)
په شرابو کې خوند نشته د شکرو | دیار شونډې چې هم شراب دي هم شکر
که سل ځله پټ تر شونډو لاندې خاندې | نه پټېږي آب د لعل و د ګوهر
دا خو مال ره خدای راکړه ګنه نشته | هسې بت په بتخانه کې د آذر
پس له دې به لې په نامه د ملک (۳) بوم | هم په دا چې نشته دا رنګه بشر

که رحمان صاحب نظر باله شي بنایي
چې مدام دیار په مخ لري نظر

۷۹ — ۹۴۱

هسې تله کاندې وګوره یاران ژر ژر | لکه تله کا و خپل کورته کاروان ژر ژر (۴)
هسې ژر ژر مرګ په موږ به شتابي کا | لکه لو د پاخه کښت کا دهقان ژر ژر (۵)
هسې ژر ژر دا دنیا و بله اوړي (۶) | لکه اوړي و بله ریګ روان ژر ژر (۷)
هسې ژر ژر صورتونه دي نړېږي (۸) | لکه رژي لاله زار په خزان ژر ژر
هسې ژر ژر دا شیرین عمر تېرېږي | لکه بحر چې بهېږي روان ژر ژر

هسې زر زر ځنبول د بنو نه وي (۹)
لکه درومي له جهانه رحمان ژر ژر

۸۰ — ۹۴۷

چې په زور ورسره نه یې برابر | د هغو تر څنګه مه کښېنه زړور (۱۰)
زور ور او راوبه دې فهم وکړه | چې ډوب نه شې یا ونه سېزې بشر (۱۱)

---

(۱) په "ق، ک" چاپ، "ق" چاپ او قلمي نسخو کې "چې یې ووینم" راغلی دی.
(۲) دا بیت په "ب" چاپ، "ق" چاپ او "ق، ک" چاپ کې نشته
(۳) د "خ" په لومړی او دوهمه نسخه کې د "ملک" پر ځای "فرښتو" راغلی دی.
(۴) دا غزل په مصوره نسخه او د "پ" په دوهمه نسخه کې نشته، دوهمه مسرۍ یې په "پ" چاپ کې داسې راغلې ده: "لکه تله کاندې خپل کورته کاروان زر زر". په "ب" چاپ کې "لکه درومي چې خپل کورته کاروان زر زر". په مختلط نسخه کې "لکه تله کاندي وکورته کاروان زر زر". او د "خ" په لومړی نسخه کې داسې راغلې ده: "لکه درومي وخپل کورته کاروان زر زر".
(۵) دوهمه د "خ" په لومړی نسخه کې داسې راغلې ده: "لکه لور چې په کښت کې کا دهقان زر زر". او په "پ" چاپ کې د "پاخه" پر ځای "پاسه" راغلی دی.
(۶) دوهمه د "خ" په دوهمه نسخه او د "پ" په مختلط نسخه کې داسې راغلې ده: "هسې زر زر دا دنیا و بله نه اوړي".
(۷) دوهمه د "خ" په لومړی نسخه کې داسې راغلې ده: "لکه اوړي وبله ریګ د بیابان زر زر".
(۸) دوهمه د "خ" په لومړی نسخه کې داسې راغلې ده: "هسې زر زر صورتونه و بله دېږي".
(۹) په "پ ب" چاپ کې داسې راغلې ده: "د بنو زنبل هم هسې زر زر نه وي". د "خ" په لومړی نسخه کې "د بنو و بله ول هم هسې زر نه وي". د "خ" په دوهمه نسخه کې "دا د بنو زنبول هم هسې زر زر نه وي" او د "پ" په مختلط نسخه کې داسې راغلې ده: "د بنو زنبول هم هسې زر نه وي". د "ب" لومړی نسخه: "د بنو زنبول هم هسې ژر ژر نه وي".
(۱۰) دا غزل په مصوره نسخه او د "پ" په دوهمه نسخه کې نه دی راغلی.
(۱۱) دا بیت په "پ ب" چاپ کې داسې راغلی دی: "زور آور خو اوراوبه دی فهم وکړه چې ډوب نه شې یا ورپت نه شې په شمار".

زندګي که بې اوبو بې اوره نه شي — تل هم ابښي هېچا نه دي په تهتر (۱)

خدای ورمه وله سېلاب د چا په خونه (۲) — که په قطع (۳) هم اوبه وي د کوثر

ودې نه ګلګېږي اور په کور د هېچا (۴) — که رڼا يې وي د شمس او د قمر

چې يې درست صورت غلبل شي په اغزيو (۵) — وخوره شه د هغې ونې ثمر

د هغه دېوال په سيوري خوک کېمنه (۶) — چې ولاړ وي که زوړند چاود ګمر

چې په ګېډه دې شوخېږي مخ يې ورک شه (۷) — که د سرو زرو چاړه وي يا خنجر

و دریاب ته اچاوه نه شي ځان خوږ وي (۸) — ګنه ډېر دي په دریاب کې دُر ګوهر

ناکړه دا سود ونه ډېر دي په جهان کې — سود هغه دی چې د خېر وي نه د شر (۹)

چې له آبه له حرمته سره نه وي — خدای ورمه کړه و چا هسې سيم و زر (۱۰)

زور ورکه رسوي و چا ته فېض — له دې فېضه سره وګنه ضرر

په ياري د زورورو غلط مه شه — مګر دا چې تر ده نه يې زورور

په هر ګاه چې دې مغلوب وي ته غالب يې (۱۱) — تر و هاله يې قدم ونه ږده په سر

يا خودا چې که قدم يې په درنه ږدې — د غه پسه يې ځان وګنه پدر (۱۲)

۸۱ — چې هنر ګڼي ياري د زورورو
بول وکړم زه رحمان په دا هنر (۱۳) — ۹۶۳

---

(۱) دا بيت په "پ" چاپ کې داسې راغلی دی: "زندګي که بې له اوره او بو نه شي تل هم نه دي هېچا ابښي پرې تهتر". د "خ" په لومړي نسخه کې: "ناب هم ابښي هېچا نه دي په تهتر". او د "خ" په دوهم نسخه کې داسې راغلی دی: "تل هم ابښي هېچا نه دي پرې تهتر".

(۲) دا مسری د "خ" په دوهم نسخه کې داسې راغلی دی: "خدای دې ورنه ولي سېلاب د چا په خونه".

(۳) په قلمي نسخه کې د "هم" پر ځای "يې" راغلی دی.

(۴) دا مسری په "پ پ" چاپ، د "خ" په لومړي او دوهمه نسخه کې داسې راغلی ده: "ودې نه ګلګېږي اور د چا په خونه". او د "پ" په لومړي نسخه کې دا مسری داسې راغلی ده: "ودې نه ګلګېږي اور په کور د چا".

(۵) دا مسری د "پ" په لومړي نسخه کې داسې راغلی ده: "چې درست صورت غلبل کا په اغزيو". په "پ پ" چاپ کې داسې راغلی ده: "چې يې ټول صورت غلبل شي په اغزيو". د "خ" په لومړي نسخه کې "چې دې درست صورت غوخېږي په اغزيو". او د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې راغلی ده: "چې يې درست صورت زخمي شي په اغزيو".

(۶) د "خ" په لومړي نسخه کې: "د هغې دېوال په سوري خوک مه کېنينه" او د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې راغلی ده: "د هغه دېوال په سوري کېناست مه شي".

(۷) دا مسری د "پ" په لومړي نسخه کې داسې راغلی ده: "چې په ګېډه دې شوخېږي مخ يې تور شه". په "پ پ" چاپ کې: "چې په ګېډه دې خېښېږي مخ يې ورک شه". د "خ" په لومړي نسخه کې "چې په ګېډه کې خرخېږي رنګ يې ورک شه". او د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې راغلی ده: "چې په ګېډه دې خرخېږي مخ يې ورک شه".

(۸) د "پ" لومړي نسخه: "وا وبو ته اچاوه نه شي ځان خو خوږ دی". د "خ" په لومړي نسخه کې "وا وبو اچاوه نه شي ځان خوږ دی". او د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې راغلی ده: "ځان شيرين دی و دریاب ته اچول نه شي".

(۹) دا مسری د "خ" په لومړي نسخه کې داسې راغلی ده: "سود هغه دی چې يې خير دی له شر".

(۱۰) "پ پ" چاپ: "خدای ورمه کړه چا ته هسې سيم و زر".

(۱۱) دا مسری په "پ" چاپ کې داسې راغلی ده: "په هر وقت چې ته غالب ودې مغلوب وی". د "خ" په لومړي نسخه کې: "په هر ګاه چې دې غالب وې ته مغلوب يې". او د "خ" په دوهم نسخه کې دا بيت داسې راغلی دی: "په هر کار چې ته غالب يې دې مغلوب وې تر و هاله يې قدم ونه ږده په سر".

(۱۲) چاپي ديوانونه: "يا خودا چې ته قدم يې په درنه ږدې هله پسه يې ځان وګنه پيدر".

(۱۳) دا مسری په چاپي ديوانو کې داسې راغلی ده: "زه رحمان کوم نه بول په دا هنر". او د "خ" په لومړي نسخه کې داسې راغلی ده: "بول وکړم د رحمان په دا هنر".

په نظر دې بصر — لکه شام هسې سحر (۱)

لکه شام هسې سحر — لکه سنګ هسې ګوهر (۲)

لکه سنګ هسې ګوهر — لکه خاورې هسې زر

لکه خاورې هسې زر — لکه خیر هسې شر

په نظر یې معلومېږي — هم واړه برابر

که څوك بد ورسره وکا — تربدې یې وي بتر (۳)

که څوك بد ورسره وکا — ترنېکۍ یې وي بهتر (۴)

نه په بد ویل زهیر وي — نه پرښه وي دچا زبر (۵)

په ثواب او په خطا یې (۶) — نه دلیل وي نه نظر

نه آګاه په خپل بهبود وي — نه آګاه په خپل ضرر

نه په عیب څه پوهېږي (۷) — نه پوهېږي په هنر

لکه ړوند او کوڼ چې ګوډ یې (۸) — هسې هېڅ نه وي خبر

له طاعت له ګناه — څه خبر وي څناور (۹)

څناور و نور څه نه زده — یا یې رغبت (۱۰) وي یا یې خر

داخو تر یې زما نفس — چې دې زه کړم کوز و کر

تمام ووتي (۱۱) له عقله — په دنیا پسې اوتر

---

(۱) دا غزل په مصور نسخه کې نه دی راغلی او هسم د "پ" په دوهمه نسخه کې یې د سر بیتونه نه دي راغلي.

(۲) دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې راغلی دی: "لکه سنګ هسې ګوهر لکه شام هسې سحر".

(۳) دا بیت د "پ پ" چاپ کې داسې راغلی دی: "که څوك سبه ورسره کاندې تربدۍ یې دی بتر".
په "پ" چاپ کې داسې راغلی دی: "که څوك سبه ورسره کاندی تربدۍ وي لا بتر".

(۴) — دا بیت په "پ پ" چاپ کې داسې راغلی دی: "که څوك بد ورسره کاندی ترنېکۍ یې وي بهتر".
په "پ" چاپ کې داسې راغلی دی: "که څوك بد ورسره کاندی ترنېکۍ وي لا بهتر".

(۵) دا بیت په "پ" چاپ کې داسې راغلی دی: "نه په بد ونه هېرېږي نه پوې سبه دي دچا زبر".
په "پ پ" چاپ کې داسې راغلی دی: "نه په بد ویل زهېرېږي نه په سبو دچا زړه ور".
د "خ" په لمړي نسخه کې: "نه په بد ویل زهیرېږي نه پرسبه وي دچا بر".
او د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې راغلی دی: "نه په بد ویل زهیر دي نه پرسبه یې دچا زبر".

(۶) دا مسرۍ په "پ پ" چاپ کې داسې راغلې ده: "په ثواب او په خدایۍ سپې".

(۷) دا مسرۍ په چاپي دیوانو کې داسې راغلې ده: "نه په عیب باندې پوهېږي". او د "خ" په لومړي نسخه کې داسې راغلې ده: "نه په عیبو څه پوهېږي".

(۸) د "خ" په دوهمه نسخه کې د "ګوړی" پرځای "ګرځي" راغلی دی.

(۹) د "خ" په لومړي نسخه کې د "څناور" پرځای "ښشناور" راغلی دی.

(۱۰) په چاپي دیوانونو او ټولو قلمي نسخو کې، پرته د "پ" له لومړي نسخې څخه د "رغبت" پرځای "خوب" راغلی دی.

(۱۱) د "خ" په دوهمه نسخه کې د "ووتي" پرځای "ووتم" راغلی دی.

نه دې فرض د خدای ادا کړه — نه سنت د پیغمبر

نه دې مرګ په زړه کې یاد وي[1] — نه خواري دې د محشر

او ده په روټې دا دې نه زده — چې په خوا لرم سفر

په هر دم در شخه درومي — که پوهېږې د ابشر

هغه تور ویښته دې څه شول؟ — چې هم مشک وو هم عنبر

هغه قد دې مجنون بید شو[2] — چې چنار وُ هم[3] نښتر

تن دې درست زېر وزېر شو — زړه دې نه شو لړ وبر

تر ینجا و شسته تېر شوې — تر لا ځان بولې پس[4]

نه دې ترس شي نه دې وېره — نه په زړه باندې اثر[5]

بل په فند وې لکه ته يې — هسې شوخ او ځیګر ور

په غفلت دې عمر تېر کړ — نه ره وشوې نه رهبر

عبادت دې په ریا شو — لکه ډک په لاکو زر

لکه قلب[6] ناسره هر — پټ په زرو کې حجر[7]

لکه زړې په مېوه کې — درون سنګ بېرون ثمر

لکه پټ وې په دانه کې — سل اغزي د شجر[8]

لکه سحر چې برپای کا — سحرګر او جادوګر

لکه تش صورت بې روح[9] — چې تصویر کا مصور

لکه تش کډو بې مغزه — میان خالي وي تن پر و

---

(۱) دا مسری په چاپي دیوانونو کې داسې راغلې ده: " نه دې مرګ په زړه یا دېږي ". او د "خ" په لومړي نسخه کې داسې راغلې ده: "نه دې مرګ په زړه کې یاد وي".

(۲) دا مسری په "پ" چاپ او "پ پ" چاپ کې داسې راغلې ده: " هغه قد دې مجنون بید شه ". د "خ" په لومړي نسخه کې "هغه قد د مجنون خه شو". او د "پ" په دوهمه نسخه کې داسې راغلې ده: " هغه قد دې مجنون بید شي ".

(۳) په "پ" چاپ کې د "هم" پر ځای "یا" راغلې دی.

(٤) دا بیت د "خ" په لومړي نسخه کې نه دی راغلی لومړی مسری یې په "پ پ" چاپ کې " ترینجاه و بینځه تېرشوې "، په "پ" چاپ کې " ترینځوس - ترینځه تېرشوی "، د "خ" په دوهمه نسخه کې: " ترینجاه ترینجاه تېرشوی ". او د "پ" په دوهمه نسخه کې داسې راغلی ده: " ترینجه ترینجاه تېرشوی ".

(۵) دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کې نه دی راغلی.

(٦) په "پ پ" چاپ کې د "قلب" پر ځای "کلپ" راغلی دی.

(۷) د "پ" په دوهمه نسخه کې د "حجر" پر ځای "خنجر" راغلی دی.

(۸) دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کې نه دی راغلی.

(۹) دا مسری د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې راغلی ده: " لکه تش صورت په دوح کې ".

لکه بې لاسه لستوڼي | سر تر پایه پای تر سر
لکه تګ او دغه بازوي | په مرغانو کې دګر (۱)
لکه بې ټمله ناووې | چې په سر کاندې میزر (۲)
تر میزر لاندې چا خه زده | چې دختر دی که مادر (۳)
نه یې حسن نه جمال وي | غولوي خلق په زېور
هسې له هسې فریبانو (٤) | لکه زور رند چاود کمر
نیم په مخکه کې دننه | نیم په سروي لکه نغر (۵)
په دستار کې یې مسواک وو | تر بغل لاندې خنجر
په ایرو کې پټ بخري | په وینو کې پټ ژور (٦)
په شپه وینې د مظلوم خوري (۷) | سبا کښېني په ممبر
په زړه تور لکه تبې (۸) دوي | په مخ سپین لکه قمر
د دنیا په طلب ګرځي | خپل ځان بولي قلندر (۹)
کلیمه په ژبه وايي | په زړه نه لري باور
په مثال د منافقو (۱۰) | نه مسلم وي نه کافر
نه مسلم وي نه کافر وي | نه یخلا نه مرور
پریشان ګرځي سر و هلي | کوی په کوی او در په در
همیشه رفت و آمد کا (۱۱) | د زردارو په ګذر
په کوخه د دنیادارو | ګو خورګي کا لکه خر
اورنګ زېب هم یو فقیر و | چې تولې یې وه په سر
وتښتوله وته یې شاګرد | چې قادر شو په افسر (۱۲)

---

(۱) د "خ" په دوهمه نسخه کې د "دګر" پر ځای "دیګر" راغلی دی. (۲) په "پ پ" چاپ کې "خادر" راغلی دی.
(۳) په "پ" چاپ او د "پ" په دوهمه نسخه کې "وي" راغلی دی. (٤) د "پ" په لومړۍ نسخه کې "هی ځی له هسې فریبانو"، په "پ پ" چاپ کې "هی تو به له فریبانو"، او د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې راغلی ده: "هی تو به له هسې فریبه".
(۵) دا بیت په چاپي دیوانونو کې داسې راغلی دی: "نیم په ځمکه کې دننه نیم بر سبره لکه"، د "خ" په لومړۍ نسخه او د "پ" په دوهمه نسخه کې یې دوهمه مسرۍ داسې راغلې ده: "نیم بر سبره لکه نغر" او د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې راغلې ده: "نیم په سروي لکه نغر".
(٦) دا بیت د "خ" په لومړۍ قلمي نسخه کې نه دی راغلی او د "پ" په دوهمه نسخه کې د "ژور" پر ځای "ژادر" راغلی دی.
(۷) دا مسرۍ د "خ" په لومړۍ نسخه کې داسې راغلې ده: "په شپه مال د مظلوم وخوري". (۸) د "خ" په لومړۍ نسخه کې "کودې" راغلی دی.
(۹) په "پ پ" چاپ کې "بولي ځان په قلندر"، د "خ" په لومړۍ نسخه کې "حسرو بولي قلندر"، د "خ" په دوهمه نسخه کې "خپل سر بولي قلندر"، او د "پ" لومړۍ نسخه کې "ځان بولي قلندر" راغلی دی.
(۱۰) په قلمي نسخو کې "منافقانو" راغلی دی.
(۱۱) دا مسرۍ د "پ" په دوهمه نسخه کې داسې راغلې ده: "همیشه یې رفت امد دی" (۱۲) دا بیت د "خ" په دوهمه قلمي نسخه کې نه دی راغلی.

خـــــــولې هومره فقيري وه — چې څه نه وو ميســـــــــر

چـــــــې فلك لې ياري وکړه — نور لې ملك کړ مسخـــــــر

گـــــــوره څه چارې لې وکړې — په عيال د(١) خپل پـــــــدر

وار پـــــــه وار لې تر تيغ تېر کړ — د خورم تام تـــــــبر

يـــــــو تېر د خورم څه و — د بر عالم لې کړ د بـــــــر

تمـــــــامې جهان لې ونغړد(٢) — چې لې لاس شو باندې بـــــــر

پـــــــه فريب فريب لې خپل کړ — بيجاپور او بهانـــــــگر(٣)

بيـــــــجاپور او بهانگر څه وو — لاجنجي او جنجـــــــاور(٤)

هـــــــم لې هند په ډکه واخيست(٥) — هم کابل هم(٦) پېښـــــــور

بيـــــــا لې ذکر شو په زړه کې — بادشاهي د هفت کشـــــــور(٧)

لـــــــه حرصه ورته هيڅ شوه — هم دارا هم سکنـــــــدر(٨)

خيـــــــال لې دا و په خاطر کې — چې به خپل کړم بحر و بـــــــر

بـــــــارې ورځ ورمخنه(٩) لاړه — وخت پرې راغی مازديـــــــگر(١٠)

نـــــــه لې مراد د زړه حاصل شو — نه لې يخ کړ خپل تـــــــتر

همـــــــگې شوه ځنې پاتې — کډې ملك وکه لښـــــــکر

خـــــــالي لاس له دنيا ووت — لکه عين درويزگـــــــر

---

(١) د "خ" په لومړي نسخه کې د "د" پر ځای "په" راغلی دی.

(٢) د "پ" لومړی، دوهم او د "خ" لومړی نسخه: "تمامې جهان لې ونغړ" او د "خ" په لومړي نسخه کې داسې راغلی ده: "تمامې عالم لې ونغښت".

(٣) دا مسرۍ په "پ پ" چاپ کې داسې راغلی ده: "بيجاپور او بهاگ نگر".
د "خ" په لومړي نسخه کې: "پنجاب پور او بهاگ نگر".
د "خ" په دوهم نسخه کې: "پنجاپور بها نه گر".
او د "پ" په دوهم نسخه کې: "پنجاپور و بهاك نگر".
او په مصوره نسخه کې: "بيجاپوره و بهاك نگر". راغلی ده.

(٤) دا بيت په "پ" چاپ کې داسې راغلی دی: "بيجاپور بهان گر څه وو — لاچينجا و چينجاور".
"پ پ" چاپ: "بيجاپور بهاگ نگر څه وو — لاجنجي او جنجاور".
لومړی مسرۍ لې په مصوره نسخه کې: "بيجاپور و بهاك نگر څه وه". د "خ" لومړي نسخه کې دا بيت داسې راغلی دی: "پنجاب پور بهان نگر څه وو — لاچنجي چنچاور".
د "خ" په دوهم نسخه کې: "پنجاپور بهان گر څه وو — لاچنجا و چنجاور". او نو موړی بيت د "پ" په دوهم نسخه کې نه دی راغلی.

(٥) په "پ پ" چاپ او د "خ" دوهمه نسخه کې دا مسرۍ داسې راغلی ده: "هم لې هند په ډگه واخست"
او د "خ" په لومړي نسخه کې داسې راغلی ده: "هسې هند په ډکه واخست".

(٦) په چاپي ديوانونو کې د "هم" پر ځای "او" راغلی دی.

(٧) دا بيت د "خ" په لومړي نسخه کې داسې راغلی دی: "بيا لې ذکر شو په زړه کې — هم دارا هم سکندر".

(٨) دا بيت او له دې نه وروسته بيتونه په مصوره نسخه کې نه دي راغلي او هم نوموړی بيت د "خ" په لومړي نسخه کې نشته.

(٩) په چاپي ديوانونو کې د "ورمخنه" پر ځای "ورځنۍ" راغلی دی. (١٠) په قلمي نسخو کې "نمازيگر" راغلی دی.

لـــــه دنیایي هیڅ یونه وړه — مگر شوي یو خـــــادر(١)

خـــــوار حیران په ځمکه پریووت — بې بالین او بې بســـــتر(٢)

نـــــه پوهېږي شو تري د لاندې(٣) — نه تر لاندې شو تغـــــر

د بهـــــښې(٤) په خبر خفیف شو — چې ثقیل و لکه غـــــر

د سیـــــلاب په مخ کې لاړ شو(٥) — لکه خس او(٦) یـــــاوزر

حـــــق یې پاتې په گردن شو — د سپاهي او د چاکـــــر

اوس یـــــې زه په روح دعا کړم — که یې خدای کا بهـــــرور

حـــــق تعالی یې په نصیب کړه — شېرین حوض د کوثـــــر(٧)

د جنـــــت په خوشبو لېږي(٨) — خدای د ماغ کړه معطـــــر

پـــــه درست هند باندې حق و(٩) — هند یو شپه وه دي یو لمـــــر(١٠)

د دې لمـــــر په روښنا لېږه(١١) — تمام هند و منـــــور

پـــــه رڼایي خلقو(١٢) زیست کړ — نه څه خوف و نه خطـــــر

خو چې ـــــې مخ یې په غروب کړ — نور پیدا شو شور و شـــــر(١٣)

چې ـــــې په نام(١٤) د اورنگ زیب و — وخوړ گا وهغه دفتـــــر

اوس نـــــوبت د شاه عالم دی — د ور طور شو دیگـــــر(١٥)

---

(١) دا مسرې په "پ پ" چاپ کې داسې راغلې ده: "مگر شېرې یو خادر" او د "غ" په دوهمه نسخه کې دا مسره داسې راغلې ده: "مگر د شو یو یو خادر".

(٢) په چاپي دیوانونو کې دا بیت داسې راغلی دی: "خوار حیران په ځمکه پریووت بې بالینه و بې بستر".
د "غ" په لومړۍ نسخه کې: "خوار حیران په ځمکه پروت و بې بالینه بې بستر".
د "غ" په دوهمه نسخه کې یې دوهمه مسره داسې راغلې ده: "بې بالښته بې بستر".

(٣) دا مسره په "پ پ" چاپ او د "غ" په لومړۍ نسخه کې داسې راغلې ده: "نه شو تر ده لا ندې"

(٤) د "غ" په دوهمه نسخه کې د "بهښې" پر ځای "بهنو" راغلی دی.

(٥) په "پ پ" چاپ کې "لاړو" راغلی دی.

(٦) په چاپي دیوانونو، د "غ" په لومړۍ نسخه او د "پ" په دوهمه نسخه کې د "او" پر ځای "وي" راغلی دی.

(٧) په "پ پ" چاپ کې: "حق تعالی که یې نصیب کا منه شېرین حوض کوثر". راغلی دی.
په "پ" چاپ کې داسې راغلی دی: "حق تعالی که یې نصیب کا هم شېرین حوض کوثر".
د "غ" په لومړۍ نسخه کې یې لومړۍ مسره داسې راغلې ده: "حق تعالی یې پرې نصیب کړه".

(٨) دا مسره په قلمي نسخو کې داسې راغلې ده: "د جنت په خوشبو لېږه".

(٩) د "غ" په دوهمه نسخه کې د "و" پر ځای "دی" راغلی دی.

(١٠) دا مسره په چاپي دیوانونو کې داسې راغلې ده: "هند یو شپه وه دې و لمر". د "غ" په لومړۍ نسخه کې داسې راغلې ده: "هند شپه وه دې لمر".

(١١) دا مسرې د "پ" په لومړۍ نسخه کې داسې راغلې ده: "د ده لمر په روښنا لېږه"
او د "غ" په لومړۍ نسخه کې داسې راغلې ده: "د دې لمر تر روښنا لېږه".

(١٢) په چاپي دیوانونو، د "غ" په دوهمه نسخه او د "پ" په دوهمه نسخه کې د "خلق" پر ځای "خلکو" راغلی دی.

(١٣) دا بیت په "پ پ" چاپ کې نه دی راغلی.

(١٤) په چاپي دیوانونو کې "نوم" راغلی دی.

(١٥) دا مسرې په "پ پ" [illegible] ده: "د ور او طور بې شو دیگر"، او د "غ" په لومړۍ نسخه کې داسې راغلې ده: "که ور نور دوشه دیگر".

خدای زده څه باندې شي پېښه — چې عاشور شي که اختر (۱)
رنګارنګه بازي کاندي — دا آسمان دی بازيګر
ګهې تلخ شي لکه زهر — ګاه شيرين لکه شکر (۳)
چې شي شوه هغه وشوه — لا به کېږي مقدر (٤)
ما خونومرداورنګ وا خست — دا احوال دی دهر
هر سړی د خپلې خونې — هم بادشاه دی هم سرور
هر چې اهل د دنيا دي — واړه هسې دي اکثر
دا بيان دورودراز وُ (۵) — رحمان وکړ مختصر

۸۲ — ۱۰۵۶

که د عشق لاره اغزنه ده هر ګور — د عاشق په پښو خپلې دي داور (۶)
که ديدن د ګلعذار په انتظار شي (۷) — زما سترګې دی شبنم غوندې خلور
تيغ د اوسپنې محتاج د نرم آب دی — قهر و حلم یو په بل دی زيات تر زور (۸)
له لويي له سرکښی زما توبه ده (۹) — خدای شوک مه کړه د آسمان په څېر نسکور
خدای زده څه سودا به پېښه په بازار شي — د بازار خبرې نه شي په خپل کور (۱۰)
دا همه واړه عاشق له پيدا شوه (۱۱) — که تهمت که ملامت دی که پېغور
جفا جور ناز و کبر د خوبانو (۱۲) — ما په ځان دي قبول کړي لکه پور

---

(۱) دا بيت د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې راغلی دی: "خدای زده څه چارې شي پېښې — چې عاشور شي که اختر".
د "خ" په لومړۍ نسخه کې داسې راغلی دی: "خدای زده څه بازي پېښه — چې عاشور شي يا اختر".
او په چاپي ديوانونو کې دوهمه مسرۍ داسې راغلې ده: "عاشورا شي که اختر".

(۲) دا مسرۍ په "پ" چاپ کې داسې راغلې ده: "رنګارنګ بازي کاندي". "پ، پ" چاپ: "رنګارنګي بازي کاندي".
د "خ" په لومړۍ او دوهمه نسخه کې او د "پ" په دوهمه نسخه کې داسې راغلې ده: "رنګارنګ بازي کاندي".

(۳) دا بيت په "پ" چاپ کې داسې راغلی دی: "ګهې تلخ شي لکه زهر — ګه شيرين لکه شکر".
په "پ پ" چاپ کې: "ګاهې تلخ شي لکه زهر — ګاه شيرين لکه شکر".
د "خ" په لومړۍ نسخه کې داسې راغلی دی: "ګهې تلخ شي ګاهې زهر — ګاه شيرين لکه شکر".
د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې راغلی دی: "ګهې ترېخ شي لکه زهر — ګاهې شيرين لکه شکر".
او د "پ" په دوهمه نسخه کې داسې راغلی دی: "ګاه ترېخ شته لکه زهر — ګاه شيرين لکه شکر".

(٤) دا بيت د "خ" په لومړۍ نسخه کې نه دی راغلی. لومړۍ مسرۍ يې په قلمي نسخو کې داسې راغلې ده: "چې وشوه هغه وشوه".

(۵) د "پ" دوهمه نسخه: "دا بيان دوړ ودراز ه".

(۶) دا غزل په مصوره نسخه کې نه دی راغلی او د دې بيت دوهمه مسرۍ په "پ پ" چاپ کې داسې راغلې ده: "د عاشق په پښو کې دې خپلې داور".

(۷) دا مسرۍ په چاپي ديوانونو کې داسې راغلې ده: "که ديدن د يار موند ه په انتظار شي".

(۸) دا بيت د "خ" په لومړۍ او د "پ" په دوهمه نسخه کې نه دی راغلی او د دې بيت دوهمه مسرۍ د "پ" په لومړۍ نسخه کې داسې راغلې ده: "قهر حلم يو په سله دې تر زور".

(۹) دا مسرۍ د "خ" په لومړۍ نسخه کې داسې راغلې ده: "که لويي ده که سرکشي زما توبه ده". او د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې راغلې ده: "له لويي له سرکشۍ مې توبه ده".

(۱۰) دا بيت په قلمي نسخو کې نه دی راغلی.

(۱۱) په "پ" چاپ کې د "شوه" پر ځای "دی" راغلی دی.

(۱۲) دا مسرۍ په "پ پ" چاپ کې داسې راغلې ده: "ناز و جور و کبر د خوبانو". او په "پ" چاپ کې داسې راغلې ده: "جفا ناز و جور و کبر د خوبانو".

راحت بې زحمته نه دی چا موندلی (۱) — غم بنادي دي ددې دهر خوارا و ورور

رحمان هسې په خپل یار پسې غوښ غوښ یم (۲)
لکه غوښ په خپل اولاد وي پلار او مور

٨٣ — ١٠٦٥

پس له مرګه که خوك ارت غواړي خپل ګور — که حق وایم هومره ارت دې بويه کور (۳)
ترڅان زیاته کمه چارخه په کار نه ده — ځان په لوبشت کړه چې دې ځوديي او بنده سور
چې جامه د چا کوتاهه یا اوږده شي — ور کاوه شي هنرمند له په پېغور
هر سړی چې په حساب کې تېر و بېر شي — ملامت پرې وایه کېږي لور د لور
چې لایق د ملامت او د تهمت شي — ځای لري که بې عزت شي هم سرتور
چې عزت حرمت یې نه وي په جهان کې — هغه هسې ژوندون وسوزه په اور
بې عزت سړی په خوبن د هیچا نه وي — مګر هسې بې عزت وي ځیني نور (٤)
خپل مجلس یې ترجمله مجلسه خوبن وي — په هر ځای چې سره جمع شي ځمسور (۵)
هر همجنس له خپله جنسه سره خوبن وي (٦) — زیب کاهره کښیده په خپل انځور
نابینا په خپله سیمه کې بینا وي — بینایان په پردی ملك شي کړ و کور
که ته نه یې بدکرداره بد عمله — کښیني ګې منه بدکردار سړی په غور (۷)
درست صورت دیوه نوك په درد درد منده شي (۸) — وران شي ښهر د یوه سړي په تور
چې یو غاښ په خوله کې زوړند شي یا وځي — درسته خوله پرې بدنمایه شي هرګور (۹)

---

(۱) دا مسری د "خ" په لومړی نسخه کی داسی راغلی ده: "راحت نه دی بی زحمته چا موندلی".
د "پ" په دوهمه نسخه کی لومړی مسری داسی راغلی ده: "راحت نه دی چا موندلی بی زحمته".

(۲) دا مسری په "پ" چاپ، د "خ" په لومړی نسخه اور "پ" په دوهمه نسخه کی داسی راغلی ده: "رحمان هسې په خپل یار پسې غوښ غوښ دی".
د "خ" په دوهمه نسخه کی داسی راغلی ده: "زه رحمان هسې په خپل یار باندې غوښ غوښ یم".
د "پ" لومړی نسخه: "زه رحمان هسې په خپل یار پسی غوښ غوښ یم".

(۳) د "پ" لومړی نسخه: "پس له مرګه که ارت خوك ګنی خپل ګور — که حق وایم هومره ارت بویه کور".
په مصوره نسخه کی لومړی مسری داسی ده: "پس له مرګه که غوارت کوي خپل ګور".

(٤) "ق" چاپ: "بی غیرت سړی به خوبن د هیچا نه وي — مګر هسې بی غیرت وي ځیني لور".
د "خ" په لومړی نسخه کی د "ځیني لور" پرځای "خم خور" راغلی دی.

(۵) د "خ" لومړی نسخه: "په هر ځای چې سره ورپیشی خلور". د "پ" لومړی نسخه: "په هر ځای چې وبله ورشي خمسور".

(٦) دا بیت اوو رسی تموله غزله په مصوره نسخه کی نشته، چاپي دیوانونو کی لومړی مسری داسی ده: "هر هم جنس له خپل هم جنس سره جوړ وي".
د "خ" لومړی او دوهمه نسخه: "هر همجنس له خپله جنسه سره جوړ وي".

(۷) دا بیت په "پ" چاپ، "ق" چاپ اور "خ" په لومړی نسخه کی نشته. د "پ" په لومړی نسخه او "خ" په دوهمه نسخه کی "که ته نه یې بدکردار و بدکردار کا کښینی دی منه بدکردار سړی په غور". اور "خ" په دوهمه نسخه کی دا بیت داسی دی: "که ته نه یې بدکرداره بدعمله — کیدی منه بدکردار سړی په کور".

(۸) دا مسری د "خ" په لومړی نسخه کی نشته.

(۹) دا بیت د "خ" په لومړی نسخه کی نشته.

یو سړي چې په کوړمه کې د چا کرم شي ... واړه کرم کا که پنځه دي که څلوړ (۱)

بدکردار زوی پیدا شه له مور ه ... ابتر کاندي ناموس د پلار و مور

هر څوك خپله خوشحالي له خدایه غواړي ... باري (۲) نه شي دغه کار په زرو زور

خدای په خپل قدرت څوك لوی و څوك هلاك کړه ... نه چې هر سړی ډیلی شي یا لاهور

د تنګو پورونه هر څوك و بله کاندي ... بخت هیڅ چا ورکړی نه دی ځبله پور

د چا تاج په سر زرین خنجر تر ملا وي ... د چا پنډ په سر په ملا تومبلی لوړ

څوك په آس د پاسه سور وي توغ دوړاندې ... څوك زیر کلي ګرځي او شي په خره سور

ای رحمانه د خدای نوم به چا وانخست
که د خدای چاري په پلار شوې یا په مور

۸۴ ... ۱۰۸۶

---

س

تا دې خوا آلود وسترګو خوا را یو وړ ... لبو دي (۳) لذت د میو ناب را څخه یو وړ

نه مې اوښکې پاتې شوې نه صبر په صورت کې ... ډېرې بې صبرۍ د مخ آب را څخه یو وړ (۴)

زړه مې په نغمو نغمو سوري کړ مطربانو ... عقل ساقیانو په شراب را څخه یو وړ (۵)

یو ساقي بل یار درېیم مطرب سره یو ځای شول ... زړه یې له ګوګله په شتاب را څخه یو وړ

څه شو که یې یو وړ خراب (۶) دل مې ترې قربان شه ... نور چا وړي نه دي خپل احباب را څخه یو وړ (۷)

---

(۱) چاپي دیوانونه : " یو سړي چې په کوړمه کې د چا بد شي ، واړه بد شي که پنځه دي که څلور".

(۲) د "خ" دوهمه نسخه کې " موندونه شي " راغلی دی.

(۳) په چاپي دیوانونو کې " شونډې د " راغلی دی.

(۴) " ق ،ك " چاپ : " ډېرې بې صبرۍ مې د زړه آب را څخه یو وړ ".
" ق " چاپ : " ډېرې بې صبرۍ مې د مخ آب را څخه یو وړ ".
" پا ، پ " چاپ : " ډېرې بې صبرۍ دې د مخ آب را څخه یو وړ ".

(۵) دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته . "پ ،پ" چاپ کې لومړی مسری داسې ده : " زړه مې په نغمو مره سوري کړ مطربانو ". "ق" چاپ : " زړه مې په نغو سوري سوري کړ مطربانو ".

(۶) په چاپي دیوانونو کې "خسته" راغلی دی (۷) دا بیت د "خ" په لومړي نسخه او مصوره نسخه کې نشته.

خط دې تور حرفونه مخ دې پاڼې دکتاب کړي[1] — شغل دکتاب دې بل کتاب را ثخنه یو وړ[2]
هر اسباب چې ما ثخنه د زهد د پرهېز وُ[3] — واړه تا دحسن په اسباب راثخنه یو وړ[4]

٨٥

کړی مار رحمان په زړه کې نقش د محراب وُ
ستا آبرو یو نقش د محراب راثخنه یو وړ

١٠٩٤

خراب زړه[5] مې د دلبر و هوا یو وړ — د هواله وړ یو چا زده چې چا یو وړ
گوښې گوښې بنایسته مې زړه وکاږي — زه وکوم یوه ته وایم چې تا یو وړ[6]
چې مې زړه لره د تورو زلفو ځای غوښت[7] — هغه زړه راثخنه دېرې ژړا یو وړ
د سېلاب په مخ کې کله د چا خوب شي — شیرین خواب راثخنه دېرې ژړا یو وړ
هغه رخت چې مې د صبر د سکون وُ — هیڅ رانه کړ هوشانو وېرپا یو وړ
هغه عقل چې یې لاف دخود رایې کړې — په یوه پیاله د میو مینا یو وړ[8]
که یې یو وړ خسته دل مې ترې قربان شه — نا آشنا وُ وړی نه دی آشنا یو وړ[9]

٨٦

هیڅ ناحق پرې شوی نه دی که حق وایم
معشوقې د رحمان زړه په رضا یو وړ

١١٠٢

---

(۱) په چاپي دیوانونو کې "دی" او د "خ" په درې واړو نسخو کې "شوی" راغلی دی.

(۲) "ق" چاپ او "ق، ک" چاپ:
"شغل دکتاب دې خورد وخواب راثخنه یو وړ".

(۳) د "خ" لومړی نسخه: "دشرم یاد ننګ وُ"
او د "خ" په دوهمه او مصوره نسخه کې د "زهد د تقوی" راغلی دی.

(٤) "ق، ک" چاپ: "واړه ستا دحسن دې سېلاب راثخنه یو وړ".

(٥) په قلمي نسخو کې "دل" راغلی دی.

(٦) دا بیت په مصوره نسخه کې نشته.

(۷) دا بیت په مصوره نسخه کې نشته، په "ق، ک" چاپ کې لومړی مسرې داسې ده:
"چې مې زړه مینه په تورو زلفو کړله".

(۸) دا بیت په مصوره نسخه کې نشته، په چاپي دیوانونو کې داسې دی:
"هغه عقل چې یې لاف دخود رایي کړې — په یوه پیاله یې واړه له ما یو وړ".
د "خ" لومړی نسخه: "هغه عقل چې یې لافې دخودۍ کړې".

(۹) دا بیت د "خ" په لومړی نسخه کې نشته.

لکه کاندي په کوترو نظرباز / هسې زه یم د دلبرو نظرباز

زه ونورچاته خبري درازنه کړم(۱) / بې هغوچې موي(۲) مژګان لري دراز

بل بادشاه لره محال دی د ملك دزړونو / مګر مخ دچا محمود شي خال ایاز(۳)

ستاتر(۴) زني ترسیب پوري رابنکاریږي / نوري زني دخوبانو لکه پیاز(۵)

د تصویرله ګلوطمع دبوی مه کړه / بې وفادي واړه تُرکي دمجاز(۶)

هغه یارکه په څپل ناز خوښ وخرم دی(۷) / زه هم خوښ یم همېشه دیار په ناز

همېشه مې لاس نیولی دی دعا(۸) کړم / چې مدام دې دیار ناز وي زما نیاز

که څوك آه وفریاد بنه ګڼي په عشق کې(۹) / زه په عشق کې دغه کار ګڼم غماز

ښادي هرچېري دغم په اندازه وي / هسې غم دی د ښادۍ په انداز(۱۰)

نیستي واړه(۱۱) دهستۍ په دنبال ګرځي / نه پوهېږي په اوبو کې تش جهاز

داقاعده ده لکه لوړ هومره ژور وي(۱۲) / یو صورت دی هم نشیب شي هم فراز

چې یکسان ګوري هم شاه وهم ګداته(۱۳) / هسې یار دی د رحمان غریب نواز

٨٧ — ١١١٤

(۱) په چاپي دیوانونو کې دامسرۍ داسې راغلې ده: "زه ونورچاوته درازخبري نه کړم". (۲) د "پ" په دوهمه نسخه کې "دوی" راغلی دی.

(۳) د "خ" لومړۍ نسخه کې دامسرۍ داسې راغلې ده: "مګر مخ دچا محمود حال دایاز" او په همدې مسرۍ کې د "شي" پرځای دپېښور په چاپي دیوانو، مصوره نسخه او د "پ" په دوهمه نسخه کې "وي" راغلی دی.

(۴) د "پ" له لومړۍ نسخې او مصورې نسخې نه پرته په ټولو نورو کې د "تر" پرځای "د" راغلی دی.

(۵) دابیت د "خ" په لومړۍ نسخه کې داسې راغلی دی: "ستا د زنې ترسیب پورې ښکارېږي نورې ترکې اوخوبانې لکه پیاز".

(۶) دامسرۍ په "پ" چاپ کې داسې راغلې ده: "له منقوشو مرغو نه خبرېږي آواز". (۷) د "پ" له لومړۍ نسخې نه پرته په ټولو نورو کې د "وي" پرځای "دی" راغلی دی.

(۸) په مصوره نسخه، د "خ" لومړۍ نسخه، د "پ" دوهمه نسخه، په "پ" چاپ او "پ پ" چاپ کې د "دعا" پرځای "خواست" او "ق، ک" چاپ کې "سوال" راغلی دی.

(۹) دامسرۍ د "خ" په لومړۍ نسخه کې داسې راغلې ده: "که څوك آه وفریاد ونه کړي په عشق کې". (۱۰) دامسرۍ په چاپي دیوانونو کې داسې ده: "هسې غم د دې دنیا دی په انداز".

(۱۱) د "پ" په لومړۍ نسخه کې د "واړه" پرځای "هرچېرې" راغلی دی. (۱۲) دامسرۍ د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې راغلې ده: "داقاعده ده لکه لوړ هومره په څوړ وي".

(۱۳) دامسرۍ د "پ" په لومړۍ نسخه کې داسې راغلې ده: "چې یکسان ګوري وشاه وو هم ګدای ته". په چاپي دیوانونو کې داسې راغلې ده: "چې یکسان ګوري هم شاه ته هم ګداته".

که بې ځایه زړکې نه وسنکې آواز / نه صیاد ځني خبر ؤ نه شهباز (۱)

سکه له دې خبرې هسې معلومېږي / خپل صورت دی هر سړي له غماز (۲)

د منصور و حال ته ګوره حال يې څه شو (۳) / خدای دې فاش د هیچا نه کاندي پټ راز

د ښځه د ښځه که ور سوې عقل روښي وي / د انجام خبرې نه شي په آغاز

نېك عمل د عالمانو (٤) نېك فرزند دی / خدای څوك مه کړه شراب خوار او قمارباز

چې فرزند يې شراب خوار او قمارباز شي (٥) / نور يې کاڼي شي د پلار په خونه ساز

خدای له هسې زاهو زاده امان راکړه (٦) / چې بې دين بې ديانت شي بې نماز

چې منکر پرې اعتراض کولی نه شي
دادې شعر دی رحمان نه که اعجاز

۸۸ — ۱۱۲۲

بد اختر به نېك اختر نه شي هرګز / مرغ چوچه به در ګوهر نه شي هرګز (۷)

که مکان يې په آسمان دی (۸) غزا وشوه / ستاره به شمس و قمر نه شي هرګز

که يې اصل له يوې ځمکې وي څه شو / بېد به سرو صنوبر نه شي هرګز

که همه عمر باران ور باندې ووري / خس به ګل د پیغمبر نه شي هرګز (۹)

له نا اهلو وفا طمع ومه کړه (۱۰) / ګنده نل به نیشکر نه شي هرګز

که تور غر له ځایه خوزي وبه خوزي (۱۱) / ولې نور به مقدر نه شي هرګز

د رحمان په باب چې وشوه هغه وشوه
مکرر (۱۲) به دا دفتر نه شي هرګز

۸۹ — ۱۱۲۹

---

(۱) دا غزل په مصوره نسخه کې نشته.

(۲) دا بيت په چاپي ديوانونو کې داسې راغلی دی: "هم له دې خبرې هسې معلومېږي خپل آواز دی هر سړي له غماز".
او د "خ" په لومړي نسخه کې داسې راغلی دی: "لکه له دې خبرې هسې معلومېږي چې خپل صورت دی هر سړي له غماز".

(۳) د "پ پ" چاپ کې د "څه شو" پر ځای "څه دی" راغلی دی.

(٤) په چاپي ديوانونو اود "پ" په لومړي نسخه کې د "عالمانو" پر ځای "عاملانو" راغلی دی.

(٥) په چاپي ديوانونو اود "خ" په لومړي نسخه کې د "شي" پر ځای "وي" راغلی دی.

(٦) دا مسرې په "پ" چاپ کې داسې راغلې ده: "خدای له هسې زاوزاده امان وکړه".

(۷) دا غزل په مصوره نسخه کې نه دی راغلی او ددې بيت د دوهمې مسرې "مرغ چوچه" په چاپي ديوانونو کې "مرغ چچ"، د "خ" لومړي نسخه کې "مرغنچې" او د "خ" په دوهمه نسخه کې "مرغ بچه" او د "پ" په دوهمه نسخه کې هم "مرغ چچ" راغلی دی.

(۸) په "پ" چاپ او "ق، ک" چاپ کې د "دی" پر ځای "وی" راغلی دی.

(۹) دا بيت د "خ" په لومړي نسخه کې نه دی راغلی، دوهمه مسرې يې د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې راغلې ده: "خس به ګل صنوبر نه شي هرګز". او لومړۍ مسرې يې د "پ پ" چاپ کې داسې راغلې ده: "که همه عمر باران ور باندې وشي".

(۱۰) په "ونه کړې" راغلی دی.

(۱۱) دا مسرې د "پ" په لومړي، دوهمه او د "خ" په لومړي نسخه کې داسې راغلې ده: "که تور غر له ځايه کوزي وبه کوزي".
دا اتول بيت د "خ" په لومړي نسخه کې داسې راغلی دی "که تور غر له ځايه ګرځي وبه ګرځي ولې تور به مقدر نه شي هرګز".

(۱۲) د "سپ" په دواړو نسخو کې د "مکرر" پر ځای "مکدر" راغلی دی.

# س

پښتنه سپین ستر ګي تاریکي غابن کښلي س — نه وکاږي د د نیا له چارو لا س
په هر لوري (۱) چي یي موځي پسي درومي — نه په چپ لوري صرفه کړي نه په راس
یو وپښته د عقیده يې دي په تن نشته — سر تر پایه هسې ډوب (۲) يي په وسواس
خدای رازق بولي او رزق بولي له کسبه — په د اشناخت وځان ته والي حق شناس
هسې رنګ په بد صفت يې موصوف شوی — چي هيڅ نه پوهيږم ناس يي که خناس (۳)
په دو لچه کي به ورنه شي تر توحیده — که پيشوا کړي هم تر خضر هم تر الیاس (٤)
واره زهر وقاتل نغري که پوهيږي — که سیوال له خدایه نغري هر انفاس
امرداد ي چي له لمي لاس کوتاه کړي — او که نه وي خپسر وګنه مواس (۵)
خیرداد ي چي له شره وجار وځي — په د اچارو کي هيڅ نشته کوز و پاس (۶)
که زما ویل دروغ یا کوز و پاس وي — ته پخپله په خپل زړه وکره قیاس (۷)
له سریه غرض واړه سړي توب دی — نه چي پټ وي د سرو زرو په لباس (۸)
څه په دابه عراقي او ترکي نه شي — که په خره باندي څوك سوږ شي که په آس (۹)

---

(۱) په قلمي نسخه کي "په هر طور" راغلی دی.
(۲) د "ب" په لومړی نسخه کي "ډوب یم" راغلی دی.
(۳) دا بیت په "ق ،ک" چاپ ، او د "خ" په لومړی نسخه کي نشته ، په نورو چاپي دیوانونو کي داسی دی :
"هسې رنګ په مذبذب صفت موصوف شوي — نه پوهیږ مدچي ناس يي که خناس".
د "ب" په لومړی نسخه کي يې دوهمه مسری داسی ده : "چي هيڅ نه پوهيږم ناس يي که خناس"
(٤) له دي بیت نه ورسته بیتونه په "ق ،ک" چاپ کي نشته.
(۵) د "خ" په لومړی نسخه کي دا بیت نشته .
(۶) د "خ" لومړی نسخه : " امردادي چي له لمي وجار وزي — په د اچارې کی هيڅ نشته کوز و پاس".
(۷) د پیښور چاپي دیوانونو او قلمي نسخي : " ته پخپله په خپل زړه کي وکره قیاس".
(۸) د "خ" لومړی نسخه : "له سړیه غرض واړه سړی خوی دی — نه چي پټ دي زرد مسو په لباس".
د "ب" لومړی نسخه : "له سړيه غرض واړه سړي هوش دی — نه چي پټ وي مس دزرو په لباس".
د "پ پ" چاپ : "که سړی يي غرض واړه سړی هوش کا — نه چي پټ وي د سروزرو په لباس".
(۹) د "خ" لومړی نسخه : "که دخره په سر سړی وی د آ س".
د "ب" په لومړی نسخه او د "خ" په دوهمه نسخه کي : "که دخره په سر سړیه کړی د آس".
مصوره نسخه : "که دخره په سر سړی سور شي که د آس."

د تشنه خوله او بو سره مطلب وي ... نه تش اېښي بې او بو د زر و طاس[1]

هر زاهد چې په ریا زهد نا زېږي ... د خر بښت ګومان يې کېږي په اماس

دا زما عاجز امید دی که رب کاندي ... په قیامت به مې شفیع شي خیر الناس[2]

**٩٠** — **١١٤٥**

اې رحمان نالې که څه کاردي خو د دین دي[3]

نور کارونه بې وفا دي بې اساس

تېر شو درست عمر زما په دا هوس ... که مې و پوښتي چې څوك يې يا څه کس[4]

يو پرسش د هغه يار ما لره بس کا ... چې څه کس وي خو يې يوه وېناوي بس[5]

هزار حيف دی چې په هر نفس تري تېښتم ... هغه لورته چې مې تــلـه دي هر نفس

چې يې زه په هر نفس لـه خدایه غوارم ... هغه کله وینم په د بر پس[6]

که يو خس وي په محتاج لکه کرو رشي[7] ... خدای دې نه کا څوك محتاج د يوه خس

هر مرغه په خپله جاله کې همــای دی ... که کارغه که مېنګیرك دی که ققنس

که شهباز لره سینه ده د تـــنـزري ... عنکبوت لـره سـینـه ده د مـګس[8]

خو چې خاورو لـره ورشي بـرابر شي ... که چاغوندی وي اغوستی که اطلس[9]

**٩١** — **١١٥٤**

هم هغه يې ژړوي چې خند وي يې[10]

نور څوك نشته د رحمان فریاد رس

که څوك فخر کا په ننګ او په ناموس ... دا په عشق کې نه ارزېږي يو فلوس[11]

که اغوستي يې زري جامې وي څه شـو ... ګـنـه یا مرغ زرين دی یا طاؤس[12]

---

(١) د "پ" لوړی نسخه : " نه تش بې او بو د سیمو زر وطاس".
مصوره نسخه : " نه چې تش کټوری د سیم وزر وطاس".

(٢) دا بیت د "ق" چاپ نه نقل شو.

(٣) د "خ" په نسخه کې د "دین" پر ځای "خدای" راغلی دی.

(٤) دا غزل په "ق، ک" چاپ کې نشته.

(٥) "پ" چاپ : " که څه کس وي خو يو ويله ورلره بس".
د "پ پ" چاپ : " که څه کس وي خو يو واروی ورله بس".
"ق" چاپ : " که څه کس وي خو يو حرف ورلره بس".
د "خ" لوړی نسخه او مصوره نسخه : " چې څه کس وي خو هم يو دې دی بس".
د "خ" دوهمه نسخه : " چې څه کس وي خو چې يو ولې دی بس".

(٦) د "خ" لوړی نسخه : " هغه کله ووینمه په د بر پس".

(٧) دا بیت د "خ" په لوړی نسخه کې نشته، په چاپي دیوانونو کې لوړی مسری داسې ده : " که يو خس وی په محتاج لکه غرایشی".

(٨) د "خ" لوړی نسخه : " که شهباز لره تا به ده د تنزري عنکبوت لره تا به ده د مګس".

(٩) په "پ" چاپ کې "چا اطلس"، او د "پ" په لوړی نسخه کې "یا اطلس" راغلی دی.

(١٠) چاپي دیوانونه : "هم هغه مې خندوي چې ژړوي مې بل څوك نشته د رحمان فریاد رس" او د "پ" په لوړی نسخه کې "لوړ څه نشته" راغلی دی.

(١١) دا بیت په مصوره نسخه کې نشته.

(١٢) دا بیت په مصوره نسخه کې نشته، او لوړی مسری يې د پښتو په چاپي دیوانونو کې داسې راغلی ده : "که اغوستي يې زرین لباس وي څه شو".

کہ یې تاج وي په سر اېښی غزا وشوه ... په نظر زما هدهد دی یا خروس (۱)

نه یې فهم او فراست وي نه یې علم ... خالي نقش لکه عکس د معکوس (۲)

نه یې مغز نه دانه وي په خرمن کې ... عبث هسې په سر لوني واړه بوس (۳)

د مجاز له اهله طمع د خیر مه کړه ... تمامي شر او شدت دی دا لوس (٤)

ودانې یې همه واړه ویراني ده ... راشه وګوره ماڼۍ د کیکاوس (۵)

که زما په ګفتګوی کې زیات و کم وي ... ښوک دې ګڼه کا په دا ښهر کې جاسوس (٦)

ساقي جام او باده راوړه چې بې خود شم ... خدای ښوک مه کړه په خودۍ کې محبوس (۷)

که ښوک وغواړي تمام د دنیا واړه ... زما یار غوندې به نه وي بل عروس (۸)

رحمان حسن د یار وینم په پرده کې (۹)<br>نه پټېږي نور د شمع په فانوس

۹۲ — ۱۱۶۵

## ص

راګ وره خه بلند مقام دی داخلاص ... چې جهان واړه غلام دی داخلاص (۱۰)

که له ځمکې و آسمان ته خانه ګران دی (۱۱) ... دا سفر په یوه ګام دی داخلاص

---

(۱) دا بیت په مصوره نسخه کې نشته. (۲) دا بیت په مصوره نسخه او د "پ" په مختلط نسخه کې نشته، لوموړی مسرۍ یې په "پ" چاپ کې داسې راغلې ده: "نه یې فهم فراست دی نه یې عقل". او د "پ پ" چاپ کې داسې راغلې ده: "نه یې نقش او فراست دی نه یې عقل".

(۳) دا بیت په مصوره نسخه کې نشته، دوهمه مسرۍ یې په "پ" چاپ کې داسې ده: "عبث هسې خالي لوني په سر بوس".

(٤) دا بیت په مصوره نسخه او د "پ" په مختلط نسخه کې نشته، د "پ پ" چاپ کې دا بیت داسې راغلی دی:

"د مجاز له یاره طمع د خیر مه کړه ... تمامي شر او شدت دی یا سالوس"

د "پ" لومړی نسخه: د مجاز له یاره طمع د خیر مه کړه ... تمامي شر او شدت دی له او الوس".

او د "خ" په لومړی نسخه کې یې لومړی مسرۍ داسې راغلې ده: "د مجاز له اهل دله طمع مه کړه".

(۵) په چاپي دیوانونو کې د "کیکاوس" پر ځای "قیانوس" راغلی دی، او دا بیت په مصوره نسخه او د "پ" په مختلط نسخه کې نه دی راغلی.

(٦) دا بیت په مصوره نسخه او د "پ" په مختلط نسخه کې نشته او دوهمه مسرۍ یې د "خ" په لومړی نسخه کې داسې راغلې ده: "ښوک دې وکه په دا ښهر کې جاسوس".

(۷) دا بیت د "پ" په مختلط نسخه کې نه دی راغلی، دا بیت په "پ" چاپ او مصوره نسخه کې داسې راغلی دی: "ساقي جام د باده راوړه چې بېخود شم ... خدای ښوک مه کړه په خودۍ کې محبوس".

په "ق، ک" چاپ کې: "ساقي جام د میو راکړه چې بېخود شم ... خدای ښوک مه کړه په خودۍ کې محبوس". په "پ پ" چاپ کې: "ساقي جام د میو راکړه چې بې خود شم ... خدای دې نه کړه په خودۍ کې محبوس ښوک". د "خ" په لومړی نسخه کې لومړی مسرۍ داسې راغلې ده: "ساقي جام د بادې راوړه چې بې خود شم".

(۸) دا بیت د "پ" په مختلط نسخه کې نشته، د "خ" په لومړی نسخه کې د "بل عروس" پر ځای "یک عروس" راغلی دی (۹) د بېښور په چاپي دیوانونو او د "خ" په دواړو قلمي نسخو کې داسې راغلې ده: "رحمان حسن د یار وینې په پرده کې".

(۱۰) دا غزل په مصوره نسخه کې نشته، په "پ" چاپ او د "پ" په لومړی نسخه کې دا بیت داسې راغلی دی: "خه عجب بلند مقام دی داخلاص ... چې جهان واړه امام دی داخلاص".

او د "پ" په دوهمه نسخه کې د "مقام" پر ځای "مکان" راغلی دی. (۱۱) دا مسرۍ د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې ده: "له دې ځمکې و آسمان ته خانه ګران دی".

چې خبر کا مخلصان له غیبه علمه(۱) — دا همه وارده الهام(۲) دی د اخلاص

د رواج او رسم عمر مدام نه وي — لکه(۳) عمر چې مدام دی د اخلاص

بې اخلاصه د اسلام حلاوت نشته — که اسلام دی خو اسلام دی د اخلاص(۴)

څه عجب دی که مستان ترې چاپېر ناست وي — هر ساقي څخه چې جام دی د اخلاص(۵)

څه عجب دی که همائي په دام نښلي — هر صیاد څخه چې دام دی د اخلاص

پس له مرګه به دا مهر و اخلاص نه وي — که اخلاص کړې نن هنګام دی د اخلاص(۶)

۹۳ — ۱۱۷۴

د رحمان کلام په دا سبب شیرین دی
چې یې هر کلام، کلام دی د اخلاص

که ترستوني دې شي ګوټ له جام خاص — هغه دم به شي د غم له شپېو خلاص(۷)

تل په سپینه جامه تکی بد لیده شي — نه د عامي چارې مکړه خاص الخاص

که دوړي نهنګ ځان ته، یو لقمه کړي — زر به را وړي په تحقیق سره غواص

په لباس به دې آسان په صورت ګران شي — مشکلات به دې اسان شي له اخلاص

که نغمه د محبت په غوږ واورې — په فلک به شي زهره غوندې رقاص

معنوي صورت پیدا کړه که مېړه یې — فایده څه ده د بوتانو له اشخاص

د بل خیر په خاصیت به هغه ګوري — چې خبر نه وي د مینې له خواص

۹۴ — ۱۱۸۲

چې تا رحمه ورځیني رخت د مینې نکه
هم دار او سره رحمانه له رصاص

که ګوهر د عشق په لاس راکړي غواص — بیا هاله یې دی له ما سره اخلاص(۸)

په کاله به د رقیب غمونه زور شي — که مې یار کاندي حساب له خاص الخاص

---

(۱) دا مسرې په چاپي دیوانونو او د "پ" په دوهمه نسخه کې داسې ده: "چې خبر کا مخلصان له علم غیبه".

(۲) د "پ" په لومړۍ نسخه او د "خ" په دوهمه نسخه کې "اعلام" راغلی دی.

(۳) په قلمي نسخو کې "لکه" راغلی دی.

(۴) دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته. په چاپي دیوانونو کې یې لومړۍ مسرې داسې ده: "بې اخلاصه حلاوت د اسلام نشته". او د "خ" په لومړۍ نسخه کې داسې ده: "بې اسلامه د اخلاص حلاوت نشته".

(۵) دا بیت د "پ" په دواړو نسخو او د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته او لومړۍ مسرې یې په "پ" چاپ کې داسې ده: "څه عجب دی که مستان وی ترې چاپېره". او د "خ" په لومړۍ نسخه کې داسې ده: "څه عجب دی که مستي یې دی له جوره".

(۶) دا بیت د "ق، ک" چاپ او د "پ" په دوهمه نسخه کې نشته، خو لومړۍ مسرې یې د "خ" په لومړۍ نسخه کې داسې ده: "پس له مرګه چې دا مهر اخلاص نه وي".

(۷) دا غزل یوازې او یوازې د "خ" په دوهمه نسخه کې راغلی دی، په نورو قلمي نسخو او چاپي دیوانونو کې نشته.

(۸) دا دواړه یوازې او یوازې د "خ" په دوهمه نسخه کې راغلي دي. په نورو قلمي نسخو او چاپي دیوانونو کې نشته.

په کمند د مستۍ میني دخوبانو — بندي مه کړي خدای د حشره پورې خلاص

په رحمان باندې نظر د کرم وکړې
اې چې يې د پاك الله په دربار خاص

۹۵ — ۱۱۸۶

ساقي راکړه ته و ما ته جام د رقص — زه آرزو په زړه لرم مدام د رقص

ده وې اوس به دخوښۍ ساعت په تاشي — مغني راکړه و ما پیغام د رقص

مسقي(۱) علم خپل استاد را ته تعلیم کړه — را نما يې کړه هر تار مقام د رقص

سر يې پاس تر نهه فلکه خرګندېږي — چې په چاوشي ارشاد اعلام د رقص

چې جلوه پرې د محبوب له لورې کېږي — هرګز نشته په هغه اشام د رقص

لیاقت يې هر وګړي ځه نشته — په لايقو باندې وي انعام د رقص

ځو يې سا په وجود شته عبدالرحمانه
حقیقت به هومبري نه که تام د رقص

۹۶ — ۱۱۹۳

# ض

کله ته نه کړې په بل چا باندې غرض — بل به هم نه کا په تا باندې غرض(۲)

که ګدای د بل په غولي غرض(۳) نه کړي — سپي به نه کا په ګدا باندې غرض

په ساحل کشتۍ د هغه چا نه ډوبېږي — که خوك نه کا په دريا باندې غرض

خلوتیان په خپل خلوت کې فراغت دي — د رسوا دي په رسوا باندې غرض

دا دنیا په احمقانو ده ودانه — دانا نه کا په دنیا باندې غرض

زه رحمان د عشق په درد کې هسې خوښ یم(٤)
چې مې نشته په دوا باندې غرض(۵)

۹۷ — ۱۱۹۹

(۱) په اصل نسخه کې په حدي د دل ليکل شوي ده. (۲) دا غزل په مصوره نسخه کې نشته، دو همه مسرۍ يې په "ب" چاپ او "ق" نسخه، چاپ کې داسې راغلې ده: "بل به نه کا نه که په تا باندې غرض". (۳) د "خ" په لومړۍ نسخه او د "پ" په دوهمه نسخه کې "ګدا" راغلی دی. (٤) دا مسرۍ د "خ" په لومړۍ نسخه کې داسې ده: "زه رحمان به دانا کام کوم تو قومه". (۵) دا مسرۍ د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې ده: "چې مې نشته په بل چا باندې غرض".

په دربار کو مرد ښکلي د دلبر عرض — په هر دم په هر ساعت مقرر عرض[1]

که قبول شي د مولا په پاک دربار کې — دا په روی د شاه نبي پیغمبر عرض

په مانند د ګړیال په پنځه وخته — په شورش د غم له خوفه د سقر عرض

بې خاونده د کار (و) کله څه کېږي — څه که کار ته همېشه کړ قلندر عرض

دا رحمان بې نبي کله د ښېښتن ته
شوی کولی د بل نکار سراسر عرض

۹۸ — ۱۲۰٤

که مې یار په دیدن سر غواړي عوض — ور قربان شه چې دلبر غواړي عوض

چې هستي واړه نیستي کاندي واصل شي — ګنده کچکول دې قلندر غواړي عوض

د دوهمه په اور به څه حاجت موقوف وي — عاشقي ترې خاکستر غواړي عوض

خپل صورت ورته نافه کړه ته د مشکو — یار مجمر له ره عمبر غواړي عوض

دلباس له ښکلیو طمع بوسه مه کړه — د بوسې په در کړه زر غواړي عوض

د دې دهر له تنګی ړ وېره وکړه — د کمتري په ځای بهتر غواړي عوض

د عشق د رخه په اسانه لوسته نه شي — په دا ځای کې زیر و زور غواړي عوض

په یو ځله به ترې خلاص نه شي رحمانه
سر و مال دې مقرر غواړي عوض

۹۹ — ۱۲۱۲

طمع مه کړه په دنیا کې د نشاط — بیا به نه مومې نشاط په دا بساط[2]

لکه راغله بیا به هسې ځني درومې — دا جهان دی د رهرو یو رباط[3]

تر هر ګام لاندې کوهی دی د دې دهر — ایښې بویه هر قدم په احتیاط

---

(۱) دا دوارہ غزلی د "خ" له دوهمې نسخې نه نقل شوی.
(۲) دا غزل په مصوره نسخه کې نشته.
(۳) دا بیت په چاپي دیوانونو او د "پ" په دوهمه نسخه کې داسې راغلی دی: "لکه راغلې بیا به هسې ځنې درومې — دا جهان د رهروانو دی رباط".

ودانا وته په دا جهان ښکاربږي — هم جنت او هم دوزخ او هم صراط

په عاشق به هیڅ دهشت د رقیبانو — که یې نه کړي له خوبانو اختلاط

له کم ذات بې دیانته بې نمازه — طمعه مه کړه د نېکۍ د یو قیراط (۱)

غم د ترکو تر رحمانه هسې چاپېر شو (۲)

لکه وسکښي جامه په چا خیاط

۱۰۰ — ۱۲۱۹

ن نګار وماته راکړ دیارۍ خط — وې یې واخله دا مې دی د دلدارۍ خط (۳)

د غمازله دوراهۍ تراهې وکړه — ځای به بیا یې د مکار په جوارۍ خط

چې یې نه وي چې یې خبري په غفلت کړي — تل یې اوله په تمیز په هوښیارۍ خط

په مدت سره به ستا انجام ته رسي — اسان کله دی د استاد دېارۍ خط

د غفلت له خوبه پاڅه بېلۍ کړه — تل وتاته سپارلي د بېدارۍ خط

برابر د خط په حکم قدم کېږده — که ته غواړې په عقبیٰ د ناماتۍ خط

له مېزانه که امان غواړې رحمانه

تل خواوله په ډېر عجز په زارۍ خط

۱۰۱ — ۱۲۲۶

ومه کله دي پاخه وایي واعظ — هر چې وایي وار به ښه وایي واعظ (۴)

چې دي ماله خپله یاره لرې باسي — نور به څه ورته اومه وایي واعظ (۵)

جار واته زما له یاره ډېر مشکل دي — زیاتي څله دوباره وایي واعظ

---

(۱) دا بیت د "پ" په دواړو نسخو او د "خ" په لومړۍ نسخه کې نشته او لومړۍ مسرۍ یې د پېښور په چاپي دیوانونو کې داسې راغلې ده:
"له کم اصله بې دیانته بې نمازه" او د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې دې ده: "له کم اصلو بې دیانتو بې نمازو"

(۲) دا مسرۍ په "ق، ک" چاپ کې داسې ده "غم د ترکو د رحمان هسې چاپېر دی". (۳) دا غزل د "خ" له دوهمې نسخې نه نقل شو. (۴) دا غزل په مصوره نسخه، د "پ" په دواړو نسخو او د "خ" په لومړۍ نسخه کې نشته. (۵) دا بیت په "پ" چاپ او "ق، ک" چاپ کې داسې راغلی دی. "دې چې ماله خپله یاره لرې باسي نور به څه راته اومه وایي واعظ". د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې دی: "چې ته ماله خپله یاره لرې باسې زه به څه درته وایم وایي واعظ".

په خوږو پستو خبرو يې غلط شوي[1]* ‌‌ ‌ ‌ داخواږه خواږه تراخه والي واعظ
څوك به څه باور دده په نصيحت كا ‌ ‌ ‌ چې له ياره جار واته والي واعظ
زه يې عشقه بل يو كار كولى نه شم ‌ ‌ ‌ ډېر له عشقه تښتېده والي واعظ
اعتبار يې په نرمۍ په گرمۍ مه كړه[2] ‌ ‌ ‌ داتا وده تا وده ساړه والي واعظ

۱۰۲

اورېدونكي يې رحمان[3] د ويل نه يم
بهتر دادى چې نور نه والي واعظ

۱۲۳٤

بلبلان كه له گلزاره مومي حظ ‌ ‌ ‌ مشتاقان له خپله ياره مومي حظ[4]
زه دعشق له تاوده اوره بهره مند يم ‌ ‌ ‌ سمندر له سره انگاره مومي حظ
دچمن غوټۍ واڼه سحر باد كا ‌ ‌ ‌ عاشقان خوله ديباره مومي حظ
په طلب يې نفع مند شوم له هرچا نه ‌ ‌ ‌ تل ښكاري له خپله ښكاره مومي حظ
مجنون بيا مونده خوښي په بيابان كې ‌ ‌ ‌ هر منصور له تېره داره مومي حظ
څوچې ملك دجهان زير و قدم نكا ‌ ‌ ‌ په خپل ځاى به څوك قراره مومي حظ
شگفته چې دغوټۍ غوندې سحر وي ‌ ‌ ‌ هغه زړنى به يې شماره مومي حظ
په ښندل د سر مې سر دوصل بيا موند ‌ ‌ ‌ وپاري تل له وپاره مومي حظ

۱۰۳

چې نيولى يې خپل ځان دغم واورته
رحمان ځكه له انواره مومي حظ

۱۱٤۳

---

بسه تندي چې آتش بل كړ مدام شمع ‌ ‌ ‌ ځكه بيا مونده له خلقو اكرام[5] شمع[6]
په انوار يې منور اهل ابصار شو[7] ‌ ‌ ‌ لا به كله شي ښكاره د انعام شمع

---

* . ددې مخ د متن پاڼليكونه دى په (۷۸) مخ كى ولوستل شي .

پتنګان يې لوړ په لوړ ترمخ ځرځيږي (۱) — څکه (۲) نه کوي په سول کې آرام شمع

وسېزه ته ځان زما په شعله باندې — کړه پتنګ ته په رموز کې کلام شمع (۳)

۱۰۴ — ۱۲۴۸

ستا مجلس د خاصو خاصو (۴) سرفرازو
د رحمان په خبره نه مومي هر عام شمع

کله دې پرې کړه له وګړيو رښتيا طمع — نور بادشاهي هرګز مه کړه له چا طمع (۵)

زړې رنګ د آشنايي مبدل شي — پيدا مه شه د آشنا له آشنا طمع

چې له سنګليو د دې دهر وفا غواړي — د نادان په خبرې شي د کيميا طمع

چې مراد غواړي د زړه له مهرويانو — ستا په دام کې نيواى شي د عنقا طمع

خداى د عقل جواهر ورته بخښلي — له نادانو به څه شان کا دانا طمع

څه سپي د فقير پښې او لمن نيسي — چې د خداى له دره پرې کا ګدا طمع

۱۰۵ — ۱۲۵۵

له دغه رنځ يې طاعون، تبه بهتر دي
اى رحمانه! خداى دې مه کړه پيدا طمع

---

هر يو ګل د ستا د باغ روښن تر دى تر چراغ — روښن تر دى تر چراغ هر يو ګل د ستا د باغ (۶)

ستا د باغ و د بڼ زاغ په نظر زما هماى دى — په نظر زما هماى دى ستا د باغ و د بڼ زاغ (۷)

---

(۱) د پېښور چاپي ديوانونو او د "پ" لومړي نسخه: "پتنګان دي لوړ په لوړ ترمخ ځرځيږي". د "خ" دوهمه نسخه: "پتنګان يې لوړ په لوړ ترمخ تيرېږي". (۲) "ق، ک" چاپ کې "هغه نه کوي" راغلي دي. (۳) دابيت د "خ" په دوهمه نسخه کې نه دى راغلى په عوض يې دابيت راغلى دى: "لوړ د لوړه جهان وايه که روښنانه چې شي بله په هرځاى په مقام شمع".
(٤) د "خ" په دوهمه نسخه، "پ" چاپ او "ق، ک" چاپ کې د "خاصو خاصو" پرځاى "خاص الخاصو" راغلي دي.
(۵) دا غزل د "خ" له دوهمې قلمي نسخې نه نقل شو.
(۶) دا غزل په مصوره نسخه کې نشته (۷) دابيت په قلمي نسخو کې داسې راغلى دى "ستاد باغ د بڼوزاغ په نظر زما هماى دى / په نظر زما هماى دى ستاد باغ د بڼوزاغ". او د "پ" چاپ کې د "هماى دى" پرځاى "هماى ده" راغلي ده.

د (۷۷) مخ د متن مربوط پاڼليکونه :-
(۱) دا مصرع د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې ده: "په خوږو پښتو خبره غلط مه شه". (۲) دا مصرع په چاپي ديوانونو او د "پ" په لومړي نسخه کې داسې ده: "اعتبار يې د بنده والي په ګرځه مه کړه". او د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې ده: "اعتبار د نوڅه په ګرځه مه کړه". (۳) دا مصرع د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې ده: "او ريدونې يې رحمان د ويل نه دي".
(٤) دا غزل د "خ" له دوهمې قلمي نسخې نه نقل شو. (۵) په "پ" چاپ کې "آرام" راغلي دي (۶) دا غزل په مصوره نسخه، د "پ" په دواړو نسخو او د "خ" په لومړي نسخه کې نشته.
(۷) دا مصرع د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې ده: "په اقوال د چې منون اهل ابصار شوه".

د درد منو په دماغ ستا د درخاورې عنبر دي ستا د درخاورې عنبر دي د درد منو په دماغ

د عاشق د تهتر داغ په آسمان د عشق آفتاب دی په آسمان د عشق آفتاب دی د عاشق د تهتر داغ(۱)

د رحمان د زړه فراغ نه شي بې خوبانو(۲)

نه شي نه شي بې خوبانو د رحمان د زړه فراغ

١٠٦ ١٢٦٠

## ق

ورنگ زیب او شاهجهان غوندې اشراف صدقه شه تر منصور غوندې نداف(۳)

که دې تن په لوېي لوی د ې به بې خه کړې(٤) مه کړه خدای چې کوه طور شي کوه قاف

بوالهوس د ې عاشقي ته هوس نه کا دا دروغ دی چې زردوز شي بوریاباف(۵)

د مکې په بزرگۍ کې هیڅ شك نشته(۶) ولې خر به حاجي نشي په طواف(۷)

که په سل دریابه غسل د ځان وکا(۸) گومان مه کړه چې به سپی شي پاك وصاف

کشتۍ هم چې ډېره ډکه شي ډوبېږي د مسرف بلا په ځان شي خپل اسراف(۹)

صابرانو صبر پرېښود حریصان شول نه څه عدل شته په ځان کې نه انصاف(۱۰)

---

(۱) دا بیت د "ب" په دوهمه نسخه کې داسې دی : "د عاشق د تهتر په اسمان باندې افتاب دی په اسمان باندې افتاب دی بل د عاشق د تهتر داغ".

(۲) د "خ" لومړۍ نسخه : "د رحمان د زړه فراغ به ږنه ستې بې خوبانو - ږه به نه شي بې خوبانو د رحمان د زړه فراغ".

د "خ" دوهمه نسخه : "د رحمان د زړه فراغ نه شي بې خو بـا نو - نه شي بې خوبانو د رحمان د زړه فراغ".

(۳) دا غزل په مصوره نسخه کې نه دی راغلی.

(٤) په چاپي دیوانونو کې : "که لې تن په لوېي لوی وی ته به لې خه کړې".

په "ب" چاپ کې داسې ده: "که دې تن په لوېي لوی دی ته لې خه کړې".

د "خ" لومړۍ نسخه : "که دې تن په لوېه وه دی به لې خه کړې".

د "خ" دوهمه نسخه : "که دې تن په لوېه لوی وی ته به بې خه کړې".

(۵) د "خ" لومړۍ نسخه : "بوالهوس دې عاشقۍ ته نظر نه کا دا دروغ چې زور ورشي بوریاباف".

(۶) د "خ" لومړۍ نسخه کې داسې دی : "د مکې په بزرگۍ کې شك نشته".

(۷) د "پ" لومړۍ قلمي نسخه : "ولې خر لې حاجي نشي په طواف".

(۸) د "پ" په نسخه او د "خ" په دوهمه نسخه کې : "که په سل دریابه غسل د ځان ورکا".

(۹) د "پ" لومړۍ نسخې نیمرته په نورو قولوکې داسرې دی : "د مسرف به ځان بلا شه خپل اسراف".

(۱۰) په د لومړۍ نسخې نیمرته په نورو قولوکې داسرې دی : "نه څه عدل شته به ځاکې نه انصاف"

داخلو مذهب واره سره یو دي (۱) — مااوتا پکې پیدا کړ اختلاف

دهمه واره وملکونو خښتن یو دی (۲) — که دوزخ دی که جنت دی که اعراف

شهیدان نه دي هغه خون فروشان دي (۳) — که (٤) خوني ته خون بها نه کا معاف

دکاذب ژبه په خوله کې وچه سنه ده — لکه توره دلرگیو په غلاف (۵)

ددېوال په سر به ځوځغلي ترکومه — دروغژن چې په دروغه کاندي لاف (۶)

آب وتاب دناکره هر وي ځومره — خونظر پرې شوی نه دی دصراف (۷)

ددنیا په دولت ناز مکړه رحمانه — دا یوموی دی په نظر دموی شگاف (۸)

۱۰۷ — مدحه او هجوه دحبیب او د رقیب کړم (۹) — ۱۲۷۵

رح نه زده بله هجوه بله لاف

---

چې پای بند شو دلیلې په اشتیاق — مجنون واچاوه (۱۰) ونورو ته طلاق

چې دمیو دمطرب په خوند خبر شو (۱۱) — فراموش کړه صوفي نفل داشراق

جام دمیو دی یا رقص دخوبانو — په هرځای چې وبله جمع شي عشاق (۱۲)

په نسیاو (۱۳) نظر نه کاندي بی نقده — که خوک حوري ورته ستایي که براق

چې حاصله ددلبر یگانگي شي (۱٤) — ددولې خبرې نه کاندي مشتاق

---

(۱) په چاپي دیوانونو او د "خ" په دوهمه نسخه کې دا مسری داسې ده: " داخلو رواړه مذهبه سره یو دي ".

(۲) دا مسری د "خ" په لومړۍ نسخه کې داسې ده: " دا همه واړه ملکونه دخښتن دی. او په دریو واړو چاپي دیوانونو کې د "یو دی" پر ځای "خدای دی" راغلي دي.

(۳) د "پ" لومړۍ نسخه: " شهیدان نه دی هغه خود فروشان دی ". د "خ" لومړۍ نسخه: " شهیدان نه دي هغه خود خون فروشان دي " اود "خ" دوهمه نسخه: " شهیدان نه دی هغه واړه خون فروشان دی ".

(٤) د "پ" له لومړۍ نسخې نه پرته په نورو ټولو کې د "که" پر ځای "چې" راغلی دی.

(۵) په چاپي دیوانونو کې داسې ده: " لکه توره دلرگي وي په علاف ". (۶) په "پ" چاپ کې دا مسری داسې ده: " دروغژن چې په دروغو وهلی لاف ". د "ق، ک" چاپ او د "خ" په لومړۍ نسخه کې دا مسری داسې ده: " دروغژن به په دروغو کاندی لاف " (۷) دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته دی. بیت لومړی مسری د "پ" په لومړۍ نسخه کې داسې ده: " آب وتاب دناسره هر وي هومره "، د "پ پ" چاپ کې داسې راغلی ده: " آب وتاب دناکرده هر وي هومره ". اود "خ" په لومړۍ نسخه کې داسې ده " آب وتاب دناسره هر دخوی هومره ".

( دپایلیک پاتنه په ۸۱ مخ کې )

حرکت لہ ځایہ نہ کا لکہ شمع — کړي اور د عشق (۱) بلېږي پہ تاراق (۲)

هسې خوښ وي ځېنې یار پہ درد غم کې — تہ بہ وایې چې بادشاه دی د آفاق

هسې محوه وي د عشق پہ میوناب کې (۳) — چې خبر نہ وي پہ وصل (۴) پہ فراق

لا ظاهر پہ صورت وي پہ معنی نہ وي — لکہ کښلی د "لا" لفظ وي پہ اوراق (۵)

ځوږې تن پہ کاروار (۶) زار کړي فنا نہ شي — نہ جارباسي ځنې آسونہ د عراق

د عراق آسونہ کار پہ اشارت کا — پہ کوتل پہ وهل کار کوي اولاق (۷)

چې خدای پوه کړ (۸) د بنو پہ ځنبل پوه شو — چې پوه نہ شو نہ پوهېږي پہ شلاق

کہ یې سر ځي کہ یې مال ځي خدای دې نہ کا (۹) — د طالب او د مطلوب ترمیان نفاق

د قسمت پاسي (۱۰) پہ لاس نیولی ناست یم — نہ پوهېږم چې بہ جفت شي کہ بہ طاق

۱۰۸ — ۱۲۹۰

تہ چې پند وایې ناصحہ و رحمان تہ

کاشکې نور کړې هغہ کښلی د میثاق (۱۱)

---

د (۸۰) مخ د پایلیک پاتہ:

(۸) د دې بیت لومړی مسری د "خ" پہ لومړی نسخہ کې داسې دہ: "پہ دنیا او پہ دولت نازمہ کېږه رحمانہ" پہ "پ" چاپ او "ق، ک" چاپ او د "ب" پہ دوهمہ نسخہ کې "موشګاف" راغلی دی.

(۹) دا بیت د "خ" پہ دوهمہ نسخہ کې نشتہ خو دا بیت پہ "پ" چاپ او "ق، ک" چاپ کې داسې دی: {"مدح وهجو د حبیب و د رقیب کړم / رحمان نہ زده بلہ هجو لوز او صاف".

د "پ پ" چاپ کې دوهمہ مسری داسې ده: "د رحمان نہ زده بلہ هجوه بل اوصاف".

د "خ" پہ لومړی نسخہ کې دا بیت داسې راغلی دی: "مدح خو بہ د رقیب و د حبیب کړم رحمان نہ زده بل سخن و بل اوصاف".

(۱۰) دا مسری پہ "ق، ک" چاپ کې داسې ده: "مجنون واچوه لوز د بنځو تہ طلاق". د "ب" پہ نسخہ او د "خ" پہ لومړی نسخہ کې "واچول" راغلی دی.

(۱۱) "پ" چاپ: "چې دمه و د طرب پہ خوند خبر شہ". د "خ" لومړی نسخہ: "چې د میو د مطرب لہ خوند خبر شہ".

(۱۲) دا بیت پہ مصوره نسخہ کې نشتہ د دوهمې مسری د "وبلہ" پر ځای، پہ "ق، ک" چاپ کې "سره" او د "خ" پہ لومړی نسخہ کې "خپلہ" راغلی دی.

(۱۳) د "خ" پہ دواړو نسخو کې "نقد و" راغلی دی.

(۱٤) د "پ" لومړی نسخہ: "چې حاصلیږي د دلبرو یګانګي شي". پہ "ق، ک" چاپ او د "خ" پہ دوهمہ نسخہ کې داسې ده: "چې حاصل یې د دلبر یګانګي شي". د "خ" لومړی نسخہ کې داسې ده: "چې حاصل یګانګي شي د دلبرو" او د "پ" پہ دوهمہ نسخہ کې داسې ده: "چې حاصل یې یکایکي شي د دلبرو".

---

(۱) پہ چاپي دیوانونو کې د "عشق" پر ځای "پہ سر" راغلی دی.

(۲) پہ "ق، ک" چاپ کې "براق"، د "خ" پہ دوهمہ نسخہ کې "پہ تاراق"، او د "پ" پہ دوهمہ نسخہ کې "بلاق" دی.

(۳) د "خ" لومړی او د "پ" پہ دوهمہ نسخہ کې دا مسری داسې ده: "هسې محوه دی د عشق پہ میوناب".

(٤) د "خ" پہ لومړی نسخہ کې "وی" راغلی دی.

(۵) دا بیت پہ "پپ" چاپ، "ق، ک" چاپ او د "پ" پہ دوهمہ نسخہ کې داسې دی: "کہ ظاهر پہ صورت وی پہ معنی نہ وی کہ کښلی د "لا" لفظ وی پہ اوراق". پہ همدې ترتیب یې لومړی مسری پہ "ق، ک" چاپ او د "خ" لومړی نسخہ او مصوره نسخہ کې پہ پورتہ بڼہ راغلی ده. لومړی مسری یې د "خ" پہ دوهمہ نسخہ کې داسې ده: "دا ظاهر پہ صورت وی پہ معنی نہ وی". او پہ "ق، ک" چاپ کې یې دوهمہ مسری داسې راغلې ده: "لکہ لیک وی د "لا" لفظ پہ اوراق".

(٦) د "پ" پہ دوهمہ نسخہ کې "کاروبار" راغلی دی. (۷) دا بیت پہ مصوره نسخہ کې نہ دی راغلی، دوهمہ مسری یې پہ "پ" چاپ او "پپ" چاپ کې داسې راغلې ده: "پہ وهل - پہ کوتل کار وی د ایلاق". پہ "ق، ک" چاپ کې داسې ده: "پہ وهل پہ سل سنګل کار وی د ایلاق". د "خ" پہ لومړی نسخہ کې داسې ده: "پہ وهلو پہ - کوتلو وی د الاق". او لومړی بیت د "خ" پہ دوهمہ نسخہ کې داسې راغلی دی: "د عراق کاروند کار پہ اشارت کا پہ وهل پہ کوتل کار وی د علاق".

(۸) دا بیت د "خ" پہ لومړی نسخہ کې نشتہ پہ لومړی مسری کې یې د "پوه کړه" او پہ چاپي دیوانونو کې "پوه کړل" راغلی دی. (۹) دا مسری د "پ" پہ دوهمہ نسخہ کې داسې ده: "کہ یې سر ځي کہ یې مال دی خدای دې نہ کا". پہ چاپي دیوانونو کې د دې بیت د دوهمې مسری د "میان" پہ ځای "منځ" راغلی دی. (۱۰) پہ "پ" چاپ او "پ، پ" چاپ کې "پاسي" او "ق، ک" چاپ کې "بازیږ" راغلی دی. (۱۱) دا مسری پہ مصوره نسخہ او د "خ" پہ لومړی نسخہ کې داسې ده: "کاشکې نور کړې هغہ شوی د میثاق".

خدایه څه شوه هغه ښکلي ښکلي خلق — په ظاهر په باطن سپین سپېڅلي خلق

هیڅ څنداسي له دې خلقه سره نه شي — ژړوي مې هغه تللي تللي خلق

خبر نه یم چې وکومې خوا ته لاړ شوه — لېدل نه شي هغه مالېدلي خلق

لکه څنګ چې داوبو په مخکې دروي(۱) — هسې دروي په جهان راغلي خلق

دریغه یو ځله خو بیا په جهان راغلي — له جهانه په ارمان وتلي خلق

هزار حیف دی چې په خاورو کې لاړه شي(۲) — په چووا و په چندن لړلي خلق

۱۰۹

رحمان هسې ګوښه څوند له خلقه بیا موند
چې هرګز نه دی داخوند موندلي خلق

۱۲۹۷

ک

چې په زړه مې تور لحد شي ځای د خاک — بې مزې شي هم مې خوب هم مې خوراک

چې دخوب او دخوراک مزه شي ورکه — نور له مرګه برابر شي هغه ژواک

غلط والي چې څوک عمر ورته وایي — هغه عمر چې تېرېږي په بې څساک

تن سپېره په خاورو دکه خوله لحد کې یم — چې آخر مې داخوراک دی دا پوشاک

ځای لري کړه ځان ژوندی په ځمکه خښ کړم — چې مې پس له مرګه ځای دی یو مغاک

ګویا شوي دي هغه چې شدني دي — زړه بخواتر هلاکت یمه هلاک

زړه چې روغ وي ګرېوان کاله څیراوه شي — له ګرېوانه معلومېږي د زړه چاک

تن وځای وجامه پاک هله په کار دي(۳) — چې روښې شي دچا زړه له غیره پاک

سړی بویه چې دروڼ بېروڼ یې یو وي — نه هغه چې بېروڼ ژړوي دروڼ لاک

---

(۱) د "پ" لومړی نسخه ، د "خ" لومړی نسخه او مصوره نسخه : " لکه نغر چې داوبو په زملو دروي ". او "خ" دویمه نسخه : " لکه نغر چې داوبو په غاړه کې دروي ".

(۲) په " ق " چاپ کې " ګنده " راغلی دی.

(۳) " ق " چاپ او " ق ، ک " چاپ : " تن وځای وجامه کله په کار بېږي ". د " خ " لومړی نسخه : " تن دځای جامه هاله دچا په کار وي ".

لۀ سريه غرض واړه سر نيتوب (۱) دی | که په سر کې يې طره وي يا مسواک
د دنيا چارې همه واړه فاني دي | څوک يو دوه ورځې خوشحال وي څوک غمناک
په ساعت کې څوک خوشحال کا څوک ملال کا | دا خو يونه لرغوني دي د افلاک (۲)

چې څه کاندي واړه خدای دی د نور څوک نشته
رحمان څه دی څه يې واک دی د څه ادراک (۳)

۱۱۰ — ۱۳۱۰

ماتوي مې خوله په سولک | خراشي مې زړه په نولک (۴)
که ناري وهم که ژاړم | پروا نه لري (۵) يو چولک
راشئ ګورئ منصفانو | د دلبرو دا سلوک
لکه ګل په لاس د طفل | زما زړه کا شوک په شوک (۶)
د چشمانو په غمزه سېب | ژوبل ژوبل يم توک توک
په توسن د فلک سور شي | د ستارکبر دي په سر هولک
هيڅ اثر ورباندې نه کا | د دردمنو درد و دوک (۷)

ای رحمانه چې عاشق شي
ځان دې ژاړي کوک په کوک

۱۱۱ — ۱۳۱۸

زړه مې تراشي د بڼو په تېره نولک (۸) | ماته وي مې دو دېرش غابس واړه په سولک
په غمزو د تورو سترګو يم وژلی (۹) | ژوبل ژوبل پروکي پرې يم توک توک (۱۰)
که ناري وهم که خاورې په سر لوم (۱۱) | ناروا شه که پروا لري يو چولک (۱۲)
لکه ګل چې څوک د طفل په لاس ورکا | هسې رنګ دې زما زړه کړ شوک په شوک (۱۳)

---

(۱) په "پ" چاپ او قلمي نسخو کې "سري هو ښه" راغلی دی.
(۲) دا بيت د "خ" په لومړۍ نسخه کې نشته. په چاپي ديوانونو کې داسې دی: "په ساعت کې څوک خوشال کا څوک غمناک کا دا خو يونه همېشه دي د افلاک".
(۳) د "خ" دوهمه نسخه: "چې څه کاندي واړه خدای کاندي رحمانه سري څه دی څه يې واک څه يې ادراک".
(۴) دا غزل د "خ" په لومړۍ نسخه او مصوره نسخه کې نشته.
(۵) د "خ" په دوهمه نسخه کې "لرم" راغلی دی.
(۶) "ق" چاپ او "ق، ک" چاپ: "زما زړه يې کړو شوک په شوک".
(۷) د "خ" په دوهمه نسخه کې "د ذرو دوک" راغلی دی.
(۸) دا غزل د "پ" په دوهمه نسخه کې نشته، او په "ق، ک" چاپ کې د "نولک" پر ځای "څوک" راغلی دی.
(۹) د "پ" لومړۍ نسخه کې: "په غمزو د تورو سترګو مې وژلی". او د "خ" په لومړۍ نسخه کې په دې شکل ده: "په غمزو د تورو زلفو مې وژلی".
(۱۰) دا مسره په "پ" چاپ کې داسې ده: "ژوبل ژوبل وکې پرې يم توک توک".
(۱۱) د "ب، پ" چاپ او "ق، ک" چاپ کې "نولم" راغلی دی.
(۱۲) په "پ" نسخو او د "خ" په لومړۍ او مصوره نسخه کې "څوک" راغلی دی.
(۱۳) د "پ" لومړۍ نسخه: "هسې رنګه زما زړه کا شوک په شوک". "ق، ک" چاپ: "هسې رنګه دې زما زړه کړو شوک شوک". د "ق" چاپ: "هسې رنګه دې کړ زړه زما شوک شوک". او د "خ" دوهمه نسخه: "هسې رنګ يې زما زړه کړ شوک په شوک".

که له ډېره درد و غمه مې زړه وچوي — ورته هېڅ دي زما درد و زما دواك (١)

درست جهان یې په غم ډوب کړ سرتر پایه (٢) — که ګدای دی د ذې دهر که ماڼوك

د آسمان په نیلي سور لکه آفتاب شي — د زریفتو دستار کېږدي په سرهوك

که انصاف لرئ په زړه کې منصفانو (٣) — راشئ ګورئ د دلبرو د اسلوك

زه به و لې د خپل یار ثنا نه وایم — چې سحر سحر ناري وهي تل غوك (٤)

چې عاشق د دلبرانو په جمال شي (٥)
ای رحمانه خان دې ژاړي کوك په کوك

١١٢ — ١٣٢٨

چې علاج کولی نه شي د قسمت څوك — تر و به څه والي وچا ته نصیحت څوك (٦)

هغه چارې چې موقوفې په تقدیر دي (٧) — کړی یې نه شي په محنت په مشقت څوك

که نظر کا وقضا وهم رضا ته (٨) — په هېچا باندې دې نه کا ملامت څوك (٩)

د مطلوب جفا وفا واړه هنر دي — چې پوهېږي د حکماؤ د حکمت څوك (١٠)

غم په ځان د چا پېرزو دی باري څه کا (١١) — چې د خدای په کړو کې نه لري قدرت څوك (١٢)

د ابلیس و ریاضت ته دې نظر کا — څه غرور کا په طاعت په ریاضت څوك (١٣)

علت لا رشي عادت نه ځي له سري نه — خدای دې نه کاندي په بده چار عادت څوك (١٤)

زه رحمان د بېلتانه سېلاب یم وړی
که لاس راکاندي د خدای په محبت څوك

١١٣ — ١٣٢٩

---

(١) دا بیت د "غ" په لومړي نسخه کې نشته. د "غ" په دوهمه نسخه کې یې لومړی مسری داسې ده: "که له ډېره درد و غمه مې زړه چوي".
په مصوره نسخه کې داسې ده: "که له ډېره غمه مې زړه چوي".

(٢) دا مسری د "غ" په لومړي نسخه کې داسې ده: "درست جهان یې سره ډوب کړ سرتر پایه". او د "غ" په دوهمه نسخه کې داسې ده:
"درست جهان په غم کې ډوب دی سرتر پایه".

(٣) دا مسری په "ق" چاپ کې داسې ده: "که انصاف لرئ په زړه د منصفانو".

(٤) دا بیت د "ب" په لومړي نسخه او د "غ" په لومړي نسخه او مصوره نسخه کې نشته. په "ق، ک" چاپ کې یې دوهمه مسری داسې ده:
"چې سحر سحر ناري وکړي هم غوك".

(٥) دا بیت په چاپي دیوانونو کې داسې راغلی دی: "چې مین د دلبرانو په جمال شوې ای رحمانه ځان وژاړه کوك په کوك". او هم یې وروستۍ مسری د "غ" په لومړي نسخه کې داسې ده: "ای رحمانه ځان وژاړه کوك په کوك".

(٦) دا غزل د "ب" په دوهمه نسخه کې نشته او دوهمه مسری یې په "ق، ک" چاپ کې داسې راغلې ده: "تر و به څه والي و ما ته نصیحت څوك".

(٧) دا مسری په "ق، ک" چاپ او "ق" چاپ کې داسې ده: "هغه چاره چې موقوفه په تقدیر دي".

(٨) د "ب" لومړي نسخه: "که نظر کا د قضا و رضا ته". "ق، ک" چاپ او "ق" چاپ: "که نظر کا هم قضا او هم رضا ته".

(٩) مصوره نسخه او د "غ" دواړه نسخې، "ق، ک" او "ق" چاپ: "په هېچا باندې به نه کا ملامت څوك".

(١٠) په ټولو چاپي دیوانونو، مصوره نسخه او د "غ" په دوهمه نسخه کې دا مسری داسې ده: "څه پوهېږي د حکماؤ په حکمت څوك".

(١١) دا مسری په چاپي دیوانونو کې داسې ده: "غم د چا په ځان پېرزو دی باري څه کړ". په مصوره نسخه او د "غ" په لومړي نسخه کې داسې ده: "غم د چا په ځان پېرزو دی ولې څه کړ" او د "غ" په دوهمه نسخه کې داسې ده: "غم پر ځان د چا پېرزو نه دی باري څه کړ".

(١٢) د "ب" چاپ او "ق، ک" چاپ کې د "قدرت" پر ځای "طاقت" راغلی دی.

(پاته په (٨٥) مخ کې)

په ښايست زما د يار نه دي خبر څوک  کـه خبر شي پرې به نه ړندي دغه در څوک [1]

د دنيا چارې همـه واړه فـاني دي  نر ناحقه خاورې لوني په خپل سر څوک [2]

چې قبول شي په درګاه د ښـه رويانو [3]  دهغـه [4] په خبر به نه وي بختور څوک

کـه زما د يار په مخ د چا نظـر شي  وبه نه کا وبل مخ وته نظر څوک [5]

کـه هر څو دلبران ډېر دي [6] په جهان کې  بل به نه وي زما يار غوندې دلبر څوک

ذ ديدن طاقت يې هيچا څخه نشتـه  و آفتاب ته کتی نه شي برابر څوک

عاشقي يوه پايه ده څـا يـبـه  دغه کار کولی نه شي هم هر هر څوک [7]

له هجرانه بله سخته بلا نشته  خدای دې نه کاندي زخمي په دا نښتر څوک [8]

مخ به بل خواته هـرګز ونه جاړ باسي  چې شي ستا په خمار وستر ګو ابتر څوک

وبه نه رسېږي تا تـه په آسـانـه  ستا په غم چې خاورې نه کاندي په سر څوک

ارمانونه به کوي زار زار به ژاړي [9]  چې حاصله ګوښته نه کا په ششدر څوک

هو مره نوم د عاشقي وربا نديې مړ ده  چې د يار په غم کې نه شي قلندر څوک

هغه نه کاندي نظر وسيم وزر تـه  چې په لور د خپل آشنا کاندي نظر څوک

په ګلونو د ګلزار به ميل نه کاندي [10]  چې خوبونه کا د يار په خاکستر څوک

---

د (۸۴) مخ پاتـه :

(۱۳) په "ب" چاپ، "پ پ" چاپ، "ق" چاپ، مصوره نسخه او د "خ" لومړي نسخه کې دا مسرۍ داسې ده : "چې غرور کا په طاعت په رياضت څوک"
په "ق ،ک" چاپ کې د "چې" پرځای "که" راغلی دی او د "خ" په دوهمه نسخه کې د "رياضت" پرځای "عبادت" راغلی دی.

(۱٤) د "پ" لومړي نسخه : "علت لاړ شي عادت نه ځي له سره يه  خدای دې نه کا په بد ه چاره عادت څوک".
"ق" چاپ : "خدای دې نه کاندي په بدچاره عادت څوک".
په مصوره نسخه کې دوهمه مسرۍ داسې ده : "خدای دې نه کاندي په بده چار عادت څوک".
د "خ" په دوهمه نسخه کې لومړی بيت داسې دی : "علت لاړ شي له سره نه عادت نه ځي ـ خدای دې نه کاندي په بد و چار عادت څوک".

---

(۱) دا غزل د "پ" په دوهمه نسخه کې نشته.

(۲) د "پ" لومړي نسخه : "نر ناحق خاورې شه لوني په سر څوک".
په "ق ،ک" چاپ کې داسې ده : "نه ناحقه خاورې لوني په خپل سر څوک".
په "ق" چاپ کې : "د دنيا چارې فاني واړه فاني دي  نر ناحقه خاورې لوني په خپل سر څوک".
مصوره نسخه : "پر ناحقه خاورې لوني په خپل سر څوک"
د "خ" دوهمه نسخه : "تر و ناحقه خاورې لوني په سر څوک".

(۳) دا مسرۍ د "خ" په لومړي نسخه کې داسې ده : "چې قبول شي په درګاه د خوبرويانو".

(٤) د "خ" په دواړو نسخو او مصوره نسخه کې د "هغه" پرځای "هغوی" راغلی دی.

(٥) دا مسرۍ په چاپي ديوانونو کې داسې ده : "وبه نه کاندي بل خوا وته نظر څوک".

(٦) د "خ" په لومړي نسخه کې د "دي" پرځای "شي" راغلی دی.

(۷) په قلمي نسخو کې د "هر هر څوک" پرځای "هر څوک هر څوک" راغلی دی.

(۸) دا بيت او په دې بيت پسې شپږ نور بيتونه په موجوده قلمي نسخو کې نشته.

(۹) دا مسرۍ په "ق" چاپ کې داسې ده : "ارمانونه به کوي په زار زار ژاړي".

(۱۰) دا بيت په "ق ،ک" چاپ کې داسې دی : "په ګلونو د ګلزار لې مينه نه وي".

بې رهبره يون دعشق په لاري ګران دي — دلته بويه چي پيدا کاندي رهبر څوک[1]

چي بېلتون په سترګو ويني آشنايي کا[2] — د رقيبان په خبر به نه وي بې هنر څوک

(١١٤) (١٣٥٢)

چي مشغول نه وي د ترکو په جمال څوک — نور به څه کا په جهان کې اشتغال څوک[3]

د بل خط په عبارت به څه نظر کا — چي نظر کاندي دستا په خط وخال څوک[4]

نور خوبان دستا تر مخ پوري دي هسې[5] — لکه بل کا د آفتاب په مخ مثال څوک[6]

چي عنقا شو اهل دل په دا دنيا کې — تر و به څه وايي وچا و ته احوال څوک[7]

که عاشق په عشق کې ژاړي هېڅ ګرم نه دی — په دا هسې دره دکې نه لري مجال څوک[8]

چي يې قيل وقال له ياره سره و شي[9] — له نور چا سره به څه[10] کا قيل وقال څوک

چي په اصل کې خداى نه دي پيدا کړي — تر و به څه غواړي دستا د مخ مثال څوک[11]

سرخرويي د هر سړي په ځيګرخون ده — نه هغه چي په سر اچوي سور شال څوک[12]

مخ روښې دى د عاشق[13] په خپلو اوښو — په دانه شي چي يې مښي په رومال څوک

---

(١) دا بيت د "خ" په لومړي نسخه کې داسې دى : "بې رهباره يون د عشق په لار کې ګران دى دلته بويه چي پيدا کاندي رهبر څوک".
لومړى مسرى يې د "پ" په لومړي نسخه کې داسې ده : "بې رهبره يون په لار دهرچا ګران دى". خو مصوره نسخه کې د (ى) پرځاى "کښې" راغلى دى
او هم دا مسرى د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې ده : "بې رهباره رسيده وياړ ته ګران دى".

(٢) دا بيت د "خ" په لومړي نسخه کې داسې دى : "چي بېلتون ويني په سترګو اشنايي کا درحمان په خبر بل نه وي رهبر څوک".
لومړى مسرى يې د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې ده : "چي رقيب په سترګو ويني آشنايي کا".

(٣) دا غزل د "پ" په دوهمه نسخه کې نشته.

(٤) دا بيت په "پ" چاپ، "پ، پ" چاپ او "ق، ک" چاپ کې داسې راغلى دى : "د بل خط په عبارت به نظر نه کا چي نظر وکاندي ستا په خط وخال څوک".
او لومړى مسرى يې په "ق" چاپ کې داسې ده : "بيا بل خط وعبارت ته نظر نه کا" او دا مسرى د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې ده :
"د بل خط په عبارت به نظر نه کا".

(٥) دا مسرى په چاپي ديوانونو کې داسې ده : "نور خوبان دي ستا تر مخه پوري هسې".
د "خ" لومړى نسخه : "نور خوبان دستا تر مخه پوري هېڅ دي".

(٦) دا مسرى په "ق، ک" چاپ کې داسې ده : "لکه بل کا د آفتاب مخ کې مثال څوک".

(٧) دا مسرى په "ق، ک" چاپ کې داسې ده : "نور به څه وايي وچا ته د زړه حال څوک".
په "ق" چاپ کې داسې ده : "تر و به څه وايي وچا ته د زړه حال څوک". ګر په لومړي مسرى کې د "چي" پرځاى "که" راغلى دى.
او د "خ" په دوهمه نسخه کې په لومړي مسرى کې د "عنقا شو" پرځاى "عنقا شي" راغلى دى.

(٨) ددې بيت لومړى مسرى په "ق، ک" چاپ کې داسې ده : "چي په اصل کې ژاړي هېڅ ګرم نه دى".
لومړى مسرى يې د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې راغلې ده : "که عاشق په عاشقۍ کې ژړا کاندي هېڅ ګرم نه دى".
په مصوره نسخه کې يې، په دوهم مسرى کې د "په دا هسې" پرځاى "بيا دا هسې" راغلى دى.

(٩) په چاپي ديوانونو کې "نه دى" راغلى دى.

(١٠) په مصوره نسخه کې د "څه" پرځاى "نه" راغلى دى.

(١١) دا بيت په "ق، ک" چاپ او مصوره نسخه کې نشته.

(١٢) دا مسرى د "خ" په لومړي نسخه کې داسې ده : "پيدا نه شي چي په سر کاندي سور شال څوک".
د "پ" لومړى نسخه " نه هغه چي په سر کاندي سور شال څوک".
په "پ" چاپ او د "خ" په دوهمه نسخه کې د "کاندي" پرځاى "واچوي" راغلى دى.

(١٣) د "پ" په لومړي نسخه او د "خ" په دوهمه نسخه کې د "عاشق" پرځاى "د هرچا" راغلى دى.

د دنیا چارې فاني دي مرد هغه دی(۱) — چې نظر کا په حرام او په حلال څوک
هر چې کړ کا ذو ربشو غنم غواړي — له خاطره دې بېرون کا دغه(۲) خیال څوک
سړی بویه چې په نېک عمل نازېږي(۳) — نه چې ناز کا د دنیا په ملک و مال څوک

که بې شعر د رحمان مومند ترغوږ شي(۴)
غوږ به نه باسي په شعر د خوشحال څوک

۱۱۵ — ۱۳۶۵

که په بخت کم بختان نه وي خسته دل څوک — په حضور به له تا ولې بېلېدل څوک(۵)
و دیدن وته دې هر چا رضا کېږي — ولې حکم بې له تا نه لري بل څوک
که بې لاس د خدای په چارو رسېدلی — بې مقصوده به یو د مرنه سمېدل څوک
دا یو سر دی ما د استا شکرانه کړی — بس ناحق مې وېروي په سر و دل څوک
دا همه شومیت زما دی چې را رسي — ګنه ته او د چا زړونه بدول څوک
که په مینه د لیلی مبتلا نه وای — خوار مجنون په دې بیدیا غرونه ځنګل څوک

مین هره بلا کاندې که باور کړې
ګنه زه عبدالرحمن هومره ویل څوک

۱۱۶ — ۱۳۷۲

---

غره وا غونډه ملا وتړه په جنګ — دغه پسه(۶) معرکه کوه د ننګ
وبې ننګ وته د ننګ خبرې مه کړه(۷) — یا ځان وګڼه په خپلو وینو رنګ

---

(۱) دا مسره د "خ" په لومړي نسخه کې داسې ده: "د دنیا چارې همه واړه فاني دي".
(۲) په مصوره نسخه کې د "دغه" پر ځای "هغه" راغلی دی.
(۳) په "ق.ک" چاپ او "ق" چاپ کې د "نازېږي" پر ځای "یادېږي" راغلی دی.
(٤) دا مسره د "خ" په لومړي نسخه کې داسې ده: "که بې شعر د ممند رحمان ترغوږ شي". په "ق.ک" چاپ کې د "تر" پر ځای "په" راغلی دی.
(۵) دا غزل د "خ" له دویمې قلمي نسخې څخه نقل شو.
(۶) د "خ" په لومړي نسخه کې "معرکې" راغلی ده او د "خ" په دوهمه نسخه کې "مرکې" راغلی دی.
(۷) دا مسره په مصوره نسخه کې داسې ده: "وبې ننګ وته د ننګ خبره مه کړه".

ننگیالي چي يوځل مخ کا په یولوري[۱] نور هیڅ نه ویني کوهي وي که ګړنګ[۲]

هیڅ له ځانه له جهانه خبر نه وي چي چراغ په نظر کښیوځي د پتنګ[۳]

د بلبلو وچمن وته پرواز وي داور پښتي وآتش وته غورزنګ[۴]

که جهان و بې هنر وته فراخ وي[۵] یو لحد دی هنرمند ولره تنګ

هغه ښهر جوهري لره زندان دی[۶] چي یکسان وي پکښي لعل ومردار سنګ

آسمان ځمکه د واړه ژامي[۷] د نهنګ دي څه[۸] به زیست کا څوك په خوله کښي د نهنګ

په ښادی لي هیڅ ښاد مه شه که دانا یې غم ښادي دي[۹] د دي هر ځنګ په ځنګ

که رحمان د هغو تللیو وصال غواړي[۱۰]
تېر به نه کا په داد ورکښي یو درنګ

۱۳۸۲ ۱۱۱

ښښي مي په سر دی ستاد مخ د میني ګل بیا مي تورلیمه دي ستا د زلفو تور سنبل[۱۱]

ته چي آینه په لاس کښي وا خلي حیرانیږي[۱۲] زه له کومه راوړم صبوري او تحمل[۱۳]

(۱) دا مسره په قلمي نسخه کي داسي ده: "ننګیالي چي یو ځل مخ په هغه لوري کا".

(۲) دا مسره د "خ" په لومړي نسخه کي داسي ده: "نور بي هیڅ نه دي که کوهي دي که ګړنګ".

(۳) دا بیت په مصوره نسخه کي نشته.

(۴) دا مسره په چاپي دیوانونو کي داسي ده: "سمندر کا مدام اور وته آهنګ". د "خ" په دوهم نسخه کي داسي ده: "داور پرستو وآتش وته هورځنګ". او دا بیت په مصوره نسخه کي نشته، په "پ، ب" چاپ کي د "وته" پرځای "ورته" راغلی دی.

(۵) دا بیت په مصوره نسخه کي نشته. د "پ" په لومړي نسخه کي: "که جهان و بي هنرو ته فراخ دی". په "ق، ک" چاپ کي د "که" پرځای "دا" راغلی دی او دا مسره د "خ" په دوهم نسخه کي داسي ده: که جهان مي بي هنرو ته فراخ دی".

(۶) په چاپي دیوانونو او د "خ" لومړي نسخه کي "دي" راغلی دی. (۷) په "ق" چاپ کي "حامني" او د "خ" په لومړي نسخه کي "چامي" راغلی دی.

(۸) د "خ" په دوهم نسخه کي د "څه" پرځای "څو" راغلی ده. (۹) د "خ" په لومړي او دوهم نسخه کي "ده" راغلی ده.

(۱۰) دا مسره په "ق، ک" چاپ کي داسي ده: "که رحمان د هغي ښکلو وصال غواړي". په "ق" چاپ کي هم د "هغو" پرځای "هغي" راغلی دی.

(۱۱) دا غزل د "پ" په دوهم نسخه کي نشته، د "پ" په لومړي نسخه کي د "لیمه دي" پرځای "لیمه مي" او په مصوره نسخه کي "لیمه شو" راغلی دی.

(۱۲) دا مسره په مصوره نسخه کي داسي ده: "ته چي آئینه واخلي ورخ ته حیرانیږي". او د "خ" په لومړي نسخه کي داسي ده: "ته چي آئیني واخلي لهان ګوري حیرانیږي".

(۱۳) دا بیت په "ق، ک" چاپ کي داسي دی: "ته چي آئینه په لاس کي واخلي حیرانیږم زه له کومه راپیدا کړم صبوري او تحمل"، او دوهم مسره یې په "ق" چاپ کي داسي ده: "زه له کومه ځای په راوړم صبوري او تحمل".

**۱۱۸** — **۱۳۸۸**

گرځې په چمن کې منګل دکه په ګلونو[1] — خدای زده چې ګلونه وړې یا زړونه په منګل

هم مې مشک لېدلی هم عنبر دی په جهان کې — شاباش شاباش ستا د زلفو په کاکل[2]

نه به ستا د مخ په شان ګلشن وي چا لېدلی — نه به وي زما په شان اهونه د بلبل[3]

هسې تغافل کا ستا په جور و په جفا کې
خلق[4] حیران یې د رحمان په تغافل

**۱۱۹** — **۱۳۹۵**

هیڅ مې نه کړه په دا عمر کې حاصل — هسې پاتې شوم مردود و نا قابل[5]

مالا بوی هم د وصال مونده لی نه دی[6] — تش په توره مې[7] خدای نوم کړ د واصل

هسې ډوب یم د ګناه په ګرداب و نو[8] — چې په سترګو مې و نه لېده ساحل

له وطن مې په هر زمان[9] و باسي — رقیبان یې راپسې کړل محاصل[10]

که بلا ده که جفا ده که وفا ده — دا همه واړه په ما کړه خدای نازل[11]

د دنیا په پلیتئ مې ځان پلیت کړ[12] — حیف دی دا چې نه عالم شوم نه عامل[13]

توره ډیره مې شوه سپینه زه حیران یم
چې رحمان لا نه بالغ شوم نه عاقل[14]

---

(۱) دا مسرۍ په "پ" چاپ، "پ پ" چاپ او "ق، ک" چاپ کې داسې ده: "ګرځې په چمن کې منګل دکه وړې دګلو".
په "ق" چاپ کې داسې ده: "ګرځې په چمن کې منګل دکې وړې دګلو".
د "خ" په لومړي نسخه کې داسې ده: "ګرځې په چمن کې منګل دکه د ګلونو".
په مصوره نسخه کې د "دګلونو" پر ځای "له ګلونو" راغلی دی او د "خ" په دوهمه نسخه کې د "منګل" پر ځای "لمن" راغلی ده.

(۲) دا بیت په "پ" نسخه کې داسې دی: "هم مې مشک لېدلی هم عنبر په جهان کې — شاباش شاباش ستا په زلفو په کاکل".
په "ق، ک" چاپ کې "په دا زلفو په کاکل" راغلی دی او لومړی مسرۍ یې په "ق" چاپ کې داسې ده:
"هم مشک دې لیدلی شی هم عنبر دی په جهان کې".

(۳) دا بیت په "ق" چاپ کې داسې دی: "نه به ستا د مخ په شېر بل ګلشن وي چا لېدلی — نه به وي ځما په شېر هم آهونه د بلبل".
په "ق، ک" چاپ کې دوهمه مسرۍ داسې ده: "نه ځما په شېر به وي آهونه د بلبل".
په "پ پ" چاپ کې د "آهونه" پر ځای "لاهونه" راغلی دی.

(٤) په "پ" نسخه، "ق، ک" چاپ، د "خ" دوهمه نسخه او دریمه نسخه کې "چېچې" ترمخه ده.

(۵) دا غزل د "خ" په لومړي نسخه او د "پ" په دوهمه نسخه کې نشته.

(٦) دا مسرۍ په "ق، ک" چاپ کې داسې ده: "مالا بوی ستا د وصال مونده لی نه دی". په "ق" چاپ کې داسې ده: "مالا بوی د وصال مونده لی نه وه".

(۷) په مصوره نسخه کې د "مې" پر ځای "یې" راغلی ده.

(۸) دا مسرۍ په ټولو چاپي دیوانونو او مصوره نسخه کې داسې ده: "هسې ډوب یم د ګناه په دریابونو".
او د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې ده: "هسې ډوب د ګناهونو په ګرداب یم".

(۹) په "ق، ک" او "ق" چاپ کې د "زمان" پر ځای "ساعت" راغلی دی.

(۱۰) دا مسرۍ د "پ" په نسخه او د "خ" په لومړۍ، دوهمه، او دریمه نسخه کې داسې ده: "راپسې کړه حاکمانو مواصل". او په مصوره نسخه کې هم د "مواصل" پر ځای "محاصل" راغلی دی.

(۱۱) دا بیت په مصوره نسخه کې داسې دی: "که بلا ده که جفا ده که فنا دوند — دا همه کړه خدای په ما باندې نازل".
په "ق، ک" چاپ کې یې دوهمه مسرۍ داسې ده: "دا همه کړه خدای په ما باندې نازل".

(۱۲) د "پ" لومړي نسخه کې دا مسرۍ داسې ده: "د دنیا په پلیتیو ځان مې پلیت کړ".

(۱۳) په چاپي دیوانونو کې د "عامل" پر ځای "جاهل" راغلی دی.

(۱٤) د "خ" په دوهمه نسخه کې دا مسرۍ داسې ده: "چې نه رحمان لا نه بالغ شوم نه عاقل".

مه غوږ باسه د نااهلو(1) قیل وقال — په ځان رنه دی قیل وقال د بد سګال

یا به فخر په خپل اهل وپه نسب کا — یا به فخر کا په آل او په عیال(2)

یا به ذکر د لذت ود زینت کا — یا به فکر کا د مال ود منال(3)

یا به هسې پوچ ګویي کاندي آغاز — چې مضمون یې نه مردار وي نه حلال

د دانا او د نادان صحبت دی هسې — لکه ګډ شي وبله لعل وکوټی لال

لکه لعل وکوټی لال چې وبله(4) ګډ شي — یا صحبت(5) شي د عیسی او د دجال

هغه(6) جمع چې تېرېږي یې هم جنسه — تر و به څه وي د هغه عمر احوال

د دنیا چارې(7) فاني دي مرد هغه دی — چې خبر شي په ثواب او په وبال(8)

اباسیند(9) لا څه مجال لري په تله کې — د دنیا د چارو هېڅ نه وي(10) مجال

د دنیا چارې په مثل خواب(11) وخیال دي — څوک به څه کا اعتماد په خواب خیال

لکه ملک ومال په خوب کې ورڅرګند شي — خو چې ویښ شي نه یې ملک وي نه یې مال(12)

لکه ځګ چې داوبو په سر لیده شي — که یې واخلي هېڅ ورنه شي په چنګال(13)

لکه دود چې غرونه غرونه څرګندېږي — تار په تار شي په یوه (14) نري شمال

لکه یخ چې د سرو په زور شي جمع(15) — هېڅ یې نه وي د آفتاب په مخ مجال

په یوه ساعت باران بیا شین آسمان شي — لکه ابر د پسرلي د پشه کال(16)

په یوه ساعت یې ساز بیا یې ویران(17) کا — خاورې ختې(18) دي په لاس کې د کلال

---

(1) دا غزل د "پ" په دوهمه نسخه کې نشته، په مصوره نسخه، "پ پ" چاپ، او "ق" چاپ کې " نااهل " راغلی دی.

(2) دا بیت په مصوره نسخه اود "خ" په لومړۍ نسخه کې نشته، دوهم مسری یې په چاپي دیوانونو کې داسې ده: " یا به فکر کا د مال ود منال ".

(3) دا بیت په چاپي دیوانونو کې نشته، د "پ" په لومړۍ اودوهمه نسخه کې د " لذت " پرځای "ولایت" او مصوره نسخه کې " دولت " راغلی دی.

(4) د "خ" لومړۍ نسخه کې "چې" نه دی راغلی او " ق " چاپ کې د " وبله " پرځای "سره " راغلی دی.

(5) په قلمي نسخو کې " قریب " راغلی دی.

(6) په "ق" چاپ کې د "هغه" پرځای " هسې " راغلی دی.

(7) د "خ" په لومړۍ نسخه کې " د دنیا چارې همه فاني دي مرد هغه دی " راغلی دی.

(8) په مصوره نسخه اود "خ" لومړۍ نسخه کې " چې خبر شي په حرام وپه حلال " راغلی دی.

(9) په چاپي نسخو اود "خ" لومړۍ نسخه کې " آب دسیند " راغلی دی. (10) د "خ" په دواړو نسخو، مصوره نسخه او " ق، ک " چاپ کې " نشته " راغلی دی.

(11) د "خ" لومړۍ نسخه کې " خوب " راغلی دی. (12) دا مسری په " ق، ک " چاپ کې داسې ده: " که یې اخلي هېڅ ورنه شي په چنګال ".

(13) دا بیت په " ق، ک " چاپ کې نشته او په مصوره نسخه کې د " سر " پرځای " مخ " راغلی دی.

(14) په "ق" او " ق، ک " چاپ کې " نري باد " راغلی دی.

(15) "ق، ک" چاپ : " لکه یخ چې دساړه په زور دی جمع ". "ق" چاپ " : لکه یخ چې د ساړه په ناوړ شي جمع ". د " خ " لومړۍ نسخه : " لکه یخ چې د سړکه په زور شي جمع ". اود "خ" دوهمه نسخه کې داسې ده: " لکه یخ چې د سرو اوبو شي جمع ".

(16) دا بیت په چاپي دیوانونو کې نشته، لومړۍ مسری یې د "خ" لومړۍ نسخه کې داسې ده: " په یوه ساعت باران بیایي شین دی ". اودوهم مسری یې د " پ " په نسخو کې داسې ده : " لکه ابر د پسرلي د پشه کال ".

(17) د "پ" په نسخو اود "خ" په لومړۍ نسخه کې " ودان " راغلی دی.

(18) په " ق، ک "، " ق " چاپ، اود "خ" لومړۍ نسخه کې " خښتې " راغلی دی.

د مجاز په معشوقو(۱) کې وفا نشته — ماهرزرحُله وشکلی دی دافال
اعتماد یې په سا دی او په غم مه کړه — نه یې هجر په قرار دی(۲) نه وصال
ګاهې تورکوډی په مخ باندې راکیښ شي — ګاهې راکیښ شي په مخ باندې رویال(۳)
لکه مالګه چې خوله کېږدي په اوبو کې — زه هم هسې سرزده یم په مثال(۴)
چې د مرګ وتاخت وباخت وته نظر کړم — صورت وینم د مېږي په خبر پایمال
خراب دل مې هغې غوارې بلا دا شوه — چې کهې را معلومېږي په هر کال(۵)

١٢٠ — ١٤١٨

که وصال مې د یار بیا موند هاله سیال یم(۶)
ګنه نه یم زه رحمان دهېچا سیال(۷)

بېلتانه دې هسې خوار کړ زما دل — چې له ځانه یې وبېزار کړ زما دل
لاس وپښې د خلقو نېسي دعا غوارې — مینې هسې منت بار کړ زما دل
عاشقۍ هومره داغونه دي پرې ایښي — چې تمام یې لاله زار کړ زما دل
بې سببه چا آزار موندلی نه دی(۸) — تا په څه سبب آزار کړ زما دل
چې د زلفو په کمند سره دې راکیښ — په بلا دې ګرفتار کړ زما دل
ستا چشمانو یکې هسې مقام ونیو — چې له غېرو یې(۹) وبېزار کړ زما دل

١٢١ — ١٤٢٥

زه رحمان خو منت بار د عاشقۍ یم
چې مین یې په دلدار کړ زما دل

چې له نازه پوښیده لرې چشمان خپل — خبر به وینې مقتولان او مظلومان خپل(۱۰)
چې کنځل راته په قهر قهر کاندې — دالاوګڼې په ما باندې احسان خپل

---

(۱) د "پ پ" چاپ او د "خ" لومړۍ نسخه کې د "معشوقو" پر ځای "معشوقه" راغلی دہ.
(۲) د "خ" لومړۍ نسخه کې "وی" راغلی دی.
(۳) دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې دی: "ګاهې تورکوډی په مخ باندې راکاږي ګاهې راکاږي په مخ باندې رویال". په "ق" چاپ کې د "راکیښ شي" پر ځای "رابنکلی شي" راغلی دی.
(٤) دا بیت په مصوره نسخه او د "خ" لومړۍ نسخه کې داسې راغلی دی: "لکه غونډ د مالګو کېږدي په اوبو کې زه هم هسې سرزده شوم په مثال". او دوهمه مسره یې د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې دہ: "زه هم هسې سره نږدود شم په مثال".
(۵) دا بیت په چاپي دیوانونو کې نه دی راغلی. لومړۍ مسره یې د "خ" په لومړۍ نسخه کې داسې دہ: "خراب زړه مې هغې غوارې بلا دا شوه". او د "خ" په دوهمه نسخه کې دا مسره داسې دہ: "خراب زړه مې زهېرېږي بلا دا شوه".
(۶) دا مسره د "پ" په نسخو کې داسې دہ: "که وصال د یار بیا موم هاله سیال یم". او د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې دہ: "که وصال زه دیلد موم هاله سیال یم".
(۷) دا مسره په مصوره نسخه او د "خ" لومړۍ نسخه کې داسې دہ: "ګنې داوس خو رحمان نه یم د چا سیال".
(۸) دا بیت په مصوره نسخه کې نشته، په نورو قلمي نسخو کې دا مسره داسې دہ: "بې سبب انار اخسته بنه نه دی".
(۹) د "پ" په نسخو او د "خ" په دوهمه نسخه کې "دی" راغلی دی.
(۱۰) دا غزل د "پ" په لومړۍ نسخه کې نشته.

ګفتګو په اشارت کاندي له نازه
کله اسم د چا اخلي په زبان خپل

په ګریبان باندې چې ټک وهي غوټې
عاشق کېږي لاسونه په ګرېوان خپل

خرېدلي به له حیرته بې شعور شي
چې د حسن رخت څرګند کا په دکان خپل

چې خپل مخ په آیینه کې ورڅرګند شي
خود پخپله سر فرو کاندي په ځان خپل

چې هر څوک یې عاشقي وته هوس کا
ګویا لوټې کا په دین او په ایمان خپل

هیڅ صرفه د چا په سر و په مال نه کا
مالیدلي دي پخپله مطلوبان(۱) خپل

مجنون ملک د عاشقۍ هاله خپل کړو(۲)
چې په اور باندې یې وسوځاوه مان خپل

دا مقام دی د هغو رنګه عالمو
چې هیڅ نه وینې په سترګو سود و زیان خپل(۳)

آفرین د عاشقانو په همت شه
چې ورته پر ترس و مال وینې جانان خپل(٤)

122

هیڅ د سترګو غره ولو خوند یې نه وي
چې رحمان په سترګو نه وینې جانان خپل

1437

تور لېمه مې د فراق په ژړا سپین شول
دوباره د زړه په وینو کې رنګین شول

ما وې زه به لا دیدن کړم د یارانو
خبر نه یم چې یاران په کوچ تعیین شول

چا پتنګ غوندې ځان واچوه وا ورته
څوک ژوندي لکه بلبل په آتشین شول

و مرده وته د مرګ خوارۍ شوې پېښې
او ژوندي په زندګۍ کې اندوهګین شول

د قضا سپاهیانو هسې لاس په تاخت کړ
چې پایمال هزار خسرو هزار شیرین شول

چې قدم یې په آسمان اېښود له نازه
هغه هسې نا زېر و زبر زمین شول

چې مدام یې په سنجاب د پاسه خوب کړ
اوس په ځمکه یې بستره بې بالین شول

123

د رحمان خاطر به ولې پرېشان نه وي
چې پرېشان ورځنې جمع همنشین شول

1445

---

۱) په "ق، ک" چاپ او د "خ" لومړي نسخه کې "مظلومان" او د "خ" په دوهمه نسخه کې "مقتولان" راغلي دي.
۲) د "خ" په لومړۍ او دوهمه نسخه کې "بیا مونده" راغلي دي.
۳) (٤) دا دوه بیتونه په چاپي دیوانونو کې نشته.

١٢٤

په لېمه کې مې مدام — ګرځي عکس د ګلفام (١)

تور د سترګو مې ګلګون شوه — په ارزو د ګل اندام (٢)

بې د سترګو له خوناوه — نه باده لرم نه جام

په طلب د دلارام کې — ما ونه لیده آرام

زنخدان يې خدای کوهي کړ — ور پرېوځم په هر ګام (٣)

که يې خال غلام د مخ دی — زه غلام يم د غلام

که په عشق کې ناکام دی — دانا کام دی زما کام

خوښ يم زه په عاشقۍ کې — که نيک نام يم که بدنام

په ياري کې مې قبول دی — ملامت د خاص و عام (٤)

د دعا په عوض غواړم — د خپل يار د خولې دشنام

ترښ که ځلو به يې زار کړم — دغه خپل دعا سلام

تريخ ګفتار يې راته خوږ دی — تر کشمش و تر بادام

هم هغه مې مسجود دی — چې يې راکاندي پيغام (٥)

مخ د يار ما ته تمام دی
رحمان ولیده تمام

١٤٥٩

---

(١) د "خ" په لومړي نسخه کې "ګل اندام" راغلی دی.

(٢) "ق" چاپ: "توري سترګې مې ګلګون شوې په ازار د ګل اندام". "ق، ک" چاپ: "توري سترګې مې ګلګون شوې په فراق د ګل اندام".

(٣) په چاپي ديوانونو کې "سبوڅېږم" راغلی دی.

(٤) دا بيت د "خ" په لومړي نسخه کې نشته

(٥) په چاپي ديوانونو کې "سلام" راغلی دی.

کہ مې ونمانځي ساقي په يوه جام | ترداهورته به نورخه وي احترام[۱]
بس دی مالره[۲] دا فیض د شرابو | چې پرې پرېږنځم دا دلق ازرق فام
مېخواري که په عالم کې بدنامي ده | ماتر پېښو دی لاندې کړې ننگ ونام
په مېزان يوسرلعل وي بل سرکاڼی | مساوي ده عاشقي په خاص وعام
عاشقان[۳] د سپين خسار د تورو زلفو | خه پروا لري د کفر د اسلام
په مجنون باندې قلم[٤] راغلی نه دی | که حلال لې په مخ ورشي که حرام[۵]

۱۲۵ — ۱٤۶۶

حلال عشق دی په رحمان باندې راغلی[۶]
په حلالو کې مدام وي احترام

ومحمود وته نظر کوه مدام[۷] | چې غلام کړو خپلې مينې د غلام
د نيکانو مدعا خو نيک عمل دی | ساعت نه گوري که صبح وي که شام
چې د زړه حضور لې نه وي په نمانځه کې | په کار نه دی مقتدي وي که امام[۸]
چې مجنون غوندې په مينه کې صادق وي | رحمان وايي په هغه باندې سلام[۹]

۱۲۶ — ۱٤۷۱

هم نغمې کاندې هم رقص کا هم خاندي
د رحمان په شعر ترکې د باکرام

د هجران له دېره غمه ولې نه مرم | له دې هسې رنگ ماتمه ولې نه مرم
چې يو يار له بله ياره جدا کېږي | د دې دور[۱۰] له ستمه ولې نه مرم
چې هر سحر زما په ژړا خاندي | له دې هسې صبحدمه ولې نه مرم[۱۱]
يار چې يار په ستر گو نه ويني خو مرگ دی | تر وزه بې خپله صنمه ولې نه مرم
چې په لږه گرمي شا کاندي وگل ته | له دې بې وفا شبنمه ولې نه مرم[۱۲]

---

(۱) دا مسرۍ د "پ" په لومړۍ نسخه کې داسې ده: " ترداپه هورته به نورخه وي احترام".
(۲) په ټولو چاپي ديوانونو کې " بند دی مالره" راغلی دی.
(۳) په مصوره نسخه کې "عاشقي" راغلی ده.
(٤) د "خ" په دوهمې قلمي نسخې کې "کلنگ،" راغلی دی.
(۵) په ټولو قلمي نسخو کې دا مسرۍ داسې ده: "که حلال په مخ کې ورشي که حرام".
(۶) دا بيت په مصوره نسخه او د "خ" په دواړو نسخو کې نشته لومړۍ مسرۍ يې په نورو قلمي نسخو کې داسې راغلې ده: "حلال عشق دی په رحمان باندې راغلی".
(۷) دا مسرۍ په قلمي نسخو کې داسې ده: "د محمود وسلطنت وته نظر کړه" او دا غزل د "خ" په لومړۍ نسخه کې نشته.
(۸) دا مسرۍ د "پ" په نسخو او د "خ" په لومړۍ نسخه کې داسې ده: "په کار نه دی که مقتدي دی که امام".
(۹) دا بيت په مصوره نسخه کې نشته او د "پ" چاپ او په لومړۍ نسخه کې داسې ده: " رحمان وايم پرهغو باندې سلام".
(۱۰) په ټولو چاپي ديوانونو کې د "دور" پر ځای "دهر" راغلی دی او دوهمې بيت لومړۍ مسرۍ په مصوره نسخه کې داسې ده: "چې يو يار له بله ياره لرې باسي".
(۱۱) دا بيت په "ق،ک" چاپ کې نشته، او لومړۍ مسرۍ يې په نورو چاپي ديوانونو کې داسې ده: "چې په هر سحر را نيا په ژړا خاندي".
(۱۲) په مصوره نسخه او د "خ" لومړۍ نسخه کې دا مسرۍ داسې ده: "له دې هسې بې وفا شبنم ولې نه مرم".

١٢٧ — ١٤٧٧

**چې د مرګ خوارۍ په خوا لري رحمانه (۱)**
**لا پخوا تر دغه دمه ولې نه مرم**

که په سر د هغه یار له لاسه سنګ خورم — خدای دې نه کا چې په بلې خواته څنګ خورم

عاشقي او نام و ننګ دي و بل له لري — خو په عمر واره غم د نام و ننګ خورم

خدای وما وته شیرین تر نیشکر کړه (۲) — که د یار له لاسه غشي د خدنګ خورم

د آشنا د بېلتانه په کار و بار (۳) کې — همېشه په تندۍ توره د فرنګ خورم

نوکري د معشوقو کوم په عشق کې — همینې نه د بهلول نه د اورنګ خورم (٤)

شین لوګی مې په سر چتر د وهمه تخت دی — ګرد غبار د خپل دولت لکه ملنګ خورم

هم په دا چې له خودۍ شمه بې خوده — د هجران په غم کې لیپې لیپې بنګ خورم

لکه څوک چې نعمتونه د دنیا خوري — زه د یار د جفا زهر په دا رنګ خورم (۵)

واره زهر شي زما تر ستوني درومي — بې له یاره که همه لاچي لونګ خورم

زه رحمان به څو ژوندی په جهان ګرځم (۶)
چې په بله لمبه څرخ لکه پتنګ خورم

١٢٨ — ١٤٨٧

سر مې په کار نه دی چې بې ستا تر سر قربان کړم — زر را ځه نشته چې بې ستا په پښو ډېران کړم (۷)

کار د عاشقۍ اول ډېر راته آسان و — اوس هسې حیران یم چې دا کار به په څه شان کړم

ډېرو خلقو لاني ستا د مینې دي وهلي — هیڅوک هسې مرشد لکه زه چې یې په ځان کړم (۸)

نه لري هم د عاشقو (۹) زخم بې تسلیمه — داغ هسې درد نه دی چې یې دفع په درمان کړم

نه کا هیڅ دښمن په دښمنانو هسې چارې — ستا په عاشقۍ کې لکه زه چې یې حیران کړم (۱۰)

ولې کافر نه وي مسلمان به شي که خدای کا — هر چا ته چې حسن و لطافت د ستا بیان کړم (۱۱)

---

(۱) په "ق، ک" چاپ کې دا مسری داسې ده: "چې د مرګ خوارۍ په سر لري رحمانه"

(۲) دا بیت د "خ" په لومړي نسخه کې نشته په چاپي دیوانونو کې دا مسری داسې ده: "خدای وما وته شیرین کړه تر شکرو".

(۳) په قلمي نسخو کې "کاروزار" راغلی دی.

(٤) دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته، په "ب" چاپ کې دا مسری داسې ده: "همېښه د بهلول نه د اورنګ خورم".

(۵) چاپي دیوانونه: "زه د یار د کوڅې خاورې په دا رنګ خورم".

(۶) په چاپي دیوانونو کې "ښایم" راغلی دی.

(۷) دا غزل په چاپي دیوانونو او د "خ" لومړۍ نسخه، مصوره نسخه او د "ب" په دوهمه نسخه کې نشته.

(۸) دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې دی: "ډېرو خلکو لاني ستا د مینې دي وهلي هېڅوک حیران مرشد لکه زه چې یې حیران کړم".

(۹) د "خ" په دوهمه نسخه کې "د عاشقانو" راغلی دی.

(۱۰) دا مسری د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې ده: "ستا په عشق کې لکه زه چې یې په ځان کړم".

(۱۱) دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې دی: "ولې کافر نه وي مسلمان شي که یې خدای که وهر چا وته چې حسن لطافت د ستا بیان کړم".

**١٢٩** — **١٤٩٤**

ورانده وي که وروستو آخر هسې معلومېږي
ستا له بېرحمۍ[1] به زه رحمان لاس په گرېوان کړم

زه داهسې دیوانه او مجنون چاکړم — له رواجه له رسومه بېرون چاکړم[2]

نه پوهېږم چې داچارې په ما څوک کا[3] — لېونی د خپل نگاه په افسون چاکړم

کومې سترگې کوم یا نه کومه غمزه ده[4] — دوې شهید غونډې په خاك و په خون چاکړم

توان توفیق خو د فتنو راځخه نه وو[5] — په فتنو د تورو سترگو مفتون چاکړم

رحمان هیڅ له خپله ځانه خبر نه یم[6]
چې داهسې رنگ زبون و محزون چاکړم

**١٣٠** — **١٤٩٩**

صبح وشام مې لاس نیولی دی دعا کړم — خواست[7] له خدایه ستا د مهر د وفا کړم

هیڅ دروغ رښتیا مې نه زده که باور کړې — ستا د پاره هم دروغ کړم هم رښتیا کړم

واړه ته یې خندول که ژړول کړې — زه بېخپله نه خندا کړم نه ژړا کړم[8]

که ته نه یې راته وایه باري څوک دی — زه داهسې رنگ سرتور پښې پېل چاکړم[9]

خوب خندا د بېلتانه په حمله نشته — خه آرام[10] به په دادشت کربلا کړم

هره ورځ چې مې تېرېږي ستا په غم کې — زه په هره ورځ پوهېږم چې غزا کړم

یو وېښته مې د صورت کوږ شوی نه دی — هسې رنگ دې پټ پنځم په زړه ادا کړم[11]

زړه که یو دی ماخو تاله درکړی[12] — مگر نور و لره نور زړونه پیدا کړم

چې مې واغوست سروپای د عاشقۍ
زه رحمان دې سروپای بې سروپا کړم

**١٣١** — **١٥٠٨**

---

(١) د "خ" په دوهمه نسخه کې "بحرامي" راغلی دی.

(٢) دا غزل په مصوره نسخه او د "پ" په دوهمه نسخه کې نشته.

(٣) په "ق، ک" چاپ او "ق" چاپ کې دا مسره داسې ده: "نه پوهېږم چې داهسې چارې څوك کا".

(٤) دا مسره د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې ده: "که مې سترگې که بانو که مې غمزې دي".

(٥) دا مسره د "پ" په نسخو او د "خ" په لومړۍ نسخه کې داسې ده: "توان توفیق د فتنو هیڅ راځخه نشته". په "ق" چاپ کې داسې ده:- "توان توفیق چې د فتنو راځخه نه وو". او د "خ" دوهمه نسخه کې داسې ده: "توان توفیق د فتنو هیڅ راځخه نه وو".

(٦) د "خ" لومړۍ نسخه: "زه رحمان له خپله ځانه خبر نه یم چې داهسې رنگ محزون و زبون چاکړم". په "ق، ک" چاپ کې د "ځانه" پر ځای "یا مه" راغلی دی. او د "پ" په لومړۍ نسخه کې دوهمه مسره داسې ده: "چې داهسې زبون و محزون چاکړم".

(٧) په "ق، ک" چاپ کې "سوال" راغلی دی.

(٨) دا بیت د "خ" په دوهمه قلمي نسخه کې نشته او لومړۍ مسره یې د "خ" په لومړۍ نسخه کې نشته.

(٩) چاپي دیوانونه: "زه داهسې لېونی او مجنون چاکړم".

(١٠) د "خ" په لومړۍ نسخه کې "خه بلا" راغلی دی.

(١١) د "خ" په لومړۍ نسخه او نیمگړې نسخه کې "تاراج کړم" راغلی دی.

(١٢) د "پ" نسخې او د "خ" دوهمه نسخه: "زړه که یو دی خو وتا دی ما ورکړی".

دستا درد به په هزار درمان ورنه کړم — دانسته به دغه سود په زيان ورنه کړم

که څوك راکاندي دنيا وعقبی دواړه — عاشقي به دې په اين و آن ورنه کړم

څو مې تيغ په پهلو نه دی بلو سپېدلی[1] — ستا پهلو به ورقيب آسان ورنه کړم

که يو ځله مې ستا زلفې په لاس کښېوځي — يو ويښته به دې په درست جهان ورنه کړم[2]

که مې چېرې لاس دستا په بوسه برشو — دا نعمت به دجنت په خوان ورنه کړم[3]

څو ونه وينم ستا سترګې که مې خدای کا — عزرائيل لره به هومره ځان ورنه کړم

معشوقې دعاشقانو دين ايمان دی — زه به چالره خپل دين ايمان ورنه کړم

ستا تر زلفو پورې نورې زلفې خه دي[4] — په خاشاك به دچمن ريحان ورنه کړم

**١٣٢** **١٥١٧**

په رحمان دستا دلبوی حرام دی
څو دخپلو وينو جام تا وان ورنه کړم

دا يو څو زنگه ژوندون دی نه پوهېږم[5] — خوب دی خيال دی که افسون دی نه پوهېږم

جام دلبوئي[6] چې ځان په وينو موم — تر و زلال که جگر خون دی نه پوهېږم

دپتنگ او دبلبل ترميان حيران يم — مخ دې اور دی که گلگون دی نه پوهېږم

په شانه سره مې تار دزلفو بېل شو — که غوڅ شوی مې ناروڼ دی نه پوهېږم[7]

عشق په هسې رنگ مقام باندې قايم کړم — که وصال دی که بېلتون دی نه پوهېږم

دخپل زړه وعلامت وته حيران يم — چې موسی دی که قارون دی نه پوهېږم

**١٣٣** **١٥٢٤**

د رحمان خبره يې زېړه ترکنگو کړه[8]
خدای زده عشق دی که طاعون دی نه پوهېږم

بيا دې نوې شراب څښلي دي پوهېږم — په رخسار دې گل کړلي دي پوهېږم

که هزار ځله لاس سره کړې په نکرېزو — تا زما په وينو ولي دي پوهېږم

---

(١) په چاپي ديوانونو اونورو قلمي نسخو کې "لگېدلی" راغلی دی.
(٢) دا بيت په "پ" چاپ کې نشته.
(٣) دا بيت د "خ" په نسخه کې نشته.
(٤) "ق، ک" چاپ: "ستا تر زلفو دخوبانو زلفې خه دي."
"ق" چاپ: "ستا تر زلفو پورې زلفې دجهان خه دي".
(٥) د "خ" لومړۍ نسخه: "دا يو څه دغم ژوندون دی نه پوهېږم".
(٦) په چاپي ديوانونو اونورو قلمي نسخو کې د "لبو" پر ځای "ميو" راغلی دی.
(٧) دا بيت او ورپسې بيت د "خ" په لومړۍ نسخه کې نشته.
(٨) په "ق، ک" چاپ او "ق" چاپ کې د "کنگو" پر ځای "زعفران" راغلی دی.

معرکه زما د مرګ نه ده نو څه ده — رقیبان چې تا بللي دي پوهېږم

چې رقیب وتا غوښونه وبله وروره — ما هغه ساعت زړلي دي پوهېږم (١)

څه حاجت دی چې دی خط په ملا لولم — چې زما په باب دې کښلي دي پوهېږم

ته خپل جور و جفا څه وایې وما ته — ما هم واړه لیدلي دي پوهېږم (٢)

رقیبان ځکه تېرې په رماح کاندي (٣)

تا په خوا پورې نیولي دي پوهېږم

١٣٤ — ١٥٣١

چې له مرګه بې پروا یې په هر دم — دغه هسې غم دې هېر دی په کوم غم (٤)

نور همه واړه غمونه به دې هېر شي — که یو ځل د رباندې راشي (٥) د ماتم

چې زخمي یې سبا به مومي په بیع — مفت مونده شي نن ساعت هغه مرهم

د مرهمو تیارې وړله بویه — چې لا نه یې د اجل په تیغ ګرم

چې دې تن له سرایه د رومي تو پښه واخله — تر دا سرای په هو رته سرای نشته محکم (٦)

د دې لارې تله څه هسې آسان نه دي — مشکلات دي په هر دم په هر قدم

که دې وېره شي له ظلمه له ستمه — ته هم مه کړه په هېڅ چا باندې ستم

که امید لرې له رحمه له کرمه — ستا هم بویه په هر چا باندې کرم

له هر چا سره چې کړې هغه به مومې (٧) — د هېڅ تخم میوه نه د رومي برهم

اجر واړه د عمل په اندازه وي — دغه د واړه سره یو دي هم درهم (٨)

اوس د ستا رضا نېکي کړې که بدي کړې — نېک و بد دې واړه کښلي شي په قلم

خدای د رزق په اېږمه هېر وه کلک شه — تر سرې د سرې رزق دی مقدم

که ګڼې چې په حرص سره څه زیات شي — زیات به نه شي د وي ستني ترسېم

که هزار رنګه تالاش او تر د کړې (٩) — د قسمت شوي به نه کړې زیات و کم

---

(١) دا بیت د "خ" لومړۍ او مصوره نسخه کې نشته.

(٢) دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته.

(٣) د "خ" لومړۍ نسخه او مصوره نسخه: " رقیبان به څه تېرې په رحمان کاندي".

(٤) دا غزل د "پ" په لومړۍ نسخه کې نشته.

(٥) په قلمي نسخو کې " درشي " اغلې دی.

(٦) په قلمي نسخو کې "دوهم" اغلې دی.

(٧) د "خ" لومړۍ نسخه او مصوره نسخه: " په هر چا باندې چې کړې هغه به مومې ".

(٨) دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته.

(٩) د "خ" لومړۍ نسخه او مصوره نسخه: " که هزار ځله تالاش او تدبیر وکړې ".

د پرهوا و حرص مه کوه خدای یاد کړه — دی کافي دی د عرب او د عجم

په تا فرض عبادت د خپل خښتن دی — نه لښکرې خزانې ملک و حشم

تول روټی یوه شپه د لره بس ده — نور همه واړه اسراف دی مسلم

له خوراکه غرض قوت او لایموت دی — نه چې غوښې غوړې وریژې یا غنم

له پوشاکه غرض خپسر پټول دی — نه اطلس و سقلات تاج و عَلَم

د لحد د تاریکۍ علاج به څه کړې — چې ته دلته کې وېرېږې په تورتم

که حرص در باندې زور شي مرګ را یاد کړه — دا علاج دی د غه رنځ لره محکم (۱)

غفلت هیڅ مناسب نه دی د سپین دېرو — خوب روانه دی په وخت د صبحدم

مار چې سوړې لره ورشي ګوره سم شي — ته د ګور په غاړه راغلې نه شوې سم (۲)

خم قامت د دنیا کار کړې عمر واړه — او په دوه رکعته نفلو نه شوې خم

ځان پخوا تر هغه وژاړه که مرد یې — چې په تا باندې ژړا کا نور عالم

نور عالم چې په تا ژاړي انصاف وکړه — بې انصافه ته په څه یې خوش خرم

که زه نه وایم ته خود سترګې رنجې کړه (۳) — کور دې خور شه ته چارپای یې که آدم

ای رحمانه! لکه ته چې په خدای ګرم یې

بل به نه وي په جهان کې هسې ګرم

## ۱۳۵ — ۱۵۵۹

خو به صبر په جفا د یار کوم — خو به موم د لمر وخ تر ګر زوم

عاشقي او صبوري سره دروغ دي (٤) — زه دا لاف په دروغ څرنګه وهم

ته وماته نصیحت مه کړه ناصحه — زه دا خپل تخم خپل ځان لره کرم

ما خو زده چې مینه او ور دی خدای مېن کړم — دانسته خپسر واور ته اچوم

سر رشته مې خدای همه د یار په لاس کړه (٥) — په هر لور چې مې راکاږي پسې ځم

د آشنا د مینې لاس زما ګرېوان دی — زه په دا کار کې هیڅ عذر نه لرم (٦)

عاشقانو (٧) باندې حق د معشوق دی — حق به ولې په باطلو بدلوم

---

(۱) دا بیت د "پ پ" چاپ کې نشته.

(۲) قلمي نسخې: "ته د ګور په غاړه ګرزې نه شوې سم".

(۳) قلمي نسخې: "که زه نه وایم ته خپله سترګې وکړه".

(٤) د "خ" لومړۍ نسخه: "عاشقي او صبوري ده سره لري".

(٥) چاپي دیوانونه: "سر رشته مې خدای د یار په لاس کې ورکړه".

(٦) قلمي نسخې: "زه په دا معامله کې عذر نه لرم"

(٧) د "پ" په لومړۍ نسخه کې "په عاشقانو" او د "خ" په لومړۍ نسخه کې "په عاشقو" راغلی دی.

ماچي مينه د يار فرضه په خپل ځان کړه ... تر وله فرضو غاړه خړنګ غړوم

١٣٦ — ١٥٦٨

داځه ژوند (١) دی چي يار نه وينم په سترګو
زه رحمان په جهان سترګي غړوم

په يوه غمزه د سترګو يي فنا شوم ... سر تر پايه بي بنياده بي بقا شوم

ما د يار له غمه دم وهلی نه دی ... که مي دم وهلی نه دی هم رسوا شوم (٢)

بنه چي تن مي توی تومنه شو په عشق کي ... هاله څاڅکی د شبنم وم اوس دريا شوم (٣)

زه د يار ومخ ته ګورم يار وما ته ... چي داخل په تماشا شوم تماشا شوم

په هجران کي يي ګدا وم کند په غاړه ... په وصال کي يي پادشاه د امرا شوم (٤)

په خپل کلي په خپل کور کي مي غربت دی ... په صدف کي يتيم دړ غوندي يکتا شوم (٥)

مستوري راځه يو وړه مستو سترګو ... رحمان ځکه په وګړي کي رسوا شوم (٦)

١٣٧ — ١٥٧٦

بادشاهي د ګدايانو په دعا شي (٧)
زه رحمان ځکه بادشاه شوم چي ګدا شوم

ترهغه حده په هورته بد سري شوم (٨) ... چي د درست جهان په سترګو کي اغزي شوم

دنيا واړه ځبله زيست او روزګار کاندي ... خو يو زه په دغه بار کي کوډلړ ګی شوم (٩)

تمامي جهان لمن راځه نغاړي ... سپين زړی مي اغوستی تورکودی شوم

هيڅ حاجت د هنر نشته ونصيب ته ... غزا وشوه که مومند که داؤدزی شوم

---

(١) په قلمي نسخو کی " داځه ژوند ون دی " راغلی دی.
(٢) دابيت د " خ " په لومړی نسخه کی نشته .
(٣) دابيت د " خ " په لومړی نسخه کی داسی دی : " بنه چي تن مي دړی وړی شه په عشق کي هاله څاڅکی د شبنم وه اوس دريا شوم ".
د " خ " دوهمه نسخه : " بنه چي تن مي د تو تومند شو په عشق کي هاله څاڅکی د شبنم وم اوس ګياه شوم ".
او په " ق ا ک " چاپ کی يي دوهمه مسرۍ داسی ده : " اول څاڅکی د شبنم وم اوس دريا شوم ".
(٤) قلمي نسخي : " په وصال کي بيا خان وامراد شوم ".
(٥) دابيت په چاپي ديوانونو کی نشته : او دوهمه مسرۍ يي د " خ " په لومړی نسخه کی داسي ده : " په صدف کی پنهم دړ غوندي يکتا شوم ".
(٦) دابيت په چاپي ديوانونو او د " خ " په دوهمه نسخه کی نشته .
(٧) دابيت د " خ " په لومړی نسخه کی نشته او هم ټول غزل په مصوره نسخه او د " ب " په دوهمه نسخه کی نشته .
(٨) دا غزل په مصوره نسخه او د " ب " په دوهمه نسخه کی نشته . لومړی مسرۍ يي د " خ " په لومړی نسخه کی داسي ده : " ترهغه حده بيکاره بد سری شوم ". او د " خ " په دوهمه نسخه کی دا مسرۍ داسی ده : " ترهغه حده پوری بد سری شوم ".
(٩) دابيت د " خ " په لومړی نسخه کی نشته لومړی مسرۍ يي د " ب " په نسخو کی داسی ده : " دا دنيا واړه وبله زيست وروزګار کاندی ".
د پېښور په دوو نورو چاپي ديوانونو کی داسی ده : " دنيا واړه سره زيست وروزګار کاندي ".
د " خ " په دوهمه نسخه کی داسی ده :
" عالم واړه سره زيست وروزګار کاندی ".

د نوح زوی هم د یو نیک نیکه نمسی وُ(۱) — گنه زه هم د یو نیک نیکه نمسی شوم

کل وسواس له احتیاطه پیدا کیږي — زه له ډیرې هوښیارۍ نه لیونی شوم(۲)

۱۳۸ — ۱۵۸۳

اوس عطا د آدمیت را باندې وشوه

چې رحمان د هغه یار د کوڅې سپی شوم(۳)

په ښه خوی له بدخواهانو بې پروا یم — په نرمۍ لکه اوبه د اور سزا یم

و هر چا ته په خپل شکل څرګندیږم — آیینه غوندې بې رویه بې ریا یم

دراز عمر مې حاصل شوله راستۍ — لکه سرو مدام سبزه تازه پا یم(۴)

هم په دا سپینو جامو چې معلومیږم — لکه ابر هم گوهر یم هم دریا یم

قناعت مې تر خرقې لاندې اطلس دی — پټ د دریست جهان بادشاه ظاهر گدا یم

د غوټې په څیر په سل ژبو خاموش یم — لکه بوی هسې په پټه خوله گویا یم

په ژړا مې د خپل یار دیدن حاصل کړ — د شبنم په څیر له گل سره یکتا یم

۱۳۹ — ۱۵۹۱

که چا لار د عاشقۍ روې(۵) ورکه کړې

زه رحمان د گمراهانو رهنما یم

زه له دې جهانه(۶) تلونې په شتاب یم — لکه پانه د خزان پښه په رکاب یم(۷)

که هزار آباداني کړم په جهان کې — غرض دا چې نهایت خانه خراب یم(۸)

---

(۱) دا مسری په چاپي دیوانونو او د "خ" لومړۍ او دوهمه نسخه کې داسې ده: "د نوح زوی هم د نیک نیکه نمسی وُ".

(۲) قلمي نسخې: "زه له ډیرې هوښیارۍ لیونی شوم".

(۳) "ق، ک" چاپ: "زه رحمان د هغې یار د کوڅې سپی شوم". د "خ" دوهمه نسخه: "چې زه رحمان".

(٤) دا دوه بیتونه د "خ" په لومړۍ نسخه کې نشته.

(۵) په "ب" چاپ او "پ پ" چاپ کې د "وي" پر ځای "ده" راغلی دی.

(۶) په چاپي دیوانونو کې د "جهان" پر ځای "دنیا" راغلی دی.

(۷) "ق" چاپ: "پا".

(۸) د دې بیت لومړۍ مسری په "ب" چاپ او "ق" چاپ کې داسې ده: "که هزار آبادي کړمه په جهان کې".
د "پ پ" چاپ: "که هزارې ابادي کړم په جهان کې".
"ق، ک" چاپ: "که هزار آبادۍ وکړم په جهان کې".
دوهمه مسری یې د "ق، ک" چاپ او "ق" چاپ کې داسې دی: "غرض دا چې عاقبت خانه خراب یم".

کړمې اصل د حیاتو له اوبو دی ... بیا خودا چې داوبو په سر حباب یم

دا جهان قصاب خانه کړه خدای وماته [1] ... پای بسته ولاړ په غولي د قصاب یم

چې د خدای له معرفته خبر نه شوم [2] ... معلومېږم چې یا دیو یم یا دواب یم

که صورت مې د سړي دی زه یې څه کړم [3] ... په معنی کې د چارپایو په حساب یم

لکه بت چې په زړو سترګو اوده وي ... هسې زه په بېدارۍ کې ورې خواب یم [4]

په طاعت په عبادت مې زړه یخ نه کړي ... همېشه د معصیت په اور کباب یم

سر د خدای و عبادت ته اېښوی [5] نه شم ... مدام ډوب د ګناهونو په ګرداب [6] یم

چې و خپلو ګناهونو ته نظر کړم ... سزاوار د هر عذاب [7] و هر عتاب یم

لکه خوګ چې په خرۍ سوړ وي مخ یې تور وي ... زه هم هسې په خپل خدای پورې بې آب یم [8]

۱۴۰ ... غزا وشوه که ګفتار لرم [9] په ژبه ... ۱۶۰۳

زه رحمان چې کردار نه لرم کذاب یم

---

(۱) مصوره نسخه : "دا جهان خدای قصاب خانه کړ وماته".

(۲) "ق، ک" چاپ: "چې خبر نه شوم د خدای له معرفته".

په دوهمه مسری کې په مصوري نسخې کې د "یا دد یم" پر ځای "یو دد" راغلی دی.

(۳) د "پ" په نسخه کې دا مسری داسې ده : "که صورت یې د سړي دی به یې څه کړي".

د "خ" په دوهمه نسخه کې : "که صورت مې د سړي دی په دا څه شو".

(٤) دا بیت د "خ" په لومړی نسخه کې نشته.

(۵) د "پ" نسخې : "وښکلی نه شم".

د "خ" لومړی نسخه : "اېښښی نه شم".

دوهمه نسخه : "نېوای نه شم".

(۶) په چاپي دیوانونو کې "دریاب" راغلی دی.

(۷) د "پ پ" چاپ : "د هر سزا".

(۸) دا بیت په مصوره نسخه کې نشته ، په "پ" چاپ ، "پ، پ" چاپ او "ق" چاپ کې دا مسری داسې ده :

"زه هم هسې تر څښتن پورې بې آب یم".

"ق، ک" چاپ : "تر مولا پورې بې آب یم".

د "پ" لومړی نسخه : "زه هم هسې تر خپل یاره پورې بې آب یم".

دوهمه نسخه کې : "زه هم هسې تر الله پورې بې آب یم".

(۹) په چاپي دیوانونو او د "خ" لومړی نسخه کې "کوم" راغلی دی.

که هزار ځله نژدې د زړه په یاد یم
زه چې یار په ستر ګو نه وینم ناښاد یم(١)

که یار سل ځله وعدې د وصال وکا
زه له ډېرې تلوسې بې اعتقاد یم

په جفا و په وفا یې لا ره غه نه شي
پر حذر د ناز پرور په کړې داد یم(٢)

د بې نیاز و په نیاز څه امید د کړو دی
زه پر ون سلطان خسرو و مرن فرهاد یم(٣)

که دیار له لاسه اور را باندې بل وي
لکه شمع مستقیم په خپل استا د یم

بې مینه قرارې را باندې زوګ دی
شپه او ورځ په حرکت کې لکه باد یم

که همه عمر مې یار په غېږ کې ناست وي
زه له غمه به د هجر په فریاد یم

یو زمان مې د زړه مراد موندلی نه دی
پیدا کړی خدای په اصل کې نامراد یم

د وصال په یوه کال مګر برپای شم
د هفتې په هجر هسې بې بنیاد یم

چې یې نوره نتیجه نشته بې غمه
حق حیران د عاشقۍ په دا داد یم(٤)

په وصال کې مې د هجر طمعه نه وه
او س حیران متحیر په دا فساد یم

بې له عشقه چې مې پرې شو د پوزې(٥)
ګنه نور له جملګي قیده آزاد یم

که مې پیرې که مې پلورې چاره نشته

١٤١ | ١٦١٦

زه رحمان د بنا یسته و خانه زاد یم

که مې څوك پر فقیرې شمېرې(٦) فقیر یم
که مې څوك پر امیرې شمېرې امیر یم

د دلبر وصدقې لره یې غوارم
هسې نه چې په دنیا پسې زهیر یم

د خرقې خدمت(٧) مشکل دی او که نه وي
زه هر دم و دخې چارې ته خبیر یم

---

(١) دا غزل د "پ" په لومړۍ نسخه او مصوره نسخه کې نشته.
(٢) د "خ" په لومړۍ او دوهمه نسخه کې "قرارداد" راغلی دی.
(٣) د "خ" لومړۍ نسخه : " زه همه عمر له هجره په فریاد یم ".
(٤) دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته.
(٥) په "ق" چاپ کې " د غاړې " راغلی دی.
(٦) په مصوره نسخه کې " بولی" راغلی دی او دا غزل د "پ" په دوهمه نسخه کې نشته.
(٧) د "خ" په لومړۍ او دوهمه نسخه او مصوره نسخه کې "حرمت" راغلی دی.

هم پند اخلم هم پند وایم وهرچا ته　　زه د ښو مرید د ښو پیر یم (١)

په هجران کې د یار خیال راسره مل دی (٢)　　په زندان کې له یوسف سره اسیر یم

په خندا کې مې ژړا ده لکه شمع　　له عالمه پټ پنهام (٣) د ځان په ویر یم

آزادي تر دا په هورته نوره څه ده (٤)　　چې بندي (٥) د یار د زلفو په ځنځیر یم

خوشحالي تر دا په هورته بله کومه　　چې مدام په خپل اشنا پسې زهیر یم (٦)

چې همېش په غوبناري د هجران اورم　　رحمان څکه د خپل یار و مخ ته حیر یم (٧)

خوشحال او دولت امې غلامان دی (٨)

زه ماځان په پښتو ژبه (٩) عالمګیر یم

## ١٤٢　　١٩٢٩

زه د یار په درد و غم کې غرقاب خوښ یم　　په دا درد کې بې طاقت او بې تاب خوښ یم

که ړوبېږم په اوبه یا په اور سوځم　　د سروشونډو په آتش و په آب خوښ یم

چې د یار د خال و خط نښې پکې وي　　زوړ زړ سر په مطالعه د کتاب خوښ یم

تر دا پوچه ګفتګو یه چې یې اورم (١٠)　　په نغمه په ترانه د رباب خوښ یم

د رِیا ترنا قبوله عبا د ته　　د ساقي په میو مست و خراب خوښ یم

---

(١) دا بیت د "خ" په لومړی نسخه کی داسی راغلی دی:
"هم پند اخلم هم پند واخلم وهرچا ته　　د ښو مرید د ښو مرشد د ښو پیر یم".
دوهمه مسری یې د "پ" په لومړی نسخه کی داسی ده: "د ښو مرید د ښو پیر یم".

(٢) دا مسری په "ق" چاپ کی داسې ده: "په هجران کې د وصال خیال راسره وي". او په نورو چاپي دیوانونو کی داسې ده:
"په هجران کې خیال د یار راسره مل وي".

(٣) په "ق، ک" چاپ کې "پنهان" او د "خ" په دوهمه نسخه کی "تنها" راغلی دی.
لومړی بیت په مصوره نسخه کې نشته.

(٤) په چاپي دیوانونو کی "بله نشته" او د "خ" په لومړی نسخه کی "نوره څه دی" راغلی دی. او هم دا بیت په مصوره نسخه کی نشته.

(٥) د "خ" په لومړی نسخه کی "بنده" راغلی دی.

(٦) دا بیت په چاپي دیوانونو او د "خ" لومړی نسخه کی نشته، لومړی مسری یې د "خ" په دوهمه نسخه کی داسی ده "خوشالی تردا پهورته ده نور کومه".
او په مصوره نسخه کی دا بیت داسی دی: "خوشالی تردا په هورته نوره څه ده　　چې مدام په خپل اشنا پسې دلګیر یم".

(٧) دا بیت په قلمي نسخو کی نشته لومړی مسری یې په "ق" چاپ کی داسی ده "همېشه په غوبناري د هجران اورم"

(٨) دا مسری د "خ" په دوهمه نسخه کی داسی ده: "یو خوشال سل خټک نور مې غلامان دي".

(٩) د "پ" په لومړی نسخه او مصوره نسخه کی "شعر" راغلی دی. (١٠) د "خ" دوهمه نسخه "تر دوداونو ګفتګو یو چې یې اورم". لومړی بیت او ورپسې بیت د "خ" په نیمګړی نسخه کی نشته.

چې نه علم نه تسبیح نه تلاوت وي — له دې هسې بېدارۍ نه په خواب خوښ یم
خاموشي که هر څو لویه مرتبه ده — زه له یار سره په سوال و جواب خوښ یم[1]
د طوبىٰ د ونې سیوری مې خوښ نه دی — ستا د مخ په لمبو سوی کباب خوښ یم
دیار د ډېرې غم خوارۍ یم عاجز کړی
رحمان ځکه په خوردن د شراب خوښ یم

۱۴۳ — ۱۶۳۵

زه د یار په درد و غم کې شادمان یم — لکه ګل د پرېشانۍ په وخت خندان یم
ته زما و بېکسۍ ته نظر مه کړه — خدای ساتلی لکه ګنج په بیابان یم
لکه ونه د ځنګل په مېوه پوره — په وېرانه وېرانۍ کې آبادان یم
یو و بېستر مې د صورت بې عشقه نه دی — څوکیدار په هر نفس د خپل کاروان یم[2]
د وصال مرغه[3] د اوښکو د انوار الکړ — لکه در و لعل په غاړه د خوبان یم
د کاملې عقیدې له برکته — د دوهمې په غاړه ناست شاه جهان یم
روښنائي مې په طلب کې شوه حاصله — شپه او ورځ لکه آفتاب په لار روان یم
د آشنا د اوږدو زلفو صفت څو کړم — پلې شره په لویه لار د هندوستان یم[4]
بې مینه مې هېڅ حال د صورت نشته[5] — لکه بې مال و متاعه تش دوکان یم
د هوس بلبل و پساه راباندې نه کا — د افلاس په کبل ډکې د خزان یم
و یارانو ته خاک تر تلو لاندې — د دې نور جهان په سر لکه آسمان یم[6]
چې د یار په مینه سر و مال بښندمه — خلقه واورئ هغه زه عبدالرحمان یم[7]

---

(۱) دا بیت د "خ" په لومړی نسخه کې نشته.
(۲) د "خ" لومړی نسخه کې "د خپل کردا هیم" او مصوره نسخه کې "د خپل ځان یم" راغلی دی.
(۳) د "خ" په لومړی نسخه او مصوره نسخه کې داسې ده: "د وصال مزی د اوښو داني د اکړ".
(۴) دا بیت په مصوره نسخه کې نشته. لومړی مسری لې د "پ پ" چاپ کې داسې ده: "چې صفت د تور و زلفو د اشنا کړم".
(۵) دا بیت په مصوره نسخه کې نشته، د "خ" په دوهمه نسخه کې لومړی مسری داسې ده: "بې له مینې مې هېڅ حال د صورت نشته".
(۶) دا بیت او ورپسې بیت د "خ" په لومړی نسخه او نیمګړې نسخه کې نشته، په مصوره نسخه کې لومړی مسری داسې ده: "د مار انو تر تلیو لاندې خاک یم".
(۷) دا بیت په مصوره نسخه کې نشته.

۱۴۴ — ۱۶۴۸

په هر دم کې نوې نوې تماشې کړم
زه ریحان دخدای وکړه وته حیران یم

چې هر دم له خپله ځانه ګریزان یم — هم په دالکه دریاب در وکان یم[1]

مرګي تریخ دی چې ژوندون دچا شیرین شي — زه خورسند دیار ترو وصل په هجران یم

نادانۍ مې دانايي شوه لکه طفل — په ناپاکو ګوهره کې پاک دامان یم

چې دنفس دحرص ملك مې مسخر کړ — پهوا دپاسه تخت د سلیمان یم

تن مې څه کړي چې زړه یار راخځ یوړ — بیهوده دخالي خونې نګهبان یم

لکه ګل چې په نارمات کړې اوږاند وي — زه هم هسې دژوند ودمړ و ترمیان یم

کله ځان راته ولي کله عاصي شي — نه خبر په خپل کمال نه په نقصان یم

۱۴۵ — ۱۶۵۶

خپل جانان مې هسې نقش د زړه په زړه کې
نه پوهیږم چې رحمان یم که جانان یم

ژوبل ژوبل د ترکانو په نګاه یم — تردالا په داغوښیږم چې پناه یم[2]

چې یوسف غوندې هزار یکښې پراته دي — بند بوان دهغه سبب[3] ذقن په چاه یم

چې لې قد وقامت نه وینم په سترګو — عندلیب په سر د سروی دخپل آه یم[4]

دسپین مخ دتور وخښو له رغبته[5] — منت بار دهر سفید او هر سیاه یم[6]

---

(۱) داغزل د "خ" له دیمي قلمي نسخې نه نقل شو.

(۲) داغزل د "خ" په دویمه نسخه کې نشته او دا بیت په چاپي دیوانونو کې داسې راغلی دی: "ژوبل ژوبل دخوبانو په نګاه یم — لا تر دانه زیات هوښیږم چې پناه یم".
په مصوره نسخه کې داسې دی: "ژوبل ژوبل دخوبانو په نګاه یم — تر دالا په داعاجز یم چې پناه یم".
د "خ" په لومړۍ نسخه کې داسې دی: "ژوبل ژوبل دخوبانو په نګاه یم — لا پردا زهیریږم چې لمسترګو لې پناه یم".
د "خ" په دویمه نسخه کې داسې دی: "ژوبلې ژوبلې دخوبانو په نګاه یم — تروخولا په داهوښیږم چې پناه یم".

(۳) په قلمي نسخه کې د "سبب" پرځای "سیم" راغلی دی او د "خ" په لومړۍ نسخه کې "سیم په ذقن چاه یم" راغلی دی.

(٤) دا بیت په چاپي دیوانونو کې داسې دی: "چې لې قد وقامت وونیم په سترګو — عندلیب په سهی سرو دخپل آه یم".
د "خ" په لومړۍ نسخه کې د دویمې مسرۍ داسې ده: "عندلیب دسهی سرو دخپل آه یم".
د "خ" په دویمه نسخه کې داسې ده: "عندلیب غوندې په سروې دخپل آه یم".
او مصوره نسخه کې داسې ده: "عندلیب هسې سرو دخپل آه یم". (پاته په ۱۰۷ مخ کې)

لکه غوټه چې پټه سوه روي مخ يې تور وي — زه هم هسې تر خپل خدای پورې روسیاه یم (۱)

د رقیب خبرې (۲) ورم د یار د پاره — دعاگوی هم د نېك خواه هم د بدخواه یم (۳)

بې له عشقه که مې عیب که مې هنر دی (٤) — نه (۵) خبر په عبادت نه په گناه یم

شاخ د زلفو يې پخپله خدای راټیټ کړ — گنه زه د یار تر قد پورې کوتاه یم (٦)

ځان هرگوره ناگاه راڅرگندېږي — له هغې ورځې راهسې چې آگاه یم (۷)

بې صبري د یار په وصل کې مهجور کړم — د پسرلي په مرغزار کې وچ گیاه یم

له اوله تېر ووم بیا آه کړم — په نارو نارو (۸) خروس د صبحگاه یم

په جذبو جذبو يې راښکلم زه وځان ته — هغه یار مې کاه ربا دی زه يې کاه یم (۹)

لکه بار دوني پوخ شي ځني رژي — زه هم هسې بار تر لې سربراه یم

اوس مې ځای په دا جهان کې پاتې نه شو — خوځېدلي تر (۱۰) چل وتر پنجاه یم

---

د (۱۰٦) مخ د پاڼلیکونو پاته: (۵) د "خ" په لومړي نسخه کې د "رغبته" پر ځای "زینته" راغلی دی.

(٦) دا مسری په "ب" چاپ او "ق" چاپ کې داسې ده: "منت بار دهر سفید دهر سیاه یم".

په "ب ب" او "ق ک" چاپ کې داسې ده: "منت بار دهر سفید او دسیاه یم".

او د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې ده: "منت بار دهر سفید ودهر سیاه یم".

---

(۱) دا بیت په چاپي دیوانونو، مصوره نسخه او د "خ" لومړۍ نسخه کې نشته، د "خ" په دوهمه نسخه کې يې لومړی مسری داسې ده: "لکه غوټه چې په خره سوه ني مخ يې تور شي".

(۲) د "ب" په نسخه او د "خ" لومړۍ نسخه کې "خبرې" راغلي دي او دا مسری په مصوره نسخه کې داسې ده: "د رقیب خبره اورم د یار د پاره".

(۳) دا مسری د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې ده: "دعاگوی هم د نېکخواه هود بدخواه یم".

(٤) دا مسری د "خ" په لومړۍ نسخه کې داسې ده: "بې له عشقه که مې عشق که مې هنر دی".

(۵) په "ق" چاپ کې د "نه" پر ځای "زه" راغلی دی.

(٦) دا بیت د "خ" په لومړۍ نسخه کې داسې دی: "شاخ د زلفو خپل خدای راته ټیټ کړ — گنه زه د یار تر قد پورې کوتاه یم".

(۷) دا بیت د "خ" په لومړۍ نسخه کې داسې دی: "ځان ښکاره راته هرگوره څرگندېږي — له هغه د ره دراهسې چې آگاه یم".
په چاپي دیوانونو او د "خ" په دوهمه نسخه کې لومړی مسری داسې ده: "ځان هرگوره ناآگاه راڅرگندېږي". د "خ" په دوهمه نسخه کې يې دوهمه مسری داسې ده:
"له هغې ورځې راپه هسې چې آگاه یم". او په "ق، ک" او "ق" چاپ کې داسې ده: "له هغې ورځې راهسې چې آگاه یم".

(۸) د "خ" په دوهمه نسخه کې "نارو سورو" راغلی دی.

(۹) دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته، په "ب" چاپ، "ب ب" چاپ او مصوره نسخه کې يې لومړی مسری داسې ده: "په جذبو جذبو يې راکښوم وځان ته".
د "ب" په لومړۍ نسخه کې داسې ده: "په جذبو جذبو يې راوځکولم وځان ته".
په "ق، ک" چاپ کې داسې ده: "په جذبو يې راښکه خپل ځان ته".
او د "خ" په لومړۍ نسخه کې دا بیت داسې دی: "په جذبو جذبو يې راکښوم وځان ته — هغه یار مې کاه ربا دی زه گیاه یم".

(۱۰) د "خ" په لومړۍ نسخه کې د "تر" پر ځای "له" راغلی دی.

## د رقیب علاج آسان دی بلا دا شوه (۱)

۱۴۶ ۱۹۷۱

زه رحمان (الرحمان) له خپله یاره نا وېساه یم

زه یو دم د ستا له غمه بې غم نه یم — بې غم ستا له ذکره فکره یو دم نه یم (۲)

هر زیارت لره چې درومم (۳) مراد مې ندې — زه زایر (۴) د بت خانې د حرم نه یم

ستا د در په تورو خاورو باندې خوښ یم — بې تا خوښ په تماشا د ارم (۵) نه یم

چې د (۶) ستا په تماشا یم خبر شوی — نور خبر په تماشا د عالم نه یم

بې د ستا له زېبا مخه و بل مخ ته — منتظر د یو بې ستني قرسوم (۷) نه یم

که د ستا د ښکلي مخ عاشقان ډېر دي — زه په وار وکې اول یم دویم نه یم

که له غمه دې و نه مرم حاله (۸) وایه — چې یا دیو یم یا دواب (۹) یم آدم نه یم

سم قامت لکه الف یم په راستۍ کې — لکه غشی څه (۱۰) فساد لره سم نه یم

زړه مې ستا په غمزه غوڅ دی غزا وشوه — که په لاسو په پښو روغ یمه ګرم نه یم (۱۱)

خم د زلفو (۱۲) محراب د کږو وروځو — څه (۱۳) د مار و دلرم په څېر خم نه یم

---

(۱) دا مسری د "خ" په لومړي نسخه کې داسې راغلې ده: "د رقیب علاج آسان دی که لې خدای کړه".

(۲) دا غزل په مصوره نسخه او د "پ" په دوهمه نسخه کې نشته.

(۳) په چاپي دیوانونو او د "خ" لومړي نسخه کې "ځمه" راغلی دی.

(٤) د "خ" په لومړي او دوهمه نسخه کې "زاهد" راغلی دی.

(۵) د "خ" په دوهمه نسخه کې "حرم" راغلی دی.

(۶) په چاپي دیوانونو او د "خ" په دوهمه نسخه کې "دا" او د "خ" په لومړي نسخه کې "نه" راغلی دی.

(۷) په چاپي دیوانونو کې "سم"، په "پ" چاپ او د "خ" دوهمه نسخه کې "سیم" راغلی دی.

(۸) د "خ" په لومړي نسخه کې "راته" راغلی دی.

(۹) د "خ" په لومړي نسخه کې "دیوال" راغلی دی.

(۱۰) په "پ" چاپ، "پ پ" چاپ او د "ق، ک" چاپ کې "زه" او د "ق" چاپ کې "و" راغلی دی.

(۱۱) دا بیت د "خ" په لومړي نسخه کې داسې دی: "زړه مې ستا په غمزه غوڅ دی بلا دا شوه — که په لاس په پښو روغ یم کرم نه یم".
د "خ" په دوهمه نسخه کې دوهمه مسری داسې ده: "که په لاسو په پښو روغ یم کرم نه یم".
په "ق، ک" چاپ او "ق" چاپ کې داسې ده: "که په لاسو په پښو روغ خو ګرم نه یم".

(۱۲) د "خ" لومړي او دوهمه نسخه کې "یې" راغلی دی.

(۱۳) په "پ" چاپ، "پ پ" چاپ او "ق، ک" چاپ کې "زه" راغلی دی او په "ق" چاپ کې دا مسری داسې ده: "پېچ و خم په څېر د مار و دلرم نه یم".

که مې کم و بېش له لاسه واقع کېږي[1] یم سړی شکم لرم بې شکم نه یم[2]

زه ځان د بېلتانه له لاسه[3] ژاړم

۱۴۱ | ۱۹۸۳

واقعه ده ډېره ګرانه هېڅ ګرم نه یم[4]

هسې تېز د روي دوران — ګویا برق دی درخشان[5]

د آسیا په څېر[6] ګردش کا — په زمین باندې آسمان

ککرۍ دي د سړیو — چې وریږي تر دا میان

پیدا کېږي فنا کېږي — نه یې سرشته نه سامان[7]

نه یې سرشته نه سامان شته — نه یې حد شته نه پایان[8]

---

(۱) دا مسره په چاپي دیوانونو کې داسې ده : "کم و بېش که مې له لاسه واقع کېږي".

(۲) دا مسره د "خ" دوهمه نسخه کې داسې ده : "هم سړی یم نس لرم بې شکم نه یم".

(۳) په چاپي دیوانونو او د "خ" په لومړۍ نسخه کې "له لاسه" راغلي دي.

(۴) د "پ" نسخه : " دا واقع ده ډېره ګرانه هېڅ ګرم نه یم

د "خ" لومړۍ او دوهمه نسخه کې داسې ده : " دا واقعه ده ډېره ګرانه هېڅ ګرم نه یم ".

(۵) د "پ" نسخه : "هسې تېز د روي دوان ګویا برق دی د آسمان".

د "خ" دوهمه نسخه : هسې تېز د روي دوران ګویا برق دی د جهان".

مصوره نسخه : "هسې تېز د روي روان ګویا برق دی د جهان".

د "خ" لومړۍ نسخه : " هسې تېز د روي روان ګویا برق دی د اسمان".

(۶) د "ق، ک" او "پ پ" چاپ کې "سیر" او د "خ" په دوهمه نسخه کې "دود" راغلي دي. (۷) قلمي نسخې : "نه يې سرشته نه سامان". (۸) "ق، ک" او "ق" چاپ

نه يې حد شته نه پایان شته نه يې سرشته نه سامان ". "پ" چاپ : نه حد نه و نه پایان شته نه يې سرشته نه سامان".

"پ پ" چاپ : " نه يې حد نه يې پایان شته نه يې سرشته نه سامان".

ځینې د ولږ وهي بېنادي کا — ځینې وېر کا د خپل ځان

ځینې شمع غوندې ژاړي — ځینې ګل غوندې خندان

که یې ګورې یو ګلزار دی — که یې ګورې یو بیابان [۱]

که یې ګورې یو ګلشن دی — که یې ګورې یو زندان [۲]

یوه هسې تماشا ده — چې یې هېڅ نه شي بیان [۳]

کیفیت یې موندہ نه شي — په دلیل او په برهان

چې یې کوم خوا رفتن دی [٤] — یا یې چېرته دی مکان

خدای خبر دی په دا علم [٥]

هېڅ خبر نه دی انسان

(۱٤۸) (۱۶۹۶)

د بې یاران وو د ګل خان او جمال خان — په کار نه شو یو په وخت د زارستان [۶]

دهمه وارو یارانو مخ دې تور شي [۷] — که به ښوک وبله [۸] یاري کا په داشان

چې یو یار په سیوري پروت وي [۹] بل په اور کې — وهغوته به ښوک څه وایي یاران

هېڅ تعریف یې په دا ژبه وایه نه شي — صد رحمت شه په یاری هم د ګل خان [۱۰]

---

(۱) د "پ" لومړی نسخه "زندان". د "خ" لومړی او دوهمه نسخه: "که یې ګورې یو بازار دی که یې ګورې یو بیابان".

(۲) دا بیت په "پ" چاپ، "ق، ک" چاپ او "ق" چاپ کې نشته.

(۳) چاپي دیوانونه: "چې یې هېڅ نشته بیان". د "خ" لومړی او دوهمه نسخه: "چې یې هېڅ نه شي بیان". مصوره نسخه: "ځني نه شي هېڅ بیان".

(٤) "ق، ک" چاپ، "ق" چاپ او د "خ" په دوهمه نسخه کې: "چې یې کوم خوا ته رفتن دی".

(٥) قلمي نسخې: "خدای عالم دی په دا علم".

(۶) دا غزل د "پ" په نسخو او مصوره نسخه کې نشته. دوهمه مسری یې د "خ" په لومړۍ نسخه کې داسې ده:

"یو هم نشته ده کار په ځان راستان"

دوهمه نسخه: "یو یې هم په کار نه شو په ځای د راستان".

(۷) د "خ" دوهمه نسخه: "دهمه وارو یارانو مخ یې ورک شه".

(۸) "ق" چاپ: "سره".

(۹) د "خ" دوهمه نسخه: "ناست دي".

(۱۰) "پ" چاپ: "هېڅ تعریف مې په دا ژبه وایه نه شي- صد رحمت شه په یاری که د ګل خان".
د "خ" لومړی نسخه: "هېڅ تعریف یې نور په ژبه داوړی نه شي صد رحمت شه په یاری که د ګل خان".
د "خ" دوهمه نسخه: "هېڅ تعریف به یې په ژبه را و نه شي صد رحمت شه په یاری که د ګل خان".

پہ داهورته[۱] د یاری شرطونه ښه وي ‌ ‌ چې پہ اور کې دوا ړه وسوځي یکسان

چې له آله له اولاده سره و سول ‌ ‌ خدای دې نه کا څوک داهسې مظلومان

چې پہ اور کې یو د بل د پاره سوځي ‌ ‌ ما لېدلي نه و وهسې مخلصان

ښه رنګ ښوخ و و هغه او را وهغه خلق ‌ ‌ چې یې مر نه کړ و داوښکو پہ باران[۲]

الغیاث دی الغیاث دی الغیاث دی ‌ ‌ چې انسان کا هسې ظلم پہ انسان

د نمرود چارې مې ولیدې پہ ستر ګو ‌ ‌ چې یې اچول و ا وروته نبیان[۳]

هم دې څمکې دې آسمان ته تعجب کړم[۴] ‌ ‌ چې نه څمکه پہ نا روښوه نه آسمان

هم دې لو یو لو یو غرونو ته حیران یم[۵] ‌ ‌ چې ونه لوښته له ویخه سرغلتان

له دې خپله سپیه نفسه مې زړه بد شو[۶] ‌ ‌ چې اوبه ښنې یا خواره خوړې پہ جهان

عالم وایي چې قیامت به پہ جمعه وي ‌ ‌ ولېد ما پہ یکشنبه پہ دا دوران

هزار حیف دی چې داهسې رنګه چارې ‌ ‌ واقع کېږی د دنیا پہ سود و زیان

سر بند نه وُ ګویا د بنت کربلا وُ ‌ ‌ چې سیلاب شو د سر و وینو پرې روان[۷]

پہ عیسیٰ او پہ دجال کې ګناه نشته[۸] ‌ ‌ دا مکرونه دې د نفس و د شیطان

---

(۱) د "خ" دوا ړو قلمي نسخو، "پ" چاپ، "ق، ک" چاپ او "ق" چاپ کې "تر داهورته" راغلی دی.

(۲) د "خ" لومړۍ نسخه: "چې مړ نه که هم داوښکو پہ باران".
دوهمه نسخه: "چې یې اور مړ نه کړ داوښکو پہ باران".

(۳) "ق، ک" چاپ: "چې به یې اچول وا وروته نبیان".
"پ" چاپ: "چې یې اچول ځاور ته نبیان".
د "خ" لومړۍ نسخه: "چې یې اچول وا ورته مرسلان".
دوهمه نسخه: "چې یې اچول پہ اور کې مرسلان".

(٤) "پ" چاپ: "هم دې ځمکې هم اسمان ته تعجب کړم".
د "خ" لومړۍ نسخه: "و دې ځمکې و اسمان ته تعجب یم".
دوهمه نسخه: "و دې ځمکې و اسمان وته حیران یم".

(۵) د "خ" لومړۍ او دوهمه نسخه: "و دې لو یو لو یو غرونو ته حیران یم".

(۶) د "خ" دوهمه نسخه: "له دې خپله کم بخت نفسه مې زړه بد شو".

(۷) دا بیت د "خ" له لومړۍ او دوهمې نسخې نه نقل شو، پہ چاپي دیوانونو او نورو نسخو کې نشته.

(۸) د "خ" لومړۍ او دوهمه نسخه: "ګناه نه ده".

عزیزان یې ځبله (۱) ووژل یخپله — داهمه واړه تقدیر دی دسبحان (۲)

هسې نه چې ذاتي وکړه نور به نه کړي — چې یې زړه شي هغه کاندي بادشاهان (۳)

شاه عالم اعظم وګوره چې یې سخاکړ — په خونونو واړه ملك دهندوستان (۴)

ودارا او اورنګ زیب وته حیران یم (۵) — چې یې څه چارې واقع شولې ترمیان (۶)

دحسن حسین غزا دې څوك په زړه کا — چې همه واړه په تیغ شول شهیدان (۷)

دد وی غوښې اوښکو وینو رغړولې — بې حسابه هسې خلق شو توفان (۸)

هرچې اهل ددنیا دي حال یې دا دی (۹) — که سړی دی که پېری دی که حیوان

آدم زاد په ځمکه یوبل سره وژني (۱۰) — په دریاب کې وبله غوښې خوري ماهیان

لکه غوښې چې ماهیان خوري په دریاب کې — په هوا کې هم دغه کاندي مارغان

خزنده او پرنده دي د دې دهر (۱۱) — همه واړه یو تر بل مشت وګریوان (۱۲)

مرداري ددې دنیا خو هم دغه ده — ځکه بېرته ځني ګرځي درویشان

---

(۱) د "ق، ک" چاپ او "ق" چاپ : "سره ووژل".
لوموړي مسری د "خ" په لومړۍ او دوهمه نسخه کې داسې ده : "عزیزانو به په څه وبله وژلو".

(۲) د "خ" دوهمه نسخه : "داهمه واړه تقدیر د پاك سبحان".

(۳) د "خ" لومړۍ نسخه : "چې یې زړه شي هغه کاندي په داشان".

(۴) "ق، ک" چاپ او "ق" چاپ : "شاه عالم اعظم وګوره چې یې سخاکړه — په خونونو واړه ملك دهندوستان".
د "خ" لومړۍ نسخه : "شاه عالم واعظم ګوره چې یې فساد کړ — په خونونو سره ملك دهندوستان".
د "خ" دوهمه نسخه : "شاه عالم اعظم وګوره چې یې خسا کړ — په خونونو واړه ملك دهندوستان".

(۵) "ق، ک" چاپ : "بیا دارا او اورنګ زیب وته حیران یم".
د "خ" لومړۍ نسخه : "ودارا واورنګ زیب وته که ګورې".
د "خ" دوهمه نسخه : "ودارا واورنګ زیب ته دې څوك ګورې".

(۶) "ق" چاپ : "چې یې څه چارې واقع شوې پېدا ن".
د "خ" لومړۍ او دوهمه نسخه : "چې یې څه چارې واقع شوې تردامیان".

(۷) د "خ" لومړۍ او دوهمه نسخه : "چې همه په توره ومړه شهیدان".

(۸) دابیت د "خ" په لومړۍ نسخه کې نشته او دوهمه نسخه کې داسې راغلی دی : "دوه غابني او بښ یې په وینو رغړولو — هسې بې حساب خلق شوله تویان".

(۹) د "خ" دوهمه نسخه : "هرچې آل ددې دنیا دی حال یې دادی".

(۱۰) د "خ" لومړۍ او دوهمه نسخه : "آدم زاد په مخ د ځمکې وبله وژني".

(۱۱) د "خ" لومړۍ او دوهمه نسخه : "خزنده که پرنده دی ددې دهر".

(۱۲) د "خ" لومړۍ نسخه : "همګې دي وبله مشت وګریبان".
د "خ" دوهمه نسخه : "همګې دي واړه مشت وپه ګریوان".

۱۴۹ — ۱۷۲۵

مکاري د زماني څه هومره نه ده
چې رحمان يې چاته وکاندي بيان (۱)

دنيا دار د دنيا کار کا زه د دين — خوانين زما په ملك دي خوشه چين (۲)

هيڅ کم نه دی تر سپين مخيو دلبرانو — بلکه سره دی زما شعر نمکين (۳)

مراد له تورو سپينو واړه د لبري ده — موقوف نه دی دغه (٤) کار په تورو سپين

چې رنگين رنگين مضمون پرې کښلی نه وي — څه په کار دی د بياض ورق رنگين (۵)

مرتبه د سليمان چې چا له ورشي (۶) — هيڅ پوره نيمگړی نه دی په نگين

خوند په خوله دی نه په څښتنه نه په خواړه دی (۷) — آب و خور که د چا تلخ وي که شيرين

غرض خوب دی که په خس وي يا په خاروي (۸) — څه حاجت دی په بستر و په بالين (۹)

مصري توره هم په بد غلاف کې زنګ شي — خدای شوك مه کړه د بدانو هم نشين

۱۵۰ — ۱۷۳٤

څه عجب که په ورځ هر په شپه ما شي
د رحمان آشنا چنان دی يا چنين (۱۰)

---

(۱) د "خ" لومړی نسخه ، " چې يې زه رحمان کريم وچا ته بيان ".
د "خ" دوهمه نسخه : چې رحمان يې که و چا وته بيان ".
(۲) دا غزل په مصوره نسخه او د "پ" په دوهمه نسخه کې نشته.
(۳) د "پ" لومړی نسخه " بلکه به دی دا زما شعر نمکين".
د "خ" لومړی نسخه: " بلکه به دی زما سبز نمکين".
(٤) د "خ" لومړی نسخه : " دلسته ".
(۵) د "پ" لومړی نسخه " کار رنگين ".
(۶) د "پ" لومړی نسخه ؛ " چې خدای چالره مرتبه دسليمان ورکا ".
د "خ" لومړی نسخه : " که خدای چالره پخه دسليمان ورکه".
د "خ" دوهمه نسخه : " که خدای چالره نتيجه دسليمان ورکه".
(۷) د "پ" لومړی نسخه : "خوند په خوله دی نه په خوله نه په خواړه دی".
چاپي ديوانونو "خوند په خوله دی نه په شکمه نه په خواړه دی".
د "خ" دوهمه نسخه : "خوند په خوله په ژبه په خواړه دی".
(۸) "پ" چاپ ، د "پ پ" چاپ او "ق ، ک" چاپ : " خاوري".
(۹) د "خ" دوهمه نسخه : " څه حاجت دی د بستر و د بالين".
(۱۰) چاپي ديوانونه ، او د "خ" لومړی او دوهمه نسخه : " د رحمان اشنا چنان دی هم چنين ".

که تېرې ولو ښته شاهان او سلطانان — هېڅ نیمګړی په چا نه شو دا جهان[1]

که هزار هزار فنا شي په یو دم کې — بیا پیدا شي په یو دم کې هزاران

درفتن دآمدن حساب یې نشته — لکه بحر چې لهېږي بې پایان

یو دبل په غم نه نرم وي نه ګرم — هم دهغه زده چې وریې شي په ځان

پیغمبر غوندې صاحب تردنیا تېر شو[2] — دا دنیا یې ورانه نه شوه په هجران

چې دا هسې عالم لاندې شو ترخاورو — دچا یاد وي ما وتا غوندې سګان

که غلبیل کړم د تمامې دنیا خاورې — بیا به نه مومم دارا او شاه جهان[3]

بوی دنام و دنښان یې پاتې نه شو — چې دعوی یې کړه د نام او د نښان

که دروغ وایم ته ورشه نظر وکړه — دخپل پلار او د نیکه په ګورستان

چې یې ته په دوارو سترګو ښکلولې — ګوره څه شوې هغه خولې هغه لبان

چې مدام یې په قربان قربان بللې — اوس دې غنې دره باندې وکا چې قربان!

د رحمان وسوزان شعر ته حېران یم[4]

۱۵۱ — ۱۷۴۶

چې یې او ربل شوی نه دی په دیوان

ته چې هسې ګاه یې ترش ګاه یې خندان — له عاشق سره کینه کړې که احسان

له احواله دې چا نه زده چې به څه کړې — کله جور کله لطف کړې عیان[5]

رنځ راحت د عاشقانو واړه ته یې — دا دروغ دی که وصال دی یا هجران

هغه شونډې چې خوږې دي ترشکرو — له کنځلو یې عار نه کا عاشقان

رجوعات د ښایسته ؤ چا ته نه وي — هرګز نه وي سرکوزي دسروي شان

---

(۱) دا غزل د "پ" په نسخو او د "خ" په نیمګړې نسخه کې نشته. د "خ" په نورو قلمي نسخو کې، د "ولوښته" پر ځای "ولبښل" راغلی دی.

(۲) "ق، ک" چاپ: "محمد علیه السلام تر دنیا تېر شو".

(۳) قلمي نسخې: "که غلبیل کړې د تمامې دنیا خاورې — بیا به نه مومې دارا او شاه جهان".

(۴) "ق، ک" چاپ: "د رحمان دې سوزان شعر ته حېران یم".

(۵) د "خ" دوهمه نسخه او نیمګړې نسخه: "کله جور کله غوږي کړې عیان". او دا غزل د "پ" په نسخو کې نشته.

دغه هسې رنګ ښايست لکه چې ستا دی
نشته دا رنګه ښايست د هېڅ انسان[1]

قصد تر هسې حده ولې کړی ګل رخه
چې له ډېره نازه وژنې عاشقان

د مرېي صورت څه روغ له کاڼي نه وي
نشته کاڼي ځنې ستا د جفا توان[2]

وهرچا وته[3] چې ستا قوت رسېږي
هلته نه رسي قوت د درست جهان[4]

ستا له جوره زهره[5] نه لري چې آه کا
که کشور د عاشقانو شي وېران

خوار حيران لکه عاشق دی ستا له درده
خدای دې هېڅوک هسې نه کا خوار حيران[6]

لکه ډېر وايي د وصل راحتونه
دغه هسې د فرقت دی سخت زندان

د رخسار نښې دې واره د خورشيد دي
چې يې درست جهان له نوره دی روښان

له هوسه دې هر ګل کړه خندا شوه
چې يې وليد ستا د حسن ګلستان

کله وي چې نصيحت کاندي عاشق ته
که له حسنه دې آګاه شي زاهدان[7]

رنګ د روی دې لري رنګ د سرو ګلونو
توري ځنې دې ښا خونه د ريحان

سياهي د نوي خط دې هسې زيب کا
لکه ښکلي واره توري د قرآن

وکوهي ته چې لغزش کا کل خطر وي
کل خيريت[8] دی کوهي ستا د زنخدان

که د درو تجلي ده ډېره ډېره
د رتا ريک شي چې ظاهر شي ستا دندان

ته سلطان د ښايسته وې د لبره[9]
دا نور واره ښايسته دې نوکران

---

(۱) دا بيت د "خ" په لومړۍ نسخه کې نشته.
(۲) دا بيت په "پ" چاپ، "ق" چاپ او "ق، ک" چاپ کې نشته، د "خ" په قلمي نسخه کې د "مرېي" پر ځای "سوري" راغلی دی.
(۳) په قلمي نسخه کې "وهرکار وته" راغلی دی.
(٤) د "خ" په لومړۍ نسخه کې "شاه جهان" راغلی دی.
(۵) د "خ" په دوهمه نسخه کې "چاره نه لري" راغلی دی.
(٦) دا بيت د "خ" په لومړۍ نسخه او مصوره نسخه کې نشته.
(۷) دا بيت او ورپسې دوه بيته د "خ" په مصوره نسخه کې نشته.
(۸) "ق، ک" چاپ کې "خطر" راغلی دی.
(۹) د "خ" دوهمه نسخه کې "دا وادره" راغلی دی.

که د انور ښایسته ستوري ویل کېږي — ته خورشید غوندې صورت لرې عیان[1]

له هر چا چې اورېده شي دغه وایي — چې ښایست دې زره نه لري نقصان

درو لعل شو ویل د ر خمان ځکه[2]

۱۵۲ — ۱۷۶۹

چې دې ستا د لعلو وشونډو وشو ګویان

چېرته د یار شونډې چېرته غم د دل وجان — چېرته کمتی لال او چېرته لعل د بدخشان

پاک ومنزه دی عشق د نفس له خاصیته — چېرته چاه د ګېډې چېرته چاه د زنخدان

لږ تفاوت نه دی د رندی او د زاهدی — چېرته ځلمي جونه چېرته کونډې یتیمان

واړه بې وقوف دي که څوک دین په دنیا پلوري — چېرته پنځه ورځې چېرته عمر جاودان

زار شه د هوا وحرص خیال تر قناعته — چېرته ملک د مصر چېرته ده د غلامان

نه شي د ملنګو د خانانو سره کلی[3]

۱۵۳ — ۱۷۷۵

چېرته عزیز خان چېرته ملنګ عبدالرحمن

فراموش مې دی د ستا په مینه ځان — ځان لا څه دی بلکه عمر جاودان[4]

لکه زه چې ستا د درپه خاورو خوښ یم — هومره عیش وطرب نه لري شاهان

لکه زه چې ستا د غم پېنې وبنه اخلم — هومره پېنې اخستی نه شي پهلوان[5]

هسې بې سروسامان یم ستا په عشق کې — چې آګاه نه یم په سراو په سامان

هسې بې شرابو مست یم ستا په مینه — چې خبر نه یم په ځمکه په آسمان

دا به څرنګ شي چې ته د کال وعده کړې — په ما نه تېرېږي بې تا یو زمان

---

(۱) دا بیت د "خ" په لومړۍ نسخه کې نشته ، په "پ" چاپ ، ق، چاپ ، "ق، ک" چاپ ، د "خ" د دوهمې نسخه او ننګرهاري نسخه کې "روښان" او مصور نسخه کې "تابان" راغلی دی.

(۲) قلمي نسخې : " تر و ویل د رحمان درو لعل شو، ځکه".

(۳) چاپي دیوانونه : " نه شي د خانانو د ملنګو سره کلی". د "خ" په لومړۍ نسخه کې "وبله کلی" راغلی دی.

(۴) دا غزل د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته، په نورو قلمي نسخو کې " عیش جاودان" راغلی دی.

(۵) دا بیت د "خ" په ننګرهاري نسخه کې نشته ، په "ق، ک" چاپ کې " د سر پېنې وبنه" راغلی دی.

تمامي عمر دستا په طلب ورک یم — لټوم دې په هر ښهر په بیابان

کہ له دره بې شرمې کړې پرې دې ته (۱) — د پر مین دی ستا پر مخ عبدالرحمان

١٥٤ — ١٧٨٣

خوبه شمېرم زه شپې د هجران — هومره د بر دې لکه ریګ د بیابان (۲)

د سرې د دښمنۍ توان مې نه شو — خدای را پېښه دښمني کړه د آسمان

لکه خوک چې د اوښ بار په مېږي کېږدي — هسې زه یم په خپل غم (۳) پورې ناتوان

لکه اور د بېلتانه چې په ما اوري (۴) — چالبدلی ګنه اور دی په داشان

د یار غم به مې هغه سړې په شمار کړي (۵) — چې شمېرلي بې وېښته وي د خپل ځان

که خوک والي حال دې څه دی په هجران کې — په خاطر دې تصور کا د وزخیان

ناقرار زړه (۶) مې د یار په هوا والووت — تش صورت مې په ځای پاتې شو پرېشان (۷)

د یار یاد مې (۸) زړه په غېږ کې سترګو یو وړ — لکه بت په دېوال کښلی یم حیران

ماوې زړه د مومن عرش دی خبر نه وم — چې به عشق زما دا عرش (۹) کاندې ویران

عاشقۍ تر هغه حده بې هوش کړم — چې نه هوښ لرم نه صبر نه سامان

لور د لوره د تهمت په غونډه ویشت شم — ملامت را باندې والي درست جهان

چې د احال ور باندې نه وي ورغلی — په ویل به څه ګروهېږي د رحمان

١٥٥ — ١٧٩٥

---

(۱) قلمي نسخې : "چې له دره بې شرمې ګناه بې کوم دی — د پر دستا په مخ مین دی یو رحمان". (۲) قلمي نسخې : "خوبه شمېرم — درد غمونه د هجران — هومره د بر دې لکه شګې د بیابان" . دا غزل د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته.

(۳) "ق ، ک" چاپ : "په خپل یار پورې ناتوان" راغلی دی. (۴) د "خ" په قلمي نسخه کې داسې دی : "لکه غم د بېلتانه چې په ما اوري".
د "ب" لومړی نسخه : "لکه ستا د بېلتانه کاڼي په ما اوري". (۵) قلمي نسخې : "زما غم به د هغه سړي په شمار وي".

(۶) په "پ" چاپ او "پ پ" چاپ کې "روح" راغلی دی.

(۷) په چاپي دیوانونو ، د "خ" لومړی نسخه او نیمګړې نسخه کې "حیران" راغلی دی.

(۸) په "پ" چاپ ، "پ پ" چاپ کې "دم" ، "ق ، ک" چاپ کې "غم" راغلی دی او دا بیت د "خ" په نسخو کې نشته . دوهمه مسره یې په چاپي دیوانونو کې داسې ده:
"لکه بت چې په دېوال کې وي حیران".

(۹) د "پ" په لومړۍ نسخه کې "زړه" راغلی دی.

ورکه عاشقي شه هم يې نوم هم يې نښان — زه يې هسې خوار کړم لکه شګې(۱) د بيابان

زه د عشق په کار کې تېر تر سره هم تر مال يم(۲) — کشکې که په سر مې دا مشکل کا خدای آسان

کښېوتم د عشق په آدم خور ورګرداب نو — نه په وړاندې تللی شم نه په بېرته ګرېزان

رنځ د عاشقۍ چې زه ظاهر کړم و طبيب ته — هېڅ ويلی نه شي طبيبان او حکيمان

شم ياران د دنيا واړه ګدايان دي — زه د عشق په اور کې سوی سرګردان(۳)

نه مې حال وچا ته وويې چې داخه دی — عالم واړه په فکرت تللي حيران

د عشق اور را باندې بل شو خدای خبر دی — اوس رسوا شوم په عالم کې چاک ګرېوان

راشه عاشقي مه کړه رحمانه اوکه نه وي
تل به په اورنا ست يې که بادشاه يې د جهان

۱۵۶ — ۱۸۰۳

خان سلطان د دې جهان — آخر د رومي خوار حېران

د قضا په حبل تړلی — په مثال د بنديوان

شېرين ځان ور ځنه د رومي — نه يې زور رسي نه توان

که ښندي مال و ملک واړه — هېڅ رنګ نه مومي امان

نه يې مل نه يې حامي وي — درد يې ورشي په څپل ځان

درمانده ورته ولاړ وي — وزيران او وکيلان(٤)

هېڅ دارو يې کړلی نه شي — کوز کوز ګوري حکيمان

---

(۱) په چاپي ديوانونو کې "خاک" او د "خ" په دوهمه نسخه کې "لوټه" راغلی دی.

(۲) د "پ" لومړۍ نسخه: " زه د عشق په کار کې تېر تر سر و مال يم ".
د "خ" لومړۍ نسخه: " زه د عشق په کار د بار کې تر سر تېر يم ".
د "خ" دوهمه نسخه: " زه د عشق په کار کې تر سر و تر مال تېر يم ".
مصوره نسخه: " زه د عشق په کار و زار کې تر سر تېر يم ".
نيمګړې نسخه: " زه د عشق په کار کې تر سر تېر يم بادي څه کړم ".

(۳) دا بيت او ورپسې دوه بيتونه د "خ" له دريمې قلمي نسخې نه نقل شول. او په وزن کې له اصل غزل سره برابر نه برېښي.

(٤) د "خ" په نيمګړې نسخه کې " اميران " راغلی دی.

بادشاهي يې پاتې کېږي ... زره يې چوي په ارمان

چې يې روح له تنه بېل شي ... نور پرې ژاړي فرزندان

يو ساعت ورباندې ژاړي ... آخر صبر کا خوا ران

بيا يې غسل لره واخلي ... په تخته باندې عريان

په جامو يې هوسېږي[1] ... مرده شوی او غسالان

چې له قبره يې بازگشت شي[2] ... مال يې يوسي ميراثيان

په مسند يې دعوی کاندي ... هم دوستان هم دښمنان

سهيلې به يې تالاکا[3] ... هغه خپل مصاحبان

نام نښان يې هسې ورک شي ... لکه عين بې نښان

نه يې نقش پاتې کېږي ... نه يې اسم په جهان[4]

دا دنيا آب روان دی ... نه شي نقش په آب روان

که هزار رنگ ابادي کا[5] ... نهايت خانه ويران

لکه باد هسې به تېر شي ... کاروبار ددې دوران[6]

۱۸۲٤ — دا بيان دور و دراز و / کوتاه قطع کړ رحمان — ۱۵۷

---

(۱) په چاپي ديوانونو کی "خوشاليږي" راغلی دی.

(۲) په قلمي نسخو کی "بازگشت کا" راغلی دی.

(۳) چاپي ديوانونه : "سهيله يې تالا کاندي".
د "خ" دوهمه نسخه : "سهيله دده تالا که".
مصوره نسخه : "سهيله يې هم تالا که".

(٤) په قلمي نسخو کی "زمان" راغلی دی.

(۵) د "پ" لومړۍ نسخه : "که ابادي کړه هزار رنګه".
د "خ" دوهمه نسخه او نيمګړې نسخه : "که هزار آباداني که".

(٦) چاپي ديوانونه : "هغه دور هغه دوران".
د "خ" په قلمي نسخو کی : "هغه دور د دوران".

کهٔ ښځوا تر آشنائۍ وی بېلتون[1] | ما به نه وُ له چاکرې پیوستون
چې مې یار په سترګو ولید ما ګومان کړ | چې هم دا ساعت مې بیا موندهٔ ژوندون
په نیمګړې داد خبر د فلك نه وم[2] | چې به بیا شي په ستنه راڅخه ستون
نن ساعت چې له دې حاله خبردار شوم | سکه تر نن ورځې بهتره وه پرون
هر زحمت چې پر ما راشي شکرانه کړم[3] | عاشقي تر هسې حده کړم زبون
اوس که لاس یې بله مړم هېڅ سود نه کا | هغه چار چې مې له لاسه شوه بېرون
لکه لمر په څلورم آسمان ختلې يي | محبت یې له حجابه کړم بېرون[4]
چا چې رخه له سینه مخه را کوله | اوس دې سوړ په نیلي ګرځې د ګردون
په داهسې حال کې څرنګ صبوري شي | چې دښمن دې کامراني کا ته محزون
که په صبر سره تور کاڼي لعل کېږي | لعل یې مه کړې په داهسې شواخون[5]
د دنیا هوس په ما باندې حرام شو | د هوسۍ هسې کړم شپه په مېږتون[6]
دریغه یو ځله هغه زما په حال شوی | چې وما وته لولوي صبر و سکون

۱۵۸

ورحمان ته ځان هغه ګړی آسمان شي
چې د ستا په غم کې[7] ناست وي سرنګون

۱۸۳۷

---

(۱) دا غزل د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته ، د پېښور په چاپي دیوانونو کې لومړۍ مسرۍ داسې ده : " که ښځوا له آشنائۍ نه وی بېلتون".
(۲) د "پ" لومړۍ نسخه : " په نیمګړې داد فلك د خبر نه یم".
(۳) دا بیت د "خ" په نیمګړې نسخه کې نشته ، په نورو قلمي نسخو کې " شکرانه " راغلی دی.
(٤) دا بیت په قلمي نسخو کې نشته.
(۵) په چاپي دیوانونو اونورو قلمي نسخو کې " ځیګرخون " راغلی دی.
(٦) دا بیت په قلمي نسخو کې نشته.
(۷) د "خ" په لومړۍ نسخه ، نیمګړې نسخه او مصوره نسخه کې "چې د یار په غم کې" راغلی دی.

# ۹

هيڅوك مه شه گرفتار د تورو زلفو — مه اسير شه (۱) په كفار د تورو زلفو

هم په شان د تورو زلفو به پريشان وي — هر چې كاندي انتظار د تورو زلفو

د محشر په عالم كله قراري وي (۲) — څوك به څه غواړي قرار د تورو زلفو

څو يې صبح (۳) د قيامت دميده نه شي — ورځ به نه شي شب تار د تورو زلفو

مگر شمع (٤) د سپين مخ شي باندې بله — گنه نشته بل انوار د تورو زلفو

تار په تار كا د عاشق د خاطر خونه — چې حلقې شي تار په تار د تورو زلفو (۵)

چې تمام جهان يې نښتى دى په دام كې — څوك به څه كاندي انكار د تورو زلفو (۶)

زه له كومه، يوه كمنده سره وكا ن م — كمند ونه دي هزار (۷) د تورو زلفو

هومره زړونه يې پيلي په هر تار دي (۸) — چې تسبيح كړه خداى زنار د تورو زلفو

په تندي د محتسب كا دره ماته — چې پرې راشي دره دار د تورو زلفو (۹)

---

(۱) د "خ" لومړۍ او دوهمه نسخه : "اسير مه شه"

(۲) چاپي ديوانونه او د "خ" لومړۍ نسخه : "د محشر عالم به كله په قرار وي"، خو "پ" چاپ كې د "كله" پرځاى "څرنگ" راغلى دى.

(۳) د "پ" نسخې او د "خ" دوهمه نسخه : "ولى صبح".

(٤) مصوره نسخه : "ككه".

(۵) د "خ" دوهمه نسخه : "چې حلقه شي خلقه مار د تورو زلفو". او چاپي ديوانونه، مصوره نسخه او د "خ" لومړۍ نسخه كې "چې حلقه شي" راغلى دى.

(۶) "ق، ك" چاپ او "ق" چاپ : "څه به كاندي څوك انكار در ورښانو".

(۷) د "پ پ" چاپ : "بسيار".

(۸) د "خ" لومړۍ نسخه : "هومره زړونه يې پيلي هر تار دي".

(۹) دا بيت د "خ" په دوهمه نسخه كې نشته.

ملک د هند او د حبش یې واړه زېر کړ[۱] چې پیدا شو شهر یار د تورو زلفو
سامارانو غونډې ګرځي په ګنجونو[۲] نه شي هېڅ په زړه کې ډار د تورو زلفو
که بل مار چیچل په لاسو یا په پښو کا[۳] په زړه خوله لګوي مار د تورو زلفو
د رحمان ترقلم مشک و عنبر ووریږي
چې آغاز یې کړ اشعار د تورو زلفو

۱۵۶

1851

اوښکې نه لري حساب زما د سترګو بې حسابه شو سیلاب زما د سترګو
سیاهي مې همه واړه سفېدي شوه هسې پرېولې شو کتاب زما د سترګو
که مې سره دي که سپین دي که مې تور دي[٤] اوښکو یووړ هر اسباب زما د سترګو
چې رخسار د هغه یار را څخه پټ شو حبطه شو آب و تاب زما د سترګو[۵]
چې ګوزار مې په دا ګرمو اوښکو نه شو[٦] مګر کاڼي دي حباب زما د سترګو[۷]
که نور خلق د آفتاب په رڼا زیست کا[۸] مخ د ترکو دی له افتاب زما د سترګو
ما یې خیال لره ابلق د سترګو زین کړ قدم نه ږدي په رکاب زما د سترګو

---

(۱) د "خ" دوهمه نسخه: "ملک د هند د حبش واړه زېر زبر کړ".
(۲) د "پ" پر لومړۍ نسخه کې "ملکو نو" راغلی دی.
(۳) "ق ک" چاپ، "ق" چاپ او د "خ" دوهمه نسخه: "که بل مار چیچل په لاسو په پښو کاندی".
مصوره نسخه: "د بل مار چیچل پر لاس و یا په پښو وي".
(٤) دا بیت په مصوره نسخه کې نشته لومړۍ مسرۍ یې د "پ" په لومړۍ نسخه کې داسې ده: "که مې سره وي که مې تور که مې سپین دي".
د "خ" لومړۍ نسخه: "که مې سره دي که یې سپین دي که یې تور دي".
د "خ" دوهمه نسخه: که مې سره وو که مې تور وو که مې سپین وو".
(۵) "پ" چاپ او د "پ پ" چاپ: "چې رخسار د هغه یار را څخه پټ شي حبطه شي آب و تاب زما د سترګو".
"ق ک" چاپ: "پاتې نه شو آب و تاب زما د سترګو".
"ق" چاپ: "حیف چې پاتې شي آب و تاب زما د سترګو".
د "خ" دوهمه نسخه: "آب و تر شو آب و تاب زما د سترګو".
(٦) چاپي دیوانونه، مصوره نسخه، او د "خ" لومړۍ نسخه: چې ګوزار یې په دا ګرمو اوښکو نه شي".
د "خ" دوهمه نسخه: "چې ګذار مې په دا ګرمو اوښکو نه شي.
(۷) مصوره نسخه او د "خ" دوهمه نسخه: "مګر کاڼي شه حباب زما د سترګو".
(۸) د "خ" دوهمه نسخه: "که نور خلک د افتاب په مخ کې ګرځي".

چې مې(۱) نقش په زړه سرې شونډې یار شوې — کان د لعلو شو ګرداب زما د سترګو

لکه تښتي وحشیان له مردمانو(۲) — هسې وتښتېده خواب زما د سترګو

۱۶۰

ما رحمان چې سترګې روڼې په خپل یار کړې(۳)
اوس محال شو(٤) اجتناب زما د سترګو

۱۸٦۱

هر ساعت زما د غوږ په تا وولو — د فلک لاسونه شنه شوه تر ځنګلو

هو من هم د بېلتانه را باندې را غی(۵) — چې حساب یې نه په خوله شي نه په ګنیلو

هغه سترګې چې نرګس وې هم بادام وې — تېرې تورې شوې زما په قتلولو

هغه شونډې چې شیرینې وې تر قندو — ما هېڅ فیض ترې بیا نه موند بې سکنځلو(٦)

دا کاڼه کاڼه باڼه او کږې وروځې — نور لګه نه کا بې کږو وکږو وهلو(۷)

په شپه نو کې د عاشق په وینو سرې کا — سبا یوړې کا نکریزي په منګلو

دا زما د قاتل لاس دی نه پوهېږم — که تر باغ وتلی خاښ دی د سروګلو

دریغه مرګ یې په دنیا کې نیمه خوا شوې — ښایسته غوټۍ یې پرې یښتې د ګلو(۸)

۱٦۱

هسې بند شو په کمند د تورو زلفو
چې حیران یم د رحمان په خلاصولو(۹)

۱۸۷۰

---

(۱) دا بیت د "خ" په لومړۍ نسخه کې نشته، مصوره نسخه : "چې یې نقش".

(۲) د "ب پ" چاپ : "لکه وتښتي وحشیان له مردمانو".
"ق، ک" چاپ : "لکه تښتي چې وحشیان له مردمانو".
مصوره نسخه : "لکه تیښتند وحشیان که له مردمانو".

(۳) د "خ" لومړۍ نسخه : "ما رحمان چې په سترګو روڼې په خپل یار کړ".

(٤) چاپي دیوانونه، مصوره نسخه او د "خ" دوهمه نسخه کې "محال دی" راغلی دی.

(۵) په مصوره نسخه کې "اوري" راغلی دی.

(٦) د "خ" لومړۍ نسخه او مصوره نسخه : "لو رڅه نه کړي یې کږ ووږ د ویلو".

(۷) دا بیت په مصوره نسخه او د "خ" په لومړۍ نسخه کې نشته.

(۸) دا بیت په قلمي نسخو کې نشته.

(۹) د "خ" دوهمه نسخه : "حق حیران یم زه رحمان په خلاصولو".

تاچې رنګ د میو ورکړ ولبانو — او دې پورې کړ په کور د میخوارانو

چې دې جوړه کړه لینده د کږو وروځو — ښو به ښکار کړې په حرم د غزالانو [1]

چې دې اسره د څڼو په زلفو کېښود — معطر دې کړ دماغ د دیوانګانو

په رخسار چې دې د خط غبار ښکاره شو [2] — سربلنده شوه خرقه د خاکسارانو

کانه غشي واړه باړته ځي له ښې — زه اداکرم ستا کږو وکږو [3] مژګانو

چې زما دیار تر منځه جدايي کا — کاني پرېوځي په خونه د بدانو [4]

که مې چېرې خواست د خدای په درقبلېږي — سوال به زه د عمر کړم د مهوشانو

سور پېزوان دې په سروشونډو هسې ښه کا — لکه جیم په قلم ښکلی کا تبانو

د سروټیک دې شهزاده په جبین پروت دی — شینکی خال دې محاصل په بندیوانو

د واړه لبچې دې وکښلې مصرکه توري — در پوهېږم سر به پرې کړې د خوارانو

<table>
<tr><td>۱۸۸۱</td><td>ستا له غمه په ځان زه د رحمان سوځي<br>لکه شمع په زيارت د شهيدانو</td><td>۱٦۲</td></tr>
</table>

چې کوتلی وي په تېغ ستا د چشمانو — سرحلقه دی د جمله و شهیدانو

ستا وصال د سر په بیع یو دی دلبره — ژوندي نه مومي جنت بې مرد ګانو

د پېری سوری عاقل لره ضرور دی — دا مقام دی د سرتورو دیوانګانو

په سرپوښ محل [5] کې نور د آفتاب نه وي — دا دولت دی نازل شوی په ړندګیانو

هم په دا زماله سترګو وینې څاڅي — چې دې نقش پکې رنګ دی دلبانو

---

(۱) قلمي نسخې : "خوب دې زوږ کړې د حرم په غزالانو".

(۲) د "خ" په دوهمه نسخه کې "پیدا شو" راغلی دی.

(۳) د "خ" لومړۍ نسخه : "زه اداکړم ستاکږو وږو ومژګانو".
د "خ" دوهمه نسخه او مصوره نسخه : "زه اداکړم ستاکږو وکږو ومژګانو".
او د "پ" لومړۍ نسخه : "زه اداکړم ستاکږو وروځو مژګانو".

(٤) دا بیت او ورپسې څلور بیتونه په قلمي نسخو کې نشته.

(٥) د "خ" په دوهمه نسخه کې "بازار" راغلی دی.

مشکین خال دې په سرو لبو هسې ښکا | لکه مهر په مخزن د درمجانو
---|---

۱۶۳ ماسوالله یاره هر چې دي رامح نه  ۱۸۸۸

وایه کفر دی په دین د عاشقانو

| | |
|---|---|
| که نظر کا څوك په کار د درویشانو | خود به ووینې وقار د درویشانو |
| په دغه لاره به ورشې خدای رسول ته(۱) | که څوك یون کا ندې په لار د درویشانو |
| هر گفتار به یې د خدای په دربار قبول وي(۲) | چې قبول یې(۳) وي گفتار د درویشانو |
| په یوه قدم تر عرشه پورې رسي | مالبدلی دی رفتار د درویشانو |
| هسې گرم بازار بل په جهان نشته | لکه گرم دی بازار د درویشانو |
| هومره خلق یې زیارت(۴) کا پس له مرگه | چې بازار وي په مزار د درویشانو |
| بادشاهان د دنیا واړه پرې پرانته دي(۵) | لکه خاورې په دربار د درویشانو |
| هر بهار لره خزان په جهان شته دی | خزان نه لري بهار د درویشانو |
| د جنت د باغ گلونه به یې هېر شي(۶) | که څوك ووینې گلزار د درویشانو |
| چې دنیا یې کړه د خدای د پاره ترکه | صد رحمت شه په روزگار د درویشانو |
| د قارون و حال ته گوره حال یې څه شو | رحمان شه مه کوه انکار د درویشانو |
| په هر چا چې د غضب لینده کا سنخه(۷) | خطا نه دره وي گوزار د درویشانو |

---

(۱) دا بیت په مصوره نسخه کې نشته د "پ" په نسخه او د "خ" په لومړۍ نسخه کې دا مسری داسې ده: "په دغې لارې به ورشې و خدای ته".

(۲) "ق، ک" چاپ، "ق" چاپ او د "خ" لومړۍ نسخه او مصوره نسخه کې "قبول شي" راغلي دي.

(۳) "پ" چاپ، "ق، ک" چاپ، "ق" چاپ کې "چې قبول یې کړه" راغلي دي.

(۴) قلمي نسخه: "طواف".

(۵) چاپي دیوانونه او د "خ" لومړۍ نسخه: "بادشاهان د دې دنیا واړه پرانته دي".
د "خ" دوهمه نسخه: "بادشاهان د دنیا ورته پرانته دي".
مصوره نسخه: "بادشاهان د دنیا واړه پرانته دي".

(۶) "ق، ک" چاپ: "به دې هېر شي". د "خ" لومړۍ نسخه: "به یې هېر دي".

(۷) په قلمي نسخو او د "ق، ک" چاپ کې "غوکه"، د "پ" چاپ او "ق" چاپ کې "کشته" راغلي دي.

## درست دیوان د ناصح بابا زار تر دا غزل[1] شه
## چې بیان یې کړ کردار د درویشانو

۱۶۴ — ۱۹۰۱

دېښ وان څمې دي زېب کا پر لبانو — تورې زلفې دې ځنځير د عاشقانو[2]

دا سور تیک دې شهزاده پر اوربل پروت دی — شینکی خال دې معاني د بند یوانو

دواړه لب دې ښایسته تر سرو یاقوتو — شرموله ده زلجې ستا د غندانو

دوه رخساره دې دوه سېب د سمرقند دي — پر سینه دې دوه نارنج د رنځورانو

دواړه لیچې دې کړې کښلې مصرۍ تورې — د رپوهېږم سر به غوڅ کړې د خوارانو[*]

تورې وروځې دې کړې پر جبین (زیب کا)[3] — لکه جیم پر کاغذ کښلی کاتبانو

د پیرۍ سیوری عاقل له ضرور دی — دا مقام دی د سرتورو ملنګانو[*]

ستا وصال د سر پر بیکریو دی دلبره — ژوندي نه موهي جنت بې مردګانو[*]

د لیلی د کوڅې سپی پر مجنون ښېښر شو — په بار بار یې ښکلاوه پر دوو عینانو

## ما سوا الله یاره هرچې وي ناصح نه وه[*]
## واړه کفر دی په دین د عاشقانو

۱۶۵ — ۱۹۱۱

کله څو په صحرا سرشوم هم په کلیو — بیا مې نه موند هیڅ خبر د هغو تللیو

خدای زده کومې خواته لاړل حال یې څوری — خبر نه یم د ګرنګ له پریوتلیو[4]

لا دې غم مې زړه چوي که څوک خبر وي[5] — لړ په ما هم خبر وکړې څخه ای ساتلیو

پس له دې به چېرته دروم ځای موکوم دی[6] — راته وایې د دنیا په سرای راغلیو

---

(۱) مصوره نسخه : "تر یو غزل شه".

(۲) دا غزل د "خ" له دریمې قلمي نسخې نه نقل شو.

(۳) په قلمي نسخه کې "پر جبین پروت" راغلی دی. (*) دا شعر جیتونه په څلکینیو غزلو کې تکرار راغلي دي.

(٤) دا بیت په مصوره نسخه او د "خ" په لومړۍ نسخه کې نشته.

(۵) د "خ" دوهمه نسخه کې "که څوک خبر اشي" او په مصوره نسخه کې "که څوک خبر یې ی" راغلی دی.

(۶) دریمې نسخې او د "خ" لومړۍ نسخه : "پس له دې به چېرته درومو ځای موکوم دی". مصوره نسخه : "پس له دې به چېرته دروم ځای مې کوم دی". د "خ" لومړۍ نسخه : "پس له دې به چېرته دروم ځای دی کوم دی".

ګوندې ستاسو په مخ زه هم بښنده شم[۱] — لاس د خدای و در ته نيسی ، پسند ليو

هيڅ خبر يې په هيڅ لوري مو ندی نه شي — که يې غواړې شپه او ورځ په سپرو پليو

له نا پوهه خلکه نه کيږي پوښتنـــــــــه — زه و تاسې و ته وايم پوهيد ليو[۲]

خبر نه يم چې په باب مې کښلي څه دي؟ — زه رحمان په اند بښنه يم له دې ښکليو

۱۹۱۹ — ۱۹۶

ه

د دلبرو په درګاه — نه رحمت[۳] لرم نه جاه

غوڅوي مې د زړه ولې[٤] — د چشمانو په نګاه

هو مره قدر مې پرې نشته[٥] — لکه قدر د ګياه

يو نظر[٦] را باندې نه کا — از براى عند الله

هيڅ له ځانه خبر نه يم — چې يې څه لرم ګناه[۷]

که له غمه يې سر پټ کړم — بل سر نه لرم پناه[۸]

د رحمان په خبر و مه شه[۹] — حال احوال د چا تباه

۱۹۲۶ — ۱۹۷

---

(۱) چاپي ديوانونه او د "خ" قلمي نسخې : " ګوندې ستاسو په مخ زه هم پسند يده شم".

(۲) دا دوه بيته د "خ" له دغې نسخې نه نقل شول او دوهم بيت د "ړودن" په مجموعه کې هم شته.

(۳) د "خ" دوهمه نسخه : "عزت"

(٤) د "خ" دوهمه نسخه : "د زړه دينې"

(۵) چاپي ديوانونه : "هم نشته"

(۶) د "خ" لومړۍ نسخه : " تر و نظر را باندې نه کا".

(۷) د "پ پ" چاپ او د "خ" دوهمه نسخه : "چې زه څه لرم ګناه". "ق ، ک" چاپ : "چې يې زه لرم ګناه".

(۸) دا بيت په مصوره نسخه کې نشته.

(۹) چاپي ديوانونه او دوی قلمي نسخې : "د رحمان په خير دې نه شي".

ورځ دې تېره په شومه کړه شپه له خوابه — خدای به کله یاد وې خانه خرابه

په شتاب شتاب دې تلل دي که پوهېږې — غافل مه شه د دې عمر له شتابه

دلته دم او قدم دواړه په حساب دي — پل غلط له لارې مه ږده بې حسابه

راستولی خدای حساب دی په کتاب کې — خبر زده کړه له حسابه له کتابه (۱)

ته وخپلو نېکو بدو ته نظر کړه — چې بدي دې خوښېږي کړې له ثوابه (۲)

په هغه جهان به خړ نګ ځواب وکړې (۳) — چې په دا جهان عاجز یې له جوابه

عاقبت به تورو خاورو له درومې — ځان به خوښنه یې په ګوته له ترابه (۴)

زه دې پېژنم په اصل کې تراب یې — ته چې ځان ښنه یې په ګوتو له ترابه (۵)

خو په دا جهان او به له تندې نه شې — په قیامت به دې سینه نه شي سېرابه

چې آفتاب یو نېزه شي بیا به خړ کړې (۶) — چې نن (۷) سیوری له تښتې له آفتابه

د کاغذ په کشتۍ سیر کوې رحمانه — د کشتۍ به دې مرګ کاندي غرقابه (۸)

۱۹۸

په ازاد د چا راضي مرشد کامل نه شي
که خلاصې په قیامت غواړې له عذابه

۱۹۳۸

په ورځ ناست یې بې طلبه (۹) — په شپه خوب کړې بې ادبه

لاس دې وخاته له دواړو — هم له روزه هم له شبه

---

(۱) دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته.

(۲) قلمي نسخې: "ته دا خپل نېك و بد وتله محنپله چې ثواب دې خوښېږي کاله عذابه".

(۳) د "خ" لومړۍ نسخه او مصوره نسخه: "په هغه جهان به خړنګه ځواب کړې". د "خ" دوهمه نسخه: "په هغه جهان به خړنګ ته ځواب کړې".

(٤) دا بیت په قلمي نسخو کې نشته.

(٥) دا بیت او ورپسې بیت له قلمي نسخې نه نقل شو.

(٦) قلمي نسخې: "تو د به خړ کړې".

(۷) چاپي دیوانونه: "او س چې".

(۸) دا بیت د "خ" په دوو والو نسخو کې نشته. لومړی مسرۍ یې په چاپي دیوانو کې داسې ده: "د کاغذ په کشتۍ مسیل به کړې تو کومه".

(۹) په چاپي دیوانو او د "خ" لومړۍ نسخه کې "بې مطلبه" راغلی دی.

نه دلي شوي نه هوري شوي — ترمنځ (١) ورك (٢) شوي مذبذبه

عبادت دي په ريا شو — په مذهب کي بد مذهبه (٣)

مدام بندي په سبب کي — بي خبر له مسببه

واړه تشي شرومي شاړي — خبر نه شوي له مطلبه

ته او ده وربانديې سور (٤) يې — آس دي يون کا بي جلبه

تن دي تش په توره وسو — آس دي داغ کړ بي منصبه (٥)

دراکب چي والك پردى شي — سود يې څه وي له مرکبه

له ژوندیو سره ناسته (٦) — له مړو ده ځي مرکبه

هلاك لوى شوي په اوبو کي — اوبه نه پېژني کبه

لکه کاڼي يا کو دري — په دریاب کي تشنه لبه

ناآګاه ځان آګاه بولي (٧) — دا خبره ده عجبه (٨)

مراد له زهده معرفت دی — نه تش ځان وژل اقربه

١٦٩ — د حال شراب له عشقه / نه له کوروله عنبه (٩) — ١٩٥٣

ته شهلا (١٠) يې شکر لبه — ګل رخساره سيم غبغبه

---

(١) د "خ" دري واړه نسخې : "ترمیان".
(٢) چاپي دیوانونه : "ډوب شوي".
(٣) دا کلمه د "پ" په لومړي او د "خ" په لومړي نسخه کې "بې مذهبه" راغلې دی.
(٤) قلمي نسخې : "وربانديې ناست لې".
(٥) دا بیت په مصوره نسخه کې نشته.
(٦) په "پ" چاپ، "ق" چاپ، "ق ،ک" چاپ او د "خ" لومړی او دوهمه نسخه کې "ناست لې" او د "پ پ" چاپ کې "ناستا وې" راغلی دی.
(٧) قلمي نسخې : "ناګاه خپسرا ګاه بولې"
(٨) "ق ،ک" چاپ او "ق" چاپ : "دا خبره عجائبه".
(٩) چاپي دیوانونه : "نه د انګور نه له عنبه".
(١٠) د "پ پ" چاپ کې "شهلا" راغلی دی.

پہ نادرو کښې نادره ... پہ عجبو کښې عجبه

پہ جملہ و معشوقو کښې ... بوالعجب یې منتخبه

بې زیوره ښایسته یې[۱] ... بې ترتیبه مرتبه

دغه داد د الهٰی دی[۲] ... بې تا لاشه بې طلبه

آب حیات چې حیات بیا مونده ... ستا د شونډو له سببه[۳]

مخ دې سپین تر سپین سبا دی ... زلفې تورې تر تور شبه

ستا د مخ عرق دانه وو ... زینت راني له کوکبه[۴]

د ښایست مخې دې نشته ... تر مشرقه تر مغربه[۵]

د وصال مونده دې ګران دي ... مګر فضل شي له ربه[۶]

چې د رب فضل پرې وشي ... هغه خلاص شي له غضبه[۷]

داد دولت د خدای پہ داد دی ... مونده نه شي له نسبه[۸]

عشق څه هسې علم نه دی ... چې حاصل[۹] شي له مکتبه

مکتب حال د مذهب وایي ... عشق سیوا دی له مذهبه

د عاشق مذهب هم دا دی ... چې دم نه وي بې مطلبه[۱۰]

۱۷۰ — ستا د حسن پہ تعریف کښې ... رحمان ګونګ دی[۱۱] له ادبه — ۱۹۶۹

---

(۱) قلمی نسخې : "بې زیوره دلفریبه".

(۲) د "خ" قلمی نسخې ، " دالیو داد الهی دی".

(۳) د "خ" لومړی او دوهمه نسخه او د "پ" لومړی نسخه : "آب حیات و حیات بیا مونده ستا د لبو له سببه".

(۴) پہ پښور چاپي دیوانونو : "ستا د مخ عرق دانه ده زینت داره له کوکبه".

(۵) دا مسرۍ پہ مصوره نسخه کې داسې لوستل کېدای شي : "مګر مهر و شي له ربه".

(۶) دا بیت پہ مصوره نسخه کې نشته ، پہ نورو قلمی نسخو کې دا مسرۍ داسې ده : "مګر مهر شي له ربه".

(۷) دا بیت د "پ" پہ لومړی نسخه او د "خ" پہ لومړی نسخه کې نشته.

(۸) د "خ" لومړی نسخه کې "منصب" راغلی دی.

(۹) پہ قلمی نسخو کې "حاصلېږي" راغلی دی.

(۱۰) دا بیت پہ مصوره نسخه کې نشته ، د "خ" پہ لومړی او دوهمه نسخه کې : "یو دم نه دی بې مطلبه". پہ "ق" چاپ او "ق،ک" چاپ کې د "نه وي" پر ځای "نه دی" راغلی دی.

(۱۱) پہ چاپي دیوانونو کې "شو" او د "خ" پہ دوهمه نسخه کې "یم" راغلی دی.

په هر ذره چې د يار مينه شي غالبه — بله مينه يې هيڅ نه وي مناسبه

نورې واړه مرتبې به ورته هيڅ شي — كه خبر شي څوك له هسې مراتبه

لياقت يې هر وګړي څخه نشته — عاشقي يوه پايه ده عجايبه

د طلب له كوتاهۍ وېره وكړه(1) — كه هر څو دې لاره كوتاه ده طالبه

عشق څرګنده خزانه ده خوار هغه شو — چې څرګنده خزانه شوه ترې غايبه

غوره(2) خط د مهرويانو تر خط نشته — كه هزار رنګ كتابونه كړي كاتبه

هيڅ يې مه پوښته له فرضو له واجبو — په هغو چې عاشقي كړي خداى واجبه(3)

عاشقان تر سر و ماله يار ته تېر دي — خداى دې دا طائفه نه كاندي كاذبه(4)

## ۱۷۱ — زه ګناهګار دخپل صاحب په رضا نيست كړم — ۱۹۷۸

څه په كار دى بنده بې خپله صاحبه(5)

تا چې په دا تورو سترګو وكاته وماته — زړه دې زما تور كړله دې نوره مخلوقاته(6)

ما خو چې ته وليدې هغه ساعت مې ووې — نوره به مې مينه د زړه نه شي له تا ماته

شيخانو او زاهدانو چې نصيحت وماته وائي(7) — نه دي خبر شوي ستا د مخ له محسناته

څه وشو كه زه انګشت نما شوم ستا په مينه — لا تر ما نه خوښ يې وقاضي وهم ملاته(8)

مرم په دا چې ما له تا جار باسي هغه خلق — بيا دې په ديدن تر ما اړ مې ځغلي وخواته(9)

---

(1) د "خ" لومړۍ نسخه: "د مطلب له كوتاهۍ وېره ومه كړه".

(2) د "پ" په لومړۍ نسخه كې "ووړ" او د "خ" په دوهمه نسخه كې "بهتر" راغلى دى او هم دا بيت د "خ" په لومړۍ نسخه كې نشته.

(3) د "خ" لومړۍ نسخه: "په هغو چې د يار مينه شوه واجبه".

(4) دا بيت په مصوره نسخه كې نشته، په لوړو قلمي نسخو كې دوهمه مسرۍ داسې ده: "خداى به دا طايفه نه كاندي كاذبه".

(5) چاپي ديوانونه: "څه په كار دى دا بنده بې خپل صاحبه".

(6) ددې رديف قول بېتونه د "پ" په دوهمه او د "خ" په لومړۍ قلمي نسخه كې نه دي راغلي.

(7) دا مسرۍ په "پ" چاپ او د "خ" په دوهمه قلمي نسخه كې داسې راغلې ده: "شيخ و زاهدان چې نصيحت وائي وماته".

(8) دا مسرۍ په "پ" چاپ كې داسې راغلې ده: "لا تر ما نه خوښ يې وقاضي ته هم ملاته".
په "پ ب" چاپ كې داسې راغلې ده: "لا تر ما ته خوښ يې وقاضي وهم ملاته".
د "خ" په دوهمه قلمي نسخه كې داسې راغلې ده: "لا تر ما خو مينه كړه و قاضي او و ملاته".

(9) د "خ" په دوهمه قلمي نسخه كې داسې راغلې ده: "بيا دې په ديدن تر ما ورنې زغلي وخواته".

۱۷۲ — ۱۹۸٤

زه رحمان چې دې وینم یاره وایم خدایه خیر کړې
ګنه ښاپیرې ده دېنې آدم له ذاته (۱)

که د عقل څه اثر لرې و سر ته — لاس په سر مه شه د هر ګېدې ودرته
په نظر د هغو خاورې سره زر کېږي — هرچې نه لري نظر (۲) وسیم وزر ته
بې منته جام د زهرو ښه لې ښه دی — نه هغه چې منت بار وي (۳) وکوثر ته
د یوسف له حاله زده کړه دغه پسه — وایه حال د زمانې وبرادر ته
دې فلک و چا ته هیڅ ښه لې نه دي — چې یې نه دی راپېړ ودی ځنې بېرته
د خروار دعوی یې وګڼه ممکنه — که یې پوروي دیوې جودانې درته (٤)
که له خدایه دې وخلق وته مخ شي — له فردوسه به دې مخ شي وسقر ته
همېشه به در په درګرځې رټلی — داستوګنې ځای به بیا نه مومې چېرته (۵)

۱۷۳ — ۱۹۹۳

د دې سست بدن منت په رحمان باندې
چې له خپله دره تلی نه شي بل درته

چې نظر کړم د خوبانو ورخسار ته — حق حیران د خدای په کړه شم ودې کار ته (٦)
له دهشته یې ریبار پوښتنې نه شم (۷) — خدای زده څه به یې ویلي وي ریبار ته
خلوتیان لکه برده پکې خرڅېږي — غږ یې نه خېږي د حسن وبازار ته

---

(۱) دا بیت په "ب" چاپ کې داسې راغلی دی: "زه رحمان چې یار ووینم وایم خدایه خیر کړې ګنه ښاپیرې ده دېنې آدم له ذاته".
په "پ پ" چاپ کې دا بیت داسې راغلی دی: "زه رحمان چې ووینم یار وایم خدایه خیر کړې ګنه ښاپیرې ده دېنې آدم له ذاته".
د "خ" په دوهمه قلمي نسخه کې دا بیت داسې راغلی دی: "زه رحمان چې یار ووینم خدایه خیر کړې ګنه ښاپیرې ده دېنې آدم له ذاته".
(۲) په مصوره نسخه کې "حاجت" راغلی دی.
(۳) په چاپي دیوانونو او د "خ" دوهمه نسخه کې "منت بار شي" راغلی دی.
(٤) چاپي دیوانونه: "که زټه یا جودانه به یې دي درته".
(۵) قلمي نسخې: "داستوګنې ځای به نه مومې هیچېرته".
(٦) چاپي دیوانونه: "آئینې غوندې حیران شم ودې کار ته".
(۷) د "پ" لومړۍ نسخه: "له دهشته یې ریبار ته کتای نه شم".

ته چې ما پوښتې د يار له حقيقته — څوك د يار خبرې کاندي و اغيار ته

درد و غم د عاشقۍ رخه هومره نه دي — چې بې عقل د چا رسي و مقدار ته

زه و يار چې سره خپل غمونه شمار کړو — يار و ما ته حيرانيږي زه و يار ته

د دنيا چارې همه واړه په وار شي — ما د يار غمونه نه پرېږدي و وار ته (۱)

۱۷۴ — هسې وزګار چيرې دى له عشقه (۲)

چې غوږ ونيسي ناصح غوندې وزګار ته — ۲۰۰۱

ما د دهر غم وهلي دى په لته — د پيالې د صراحۍ له برکته

که اوبه دي د حيات و په ظلمت کې (۳) — ساده رويو و ما راکړې بې ظلمته (٤)

هغه يار چې و ما جام د مېو راکړ — د دښنو وينې مې وڅښې بې شدته (۵)

بې خودۍ د دنيا له غمه خلاص کړم (٦) — لاړمې بيا مونده بيرون له شش جهته

د دښمن په دښمنۍ مې خندا کېږي (۷) — لکه شمع د مقراض له خصومته

بې خيرې مې کل په خير باندې شمېرلې — د زمرې په خوله کې ناست يم فراغته

مړ بهتر دى تر هغه چې څوك بې پت شي (۸) — په ياری کې دې خداى نه کا څوك بې پته

داستي چې په اور سوځي مرادې دادى — چې په اور کې سوى بند يم نه بې پته (۹)

خداى حال د سړي ياد شي چې دردمند شي — کمه نه ده دردمندي تر عبادته

---

(۱) دا بيت په چاپي ديوانونو کې نشته او د "پ" په لومړي نسخه کې د "وار" پرځاى "يار" راغلى دى.

(۲) دا بيت د "خ" په لومړي نسخه کې نشته.

(۳) "پ" چاپ او د "پ پ" چاپ کې "په تورتم کې" راغلى دى.

(٤) د "خ" په لومړي او دويمه نسخه کې "بې منته" راغلى دى.

(۵) د "پ پ" چاپ او "ق، ک" چاپ کې د "بې شدته" پرځاى "بې شربته" راغلى دى.

(٦) د "خ" دويمه نسخه: "بې خودۍ زه د دنيا له غمه خلاص کړم".

(۷) د "پ" نسخې او "خ" لومړۍ نسخه: "خنداشي" او "خ" دويمه نسخه "خندا راشي".

(۸) مصوره نسخه کې "بې ننګ شي" راغلى دى.

(۹) د "خ" دويمه نسخه: "داستي چې شيرين خان سيزي په اور کې مرادې دادى چې په اور کې سوى بند يم نه بې پته". په چاپي ديوانونو کې د دويمې مسرې د "چې" پرځاى "زه" راغلى دى.

په تدبير و په تلاش کله مونده شي — چې موقوف وي هغه کار په عنايت [1]

که څوک سل نصيحتونه ور ته وکا — غوږ يې نه وي د هغه په نصيحت

زه رحمان په سل حلقو د زلفو بند يم — لا د پاسه يو پېزوان شو بله نته [2]

۱۷۵ — ۲۰۱۳

ستا په مخ کې څه [3] حساب د جمال نشته — ځکه ما څخه د صبر مجال نشته

نه د سر و د مال وېره په ما مه کړه — وېره ما څخه د سر و د مال نشته

زه په دا سبب له وېرې سره رېږدم — چې ستا وېره کې ثواب دی وبال نشته [4]

که وعده د بوسې چارې يو ساعت کړې — د هغې چارې اميد مې په کال نشته

د شهيد و حال ته ګوره حال يې څه دی — بې تا هسې حال زما دی بل حال نشته

روښنايي مې د چشمانو ستا ديدن دی — په دا کور کې بل چراغ او مثال نشته

په جويبار زما د سترګو سرو ته يې — په دا نهر باندې بل څه نهال نشته [5]

مخ دې بې خطه بې خاله هسې زيب کا — چې يې هيڅ حاجت په خط و په خال نشته

مخامخ که راته وګورې دلبره — په کاته کې دې ثواب دی وبال نشته [6]

د آفتاب په مخ کې هره ورځ زوال وي — ستا د حسن په آفتاب کې زوال نشته

په جذبه د محبت مې ځان ته راښکه — نور حاجت مې په ريبار او دلال نشته [7]

ستا په ياد و رحمان هسې رنګ مشغول دی — چې په زړه کې يې هيڅ غم د وصال نشته

۱۷۶ — ۲۰۲۵

---

(۱) دا بيت او ور پسې بيت له قلمي نسخې نه نقل شول.
(۲) چاپي ديوانونه: "لا د پاسه سو پېزوان شو بله نته".
(۳) په چاپي ديوانونو کې د "څه" پر ځای "چې" او په مصوره نسخه کې "هيڅ" راغلی دی.
(٤) قلمي نسخه: "چې ستا وېره د ثواب دی وبال نشته".
(۵) قلمي نسخه: "په دا نهر باندې خير نهال نشته".
(٦) دا بيت په قلمي نسخو کې نشته.
(۷) دا بيت د "ق،ک" له چاپي ديوان نه نقل شو او په نورو چاپي ديوانونو او قلمي نسخو کې نشته.

مخ ته که دې لمر وایم د لمر زلفې تار تار نشته — سرو که ستا قد بولم د سرو دې یون رفتار نشته (١)

هر څوک چې دې ستا و آتشین رخسار ته گل وایي — پوچ وایي داور په مخ کې وقر د گلزار نشته (٢)

زلفې دې ناحقه څوک سنبل بولي دلبره (٣) — ولې چې له مشکو سره هیڅ د گیاه کار نشته

ماچې غنې په غوږ وستا د د سپیو واوریده — هسې رنګ بلبله په چمن کې په گفتار نشته (٤)

ستا د بدن هغه کاچې یې سر په تنه نه وي — ولې د سر د خښتن حورو ته لار نشته (٥)

یار به د رقیب په لوري خدای نه کا [illegible] صنم (٦)

ولې چې د سپیو فرښتو سره څه کار نشته

١٧٧ — ٢٠٣١

که څوک لاس له سوده وکاندې زیان نشته (٧) — په ملنګ باندې قلنګ او تاوان نشته

دوفا خریداران دې بازخوا د د ر و مي (٨) — دا متاع د زمانې په دوکان نشته

جدایي له اشنایه نه پیدا کیږي — نا آشنا له هیڅ غم د هجران نشته

مګر ځان و خدای ته وسپارې امان شي (٩) — کنه بله خوا د هیچا امان نشته

---

(١) د "پ" نسخې : "قد که دې سرو بولم د سرو یون رفتار نشته".
"ق" چاپ او "ق،ک" چاپ : "سرو که ستا قد بولم د سرو خوش رفتار نشته".
د "خ" لومړۍ، دوهمې او مصورې نسخې : "قد قد که دې سرو وایم د سرو یون رفتار نشته".

(٢) د "خ" لومړۍ نسخه : "پوچ وایي داور په مخ کې بل هسې ګلزار نشته".
د "خ" دوهمې نسخه : "پوچ وایي داور په مخ کې قدر د ګلزار نشته".

(٣) چاپي دیوانونه : "زلفې دې ناحقه خلک بولي د سنبل صنم".

(٤) د "پ" لومړۍ نسخه : "ماچې واوریده غنې دستا د سپیو هسې رنګ بلبل هیڅ په چمن کې خوش ګفتار نشته".
د "خ" دریې وارو قلمي نسخو : "ماچې غنې په غوږ و واوریده ستا د سپیو هسې رنګ بلبله په هیڅ چمن کې خوش ګفتار نشته".

(٥) دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه او مصوره نسخه کې نشته، په نورو نسخو کې دا بیت داسې دی: "ستا د بدن هغه که چې یې سر په تنه نه وي ولې سر د خښتن حورو ته لار نشته".

(٦) د "پ" لومړۍ نسخه : "یار به د رقیب په لوري خدای نه کا رحمانه ولې چې فرښتو سره د سپیو هیڅ کار نشته".
د "خ" مصوره نسخه کې یې دوهمه مسره داسې ده : "حق دی چې د سپیو فرښتو سره کار نشته".
د "خ" لومړۍ نسخه : "حق دی چې د سپیو فرښتو سره روزګار نشته".
د "خ" دوهمه نسخه : "حق دی چې د سپیو و فرښتو وته لاره نشته".

(٧) د "خ" دوهمه نسخه : "که څوک لاس له سوده واخلي زیان یې نشته".

(٨) "پ" چاپ او "پ پ" چاپ : "دوفا خریداران بل خوا ته دي درومي".
د "پ" لومړۍ نسخه : "دوفا خریداران و بله خوا ته درومي".

(٩) د "پ" او "پ پ" چاپ : "مګر ځان و خدای ته پاسلي په امان شي".
"ق" چاپ : "مګر ځان و سپاري خدای ته په امان شي".

١٧٨ — ٣:٤٢

هغه یار به زه و کومې خوا ته غواړم  چې یې هیچیرې منزل و مکان نشته
دلبران که هر څو ډېر شي په جهان کې  زما یار غوندې دلبر په جهان نشته [1]
چې هم قد لري هم زلفې هم سرې شونډې  د غه حسې رنګ آفتاب په آسمان نشته
عشق عاشق لره یو حسې ګلستان دی  چې و باغ و ته یې [2] لاره د خزان نشته [3]
عاشقان په عشق کې واړه سلطانان دي  په دا شهر کې نېستګار او ناتوان نشته
که مجنون غوندې په عشق کې څوک صادق شي [4]  دلیلي په دروازه کې دربان نشته
دانایان به د رحمان په قال پوهېږي [5]
دلته کار د هر نااهل و نادان نشته

١٧٩ — ۲۰۵۲

په دنیا کې مخ د یار دی نور څه نشته  هر چې دی د پار دیدار دی نور څه نشته [6]
چې و هجر و وصال ته یې نظر کړم  یو دوزخ دی بل ګلزار دی نور څه نشته
کارخانې چې ددې دهر لیدې کېږي  همګي د عشق سرکار دی نور څه نشته
هر مژګان یې په ما هسې چارې کاندي  وایم عین ذوالفقار دی نور څه نشته [7]
بویه مردې چې یې له مخه زلفې واخلي  د غه ګنج دی د غه مار دی نور څه نشته
د محسن د حسنات صفت به څو کړم  کوتاه وایم چې بې شمار دی نور څه نشته
وهلو ته چې د زړه په غوږ و څېړ شم  جوړ د محبت بازار دی نور څه نشته
چې سپین مخ او توري زلفې یې لیدې شي  د غه ګنج دی د غه مار دی نور څه نشته [8]
هر طبیب ته چې ځان و بنیم دا وایي  چې له عشقه دې آزار دی نور څه نشته
خوار رحمان که یې تا مینه په بل چا که
عین د قتل سزاوار دی نور څه نشته

---

(۱) دا بیت په "پ" چاپ، "ق، ک" چاپ، د "خ" لومړۍ او دوهم نسخو او مصوره نسخه کې "جهان" او په "پ پ" چاپ کې "دوران" راغلی دی.
(۲) دا بیت په مصوره نسخه کې نشته. (۳) د "خ" لومړۍ نسخه: "چې هې باغ و ته لار د خزان نشته". (٤) "ق" چاپ او د "خ" دوهم نسخه کې "صادق وي" راغلی دی.
(۵) د "پ" لومړۍ نسخه: "دانایان د رحمان په قال پوهېږي دلته کار د هر نااهل و ناقوان نشته". (۶) دا غزل د "خ" له دوهمې نسخې او د زلمي هیوادمل د شخصي کتابتون له قلمي نسخې نه نقل شو. په نورو قلمي نسخو او چاپي دیوانونو کې نشته. (۷) دا بیت او ورپسې درې بیتونه د "خ" په نسخه کې نشته. (۸) دا بیت د زلمي هیوادمل د شخصي کتابتون په نسخه کې نشته.

تا خو زده زما د زړه لـه احتیاجه — نور(۱) مي څه پوښتې چې څه غواړې محتاجه

د طالب و مطلوب راز به مادر وښود — که ته نه وای خبردار له دې رواجه(۲)

یار ته یار که حال په خوله نه وایي څه شو — حکیم ته پټ څرګند وي لـه مزاجه(۳)

که زما حاله ما پوښتې حال دادی — چې بې تا مې ورځ تیاره ده تر شب داجه

اشنایي به ما په کوم قوت کـولـه — که خبر وی ستا د هجر لـه تاراجه

که له سلو به یو خواست د چا قبلیږي(٤) — خدای دې هیڅوك رنځور نه کا بې علاجه

په رحمان بلا پسې که زهیریږي
ته مشغول اوسه له خپله تخت وتاجه

۱۸۰ — ۲۰۵۹

چې خبر شوم د ساقي د جام له راحه — لکه مړی ملاقي شوم لـه ارواحه

زه چې زلفې د یار وو ینم په خوب کې — په شپه مښك را باندې وو ري تر صباحه

سبا زیری د وصال په مهجور کاندي — د هیواد خبر مونده شي له سیاحه(۵)

که روا کا خون خوردن د عاشقانو — څوك وتي شي د خوبانو لـه صلاحه

هر ساقي چې جام د عشق لري په لاس کې — دا پیاله یې په مستانو ده مباحه

مخ بې مینې که څوك ستایي ستایه نه شي — د ممدوح له قدره چا زده بې مداحه(٦)

---

(۱) د "پ" نسخه: " بیا مې څه پوښتې " ، او د "خ" په لومړۍ نسخه او مصوره نسخه کې " نور مې څه پوښتې " راغلی دی.

(۲) د "پ" نسخې: " د طالب و د مطلوب روش به ما در وښو که ته نه یې خبردار لـه دې رواجه ".
د "خ" لومړۍ او دوهمه نسخه: " د طالب مطلوب روش به ما در وښود که ته نه وای خبردار له دې رواجه ".
مصوره نسخه: " د طالب د مطلوب دود به ما در وښود که ته نه وای خبردار له دې رواجه ".

(۳) د "خ" دوهمه نسخه: " و طبیب ته خود معلوم وي له مزاجه ".

(٤) چاپي دیوانونه: " که په سلو کې یو خواست د چا قبلیږي ".

(۵) دا مسره په "پ پ" چاپ کې داسې راغلې ده: " د مهجور خبر مونده شي صباح ".
هم دا مسره د "خ" په دوهمه قلمي نسخه کې داسې ده: " د هوا خبر مونده شي له صباح ".
د "پ" په دوهمه قلمي نسخه کې هم د "خ" د دوهمې نسخې غوندې راغلې ده.

(٦) دا بیت د "خ" په دوهمه قلمي نسخه کې نه دی راغلی.

**۱۸۱** — **۲۰۶۶**

د دنیا ناوې په عقل کې دین غواړي
ای رحمانه خان یې ژغوره له نکاحه (۱)

ولې تللی یې له ما مدام په څه — ترهېدلی یې هر صبح وشام په څه (۲)
زه هر صبح وشام وتاوته دعا کړم — ته وما وته کوې دشنام په څه
همېشه لکه وحشي په وحشت ګرځې — یو ساعت راسره نه یې رام په څه
دایماً راڅخه دروې مخ په وړاندې — لکه عمر بېرته نه یې ګام په څه (۳)
راته وایه زه به هم هغه کومه — رقیبانو (۴) ته بښې انعام په څه
لې پرهېز کړه له رقیبه د خدای روی دی (۵) — ګډ وې سره حلال حرام په څه
رحمان ستا په مخ بې خښوم (۶) مین دی
بې هوده دې ورته کېښود دام په څه

**۱۸۲** — **۲۰۷۳**

ولې نه ګوري وما ته سم په څه — زیاته وې د غم زده وُ غم په څه
ستا په غم کې چې ماویني عالم ژاړي — ژړوې راسره نور عالم په څه
په مطلب دې دسرو شونډو نه پوهېږم — چې مې ويني د زړه څښې هر دم په څه
ودې خپلو مستو (۷) سترګو ته دې وایه — چې وړ وژني (۸) مې قلم قلم په څه
ستمګار چې ستم کا څه بهانه کا — ته په ما بانده کوې ستم په څه

---

(۱) دا مسرۍ په "پ پ" چاپ کی داسې راغلې ده : "اې رحمانه خان ترې ژغوره له نکاح".
د "خ" په لومړې قلمي نسخه کی داسې راغلې ده : "اې رحمانه خان ژغوره له نکاح".
(۲) دا غزل په مصوره نسخه کی نشته.
(۳) د "خ" لومړۍ نسخه : "لکه عمر په سرعت نه دې ګام په څه".
(۴) په چاپي دیوانونو کی "غمازانو" راغلي دي.
(۵) چاپي دیوانونه اود "خ" لومړۍ نسخه : "لېن پرهېز کړه له رقیبه خدای دپاره".
(۶) د "خ" په دوهمه نسخه کی د "خښنو" پر ځای "زلفو" راغلي دي.
(۷) چاپي دیوانونو او د "خ" لومړې نسخه کی "بد بندو سترګو" راغلي دي.
(۸) د "پ پ" چاپ او "ق، ک" چاپ کے د "وړ وژني" پر ځای "داوژني" راغلي دي.

مه کړه خدایه چې څوک بې یاره خوښ خرم وي　　زه به اوسم بې تا خوښ خرم په څه

زه رحمان پخپله ګرم یم چې مین شوم　　دغه نور عالم مې بولي ګرم په څه (۱)

۱۸۳　　۲۰۸۱

لمن یې ونیوسته چې حال یې د زړه څه دی

د رحمان له سترګو څاڅي نم په څه

که څه وایم له هجرانه وایم څه　　له دې درد بې درمانه وایم څه

توان د دم وهلو نه لرم و یاره　　چې توان نه لرم بې توانه وایم څه (۲)

چې یې وو ینم له ځانه خبر نه یم　　چې خبر نه یم له ځانه وایم څه

د خپل زړه له حاله هېڅ راویلی نه شي　　له بې نامه بې نښانه وایم څه (۳)

د عشق راز چې هېچا نه دی بیان کړی　　تر و به زه له دې بیانه وایم څه

د خپل یار له غمه درست په اوښکو ډوب یم　　له دې هسې رنګ توفانه وایم څه

زه چې پروت یم د هجران په تناره کې　　د وصال له ګلستانه وایم څه

سر و مال د سړي لوټ کا زړه یې یوسي　　له دې هسې دلستانه وایم څه

زاغان بولي بلبلان شړي له باغه　　د دې دهر له باغبانه وایم څه

هر چې وایم تر همه واړه بهتر دی

زه رحمان به له جانانه وایم څه

۱۸۴　　۲۰۹۱

څه شوکه خاموش یم ستا د عشق له آه سره　　ستا زما له مینې خلق واړه خبر ده

هېڅوک دې په خوله د عاشقۍ لاف و نه کا　　کله هم پټېږي وچې شونډې ګونه زرده

اهل د دنیا واړه نامردي رنګ یې ورک شه　　خدای دې ملاقات له هېچا نه کا له نامرده

---

(۱) دا بیت د "خ" په قلمي نسخه کې نشته په چاپي دیوانونو کې داسې دی: "رحمان خود پخپله ګرم یم چې مین شوم　ولې نور عالم مې بولي ګرم په څه".

(۲) دا بیت د "خ" په لومړۍ نسخه کې نشته

(۳) دا بیت د "خ" په لومړۍ نسخه کې نشته، د "خ" په دوهمه نسخه کې یې لومړی مسری داسې ده: "د خپل زړه له حاله هېڅ ویلای نه شم".

کله بې دردانو لره زړه دې چا ورکړي(١) — زه به صدقه کړم سل بې درد له اهل درده

بې دستاد عشق د شهیدانو له خاکه لانه — کله زرغونېږي سره لاله هره گرده(٢)

یو خوشحال او یو کم سل ختک نور په طبیعت کې
زار شه د ماځ سرېږي له یوه فرده

١٨٥ — ٢٠٩٧

که زما مینه په تا ده خطا نه ده — که بې تا ده نارواده روا نه ده(٣)

څوک چې بې دستاله مخه بل ته گوري(٤) — آیینه یې نا صفا ده صفا نه ده

هر عاشق چې په خپل یار پسې ژړېکا — داغ ېې واړه خندا ده ژړا نه ده

د دنیا په تماشا چې څوک نازېږي — خوهم نن یې تماشا ده سبا نه ده

که ته سل ځله له ما سره جفا کړې — ستا جفا واړه وفا ده جفا نه ده

هغه تېر شو چې مې مینه په غلا غلا کړه — اوس په درست جهان رسوا ده په غلا نه ده(٥)

معشوقه که د خپل سر په بها مومي
و ماځ وته وېړیا ده بها نه ده

١٨٦ — ٢١٠٤

له اغیار سره خندا خه په کار نه ده — له اغیار سره سودا خه په کار نه ده

سل یارې دیوه یار دپاره کړې شي — آشنایي د هر آشنا خه په کار نه ده

بدله بد و سره بو به نېک له نېکو — د جفا په ځای وفا خه په کار نه ده(٦)

هر بلبل به دې ثنا کا که ته گل شې — په خپل ځان خپله ثنا خه په کار نه ده

---

(١) چاپي دیوانونه او د "خ" درې واړه قلمي نسخې: "کله بې دردانو لره زړه دچا ورکړ ومي".

(٢) دا بیت د "خ" په درې واړو نسخو کې نشته.

(٣) "ق، ک" چاپ: "بې له تا که په بل چا ده روا نه ده".

(٤) د "پ" لومړې نسخه: "څوک چې بې دستاله مخه گوري د بل مخ ته".
د "خ" لومړې نسخه: "څوک چې بې دستاله مخ د بل سر گوري".
د "خ" دوهمه نسخه: "هر څوک چې بې داستاله مخه بل مخ گوري".
د "خ" مصوره نسخه: "څوک چې بې دستاله مخه بل خوا ته گوري".

(٥) دا بیت د "خ" په لومړې نسخه کې نشته، په نورو قلمي نسخو کې: "هغه تېر شو چې مو مینه په غلا غلا کړه اوس په درست جهان رسوا شوه په غلا نه ده".

(٦) دا بیت په مصوره نسخه کې نشته.

عشق د بوی(1) په خبر په پټه خوله څرګندوي — په دا چار وکي غوغا ښه په کار نه ده

د عشق درد واړه عاشق لره راحت وي(2) — د دې هسې درد دوا ښه په کار نه ده

عاشقان وحرص هوا دي سره لرې(3) — د بیمار په ځان هوا ښه په کار نه ده(4)

عاشقي نادره چار ده په جهان کې — ولې بې خدایه سودا ښه په کار نه ده(5)

که یې کرم هم هیڅ یې نه کړم سوګند دی(6) — وابستګي د دې دنیا ښه په کار نه ده

د دنیا مینه بې کاره او ربړه شي — چې مې ولیده رښتیا ښه په کار نه ده(7)

١٨٧ — ٢١١٥

که رحمان په جهان د بې پایه دلبره
زندګي زما بې تا ښه په کار نه ده

کوره بیا به څوک ادا(8) کا په زړه غونډه — چې دا هسې مسته دروي مخ بربنډه

ته چې ګل د آشنایۍ له باغه غواړې — خبر زده که د هجران له خار وخنډه

طالبان که مرور دي هم پخلا دي — بې مطلوبه د چا نه رسي دا هنډه

مارستم د دهر ولیده په سترګو — د خپل یار له جوره ژاړي لکه کونډه

د عاشق د لاغرۍ(9) سبب دا دی — چې فرقه د معشوقو شوه په زړه تنډه

زه به حورې د جنت بې یاره څه کړم — خدای دې سره د چا نه کاندي ارهنډه

سخت ساعت د بېلتانه به مې هېر نه شي — که را ذکر شي د تور لحد ګورهنډه

١٨٨ — ٢١٢٣

زه رحمان د هغه حسن دعاګوی(10) یم
چې جرګه د عاشقانو يې پرې پنډه

---

(١) په "ق" چاپ او "ق، ک" چاپ کې "ګل" او په مصوره نسخه کې "دبوه" راغلی دی.

(٢) "پ" چاپ، "ق" چاپ او "ق، ک" چاپ: "عشق ودرد واړه عاشق لره راحت دي"، د "خ" په لومړۍ نسخه کې "عشق ورنځ" راغلی دی.

(٣) چاپي دیوانونه: "عاشقي، حرص وهوا دي سره لرې".

(٤) د "خ" لومړۍ نسخه: "د بیمار په ځای خندا ښه په کار نه ده".

(٥) دا بیت په "ق، ک" چاپ کې نشته، د "خ" په دوهمه نسخه کې د "سودا" پر ځای "سیوا" راغلی دی.

(٦) د "خ" لومړۍ نسخه: "که یې کړمه که یې نه کړمه سوګند هم دا دی".

(٧) دا بیت د "خ" په لومړۍ نسخه کې نشته.

(٨) د "خ" دوهمه نسخه او مصوره نسخه کې د "ادا" پر ځای "انداز" راغلی دی.

(٩) د "خ" په لومړۍ نسخه کې د "لاغرۍ" پر ځای "دل آزارۍ" راغلی دی

(١٠) په چاپي دیوانونو او د "خ" دوهمه نسخه کې د "دعاګوی" پر ځای "ثناخوان" راغلی دی.

ما چې جور و جفا بیا موند له یاره — دوفا طمع به څه کړم له اغیاره[1]

له دښمنه به د ښادۍ طمع خوک څه کا[2] — چې د دوست له لاسه غم شي ورد و خاره

دل آزار که دل آزار شي ما نه نه شي — حیف خو دا دی چې دل دا شي دل آزاره[3]

دا ګله هم[4] د برې د برې له هغو شي — هر چې طمع ترې د ښو کړې بسیاره

اوس د استا رضا جفا کړې که وفا کړې — دواړه لاس مې او س ختلي له اختیاره[5]

طالبان خو تر مطلوبه پورې پره دي[6] — خدای دې تا لې وفا نه کا وفاداره[7]

۱۸۱ — چې له دېرې حیا نه ګورې و چا ته[8] — ۲۱۳۰

څه خوځ کړه د رحمان د زړه د پاره

---

(۱) دا غزل په مصوره نسخه کې نه دی راغلی.

(۲) دا مسرۍ د "خ" په لومړۍ نسخه او د "ب" په دوهمه نسخه کې داسې راغلې ده: "له دښمنو به د ښادۍ امید خوک څه کا".

په "ب" چاپ کې داسې راغلې ده: "له دښمنو به د ښادۍ طمع خوک څه کا".

په "ب ب" چاپ کې داسې راغلې ده: "له دښمن به د ښادۍ طمع خوک څه کا".

او د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې راغلې ده: "له دښمنه د ښادۍ طمع خوک څه کا".

(۳) دا بیت د "خ" په لومړۍ نسخه کې نه دی راغلی. په "ب ب" چاپ کې دا بیت داسې دی: "دل آزار که دل آزار کړم ما نه نه شي.
حیف خو دا دی چې دل دا شي دل آزار".

د "ب" لومړۍ نسخه: "دل آزار که دل آزار کړم ما نه تر نه شي
حیف خو دا دی چې دل سوز شي دل آزار".

د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې دی: "دل آزار که دل آزار ما نه ترې نه شي
حیف خو دا دی چې دلسوز شي دل آزار".

د "ب" په دوهمه نسخه کې داسې دی: "دل آزار که دل آزار که ما نه نه شي.
حیف خو دا دی چې دلسوز شي دل آزار".

(٤) په "ب ب" چاپ او د "خ" په لومړۍ نسخه کې د "هم" پر ځای "مې" راغلی دی.

(۵) دا بیت یوازې او یوازې د "خ" په دوهمه قلمي نسخه کې راغلی دی او نورو کې نشته.

(٦) د "خ" په لومړۍ قلمي نسخه کې د "پره دي" پر ځای "پوره دي" راغلی دی.

(۷) دا مسرۍ په "ب ب" چاپ کې داسې راغلې ده: "خدای دې خوک لې وفا نه کا وفاداره".

(۸) دا بیت د "ب" په لومړۍ نسخه کې داسې راغلی دی: "که له دېرې حیا نه ګورې و چا ته
څه خو منت کړه د رحمان د زړه د پاره".

په "ب" چاپ کې داسې راغلی دی: "که له دېرې حیا نه ګورې و چا ته
څه خوځ کړه د رحمان د زړه د پاره".

د "خ" په لومړۍ نسخه کې داسې دی: "که له دېرې حیا نه شې کتې چا ته
څه خو منت کړه د رحمان د زړه د پاره".

دوهمه مسرۍ یې د "خ" په دوهمه نسخه او د "ب" په دریمه نسخه کې په پوره شکل راغلې ده.

وخت د نوبهار دی زه جدا له خپله یاره — دربغه دربغه چې بې یاره ځي بهاره(۱)

اور د خوبن ورته وړونو چې د غره په سر لګېږي(۲) — شنې لوخړې خېژي له نسترن له چناره

داخه عاجزي ده چې زه کښېم په کاغذ باندې — راشه وو پېړېږه د عاشقو له آزاره(۳)

داخه اوښکې نه دي چې بهېږي له چشمانو — وینې دي بهېږي د زړه ګوټې له پرهاره(٤)

رنځ مې هسې سخت دی هر زمان په ما زیاتیږي — راشه ای طبیبه ګوندې مرهم د رب د یاره(٥)

غږونه دي نه پېژني چې په حال زما خبرېږي — سیند دا وښکو ده ومې چې راغلی له کهساره

نور خو نه دي واړه دانا رې د بېلتانه دي — راشه که یې اورې د رباب له هرې تاره

۱۹۰ ۲۱۳۸

زه یو خوار و زار یمه ملاح په عاشقۍ کې
خپل دي که پردي دي راته نه ګوري له غاره

ستا په عشق کې دې وغځن یم سر تر سره — چې له غمه دې ژوندی ګرځم دلبره(٦)

زه به ستا له غمه کله شو لامړوم — باری دم د خدای په لاس دی نازنین وره

جدایي به مې یو دم قبوله نه کړه — که چا مرګ او بېلتون ایښي وې په غوره(۷)

شام سحر مې د غم ستا زلفې رخسار دي — نور مې مه پوښته له شامه له سحره(۸)

---

(۱) دا غزل په قلمي نسخو کې نشته په "پ" چاپ او "ق" چاپ کې یې د دوهم مسرۍ داسې ده:
"دربغه دربغه چې بې یاره شي بهاره".

(۲) په "پ" چاپ او "ق" چاپ کې "بلېږي" راغلی دی.

(۳) قلمي نسخي او نور چاپي دیوانونه: "راشه وو پېړېږه د عاشق له دل آزاره".
"ق" چاپ: "راشه وو پېړېږه د عاجز و دل آزاره".

(٤) د "خ" دوهمه نسخه: "داخه اوښکې نه دي چې پر مخ زما بهېږي.
دا مې د زړه وینې چې بهېږي له رخساره".

(٥) د "خ" دوهمه نسخه: "درد مې نه کمېږي په زمان زمان زیاتیږي.
راشه طبیبه ګنه مرهم د خدای د یاره".

(٦) د "خ" دوهمه نسخه: "چې له غمه دې لامړ نه یم دلبره".

(۷) دا بیت په "پ" چاپ، "ق" چاپ او "ک" چاپ کې نشته.

(۸) د "پ" قلمي نسخې: "شام سحر یاره ستا زلفې و رخسار دی
هېڅ مې مه پوښته له شا مه له سحره".
د "خ" په نورو درې واړو نسخو کې یې لومړی مسری داسې ده: "شام سحر زما دا ستا زلفې رخسار دی".

چې خبر دې[1] په وصال و په هجران شوم — خبر نه یم له فردوس له سقره

بې د ستا له مخه ورځ راباندې شپه ده — رڼنايي د ورځې چېرې وي بې نمره[2]

هسې بې سر و سامان دې هیڅوك نه شي[3] — لکه زه چې بې سامانه یم بې سره

یو هنر مې منظور ستا په نظر نه دی[4] — که زه وکړم ستا په عشق کې سل هنره

هیڅ اثر د ژړا (ناله) اوښکې په یار نه کا
خدای دې اوښکې د چا نه کا بې اثره

۱۹۱ ۲۱٤۷

زه عاجز نه لرم په عشق کې له پیغوره — بې پروایم د ستي په خبر له اوره[5]

ردي په خوله د سمندر هس د موم[6] — خوك چې مامنع کوي د عشق له شوره

بې هجرانه زما بله خواري نشته — ولې نشته تو دا بله خواري نوره

لکه ته چې خدای هرګوره ښایسته کړې — زه یې هسې ډېر بې صبره کړم هرګوره[7]

چې په تورو سپینو مې اړوي دا خوك دی — که ته نه یې په مخ سپین په زړه توره

د رقیب له بدخویه به څه وایم — چې لا یار ورسره مل شي هلته ګوره[8]

---

(۱) په چاپي دیوانونو او مصوره نسخه کې "چې خبر یې" راغلی دی.

(۲) دا بیت په "پ" چاپ، "ق" چاپ او "ق، ک" چاپ کې نشته. لومړی مسری یې د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې ده:
"بې دستاله مخه ورځ راباندې شپه شوه".

(۳) د "پ پ" چاپ کې "نشته" راغلی دی.

(٤) په چاپي دیوانونو کې "نه شو" راغلی دی.

(۵) دا غزل په مصوره نسخه کې نشته.

(۶) د "پ" په لومړۍ نسخې کې "موم" راغلی دی.

(۷) دا مسری په دواړو چاپي دیوانونو کې، او د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې راغلی ده:
"زه یې هم هسې بې صبره کړم هرګوره".
د "خ" په لومړۍ او د "پ" دوهمه نسخه: "زه هم هسې بې صبرې کوم هر ګوره".

(۸) دا بیت په "پ" چاپ کې داسې راغلی دی: "د رقیب له بده خویه به څه وایم — لا چې یار ورسره مل شي هالد ګوره".
په "پ پ" چاپ او د "خ" په دوهمه نسخه کې: "د رقیب له بده خویه به څه وایم — چې لا یار ورسره مل شي هلته ګوره".
د "پ" په دوهمه نسخه کې: "د رقیب له بدخویه به څوړ ایم — لا چې یار ورسره مل شي هلته ګوره".
د "خ" لومړۍ نسخه: "د رقیب له بدخویه به څه وایم — لا چې یاد ورسره بل شي هلته ګوره".

چې يې پور دمرګ ترپوره لابدتر وي[1] — هغه توبه دبېلتانه له بده پوره
دامې خپل نصيب طالع دی را رسېږي — ګڼه غم کله رسېږي له غم خوره[2]
قاف ترقافه بادشاهي به يې روزي شي — چې په چاوشي دا ستاد زلفو سيوره

192 — 2157

عاشقي سړی مجنون کاندي رحمان[ه]
ګڼه څوك په هوښيارۍ وځي له کوره

نه رسېږي ستا وحسن وته حوره — څه به رسي وپېرمن وته مزدوره[3]
ستا ترقده ترقامته نه رسېږي — که نښتر که سپاري وي که کجوره[4]
ترقامت پورې دې سروه ده سرکوزې — تر رخسار[5] پورې دې شمعه ده بې نوره
هر سړی چې دې وحسن ته نظر کا — ښا پېرۍ يې په نظر وي نا منظوره
چې تا مې دخپلو شونډو ورپه خوله کړ — طايفه دې دصوفيانو کړه مخموره
اوس ته وايه چې په څرنګ دې وستايم[6] — زه خوستا په مينه لاړم له شعوره
داجذبه دعاشقۍ نده نور څه ده — ګڼه کله څوك وتي شي له دستوره
اوس به زه دشب خېزۍ څه منت وکړم[7] — چې څمره دې کړه په خوب کې راحضوره
چې په ننګ وپه ناموس ترلوره کم وي[8] — صدقه شه ناقابله زوی له لوره

(۱) دامسری په چاپي ديوانونو کی داسې راغلی ده : "چې يې پور دمرګ ترپوره پورې چېغ دی".
د "پ" په دوهم نسخه کې : "چې يې پور دمرګ ترپوره هم بهتر وي".
د "خ" په لومړی نسخه کې : "چې يې پور دمرګ ترپوره بهتر دی".
د "خ" په دوهم نسخه کی داسې راغلی ده : "چې يې پور دمرګ ترپوره لا بهتر دی".
(۲) دابيت او دريمې بيتا په چاپي ديوانونو کی نشته.
(۳) داغزل د "پ" په لومړی نسخه کی نشته.
(۴) د "خ" دوهمه نسخه : "که نښتر که صنوبر وي که کجوره".
(۵) د "خ" په دريو وارو قلمي نسخو کی "ترصورت پورې" راغلی دی.
(۶) "ق، ک" چاپ : "اوس ته وايه چې په څرنګ به دې دوست کړم".
(۷) "ق" چاپ : "اوس به څه دشب خېزۍ منت بادی کړم".
(۸) "ق" چاپ او "ق، ک" چاپ : "چې په ننګ وپه ناموس ترلوره کم دي".
په مصوره نسخه او د "خ" په لومړی او دوهمه نسخه کی دابيت داسې دی : "چې په ننګ وپه ناموس ترلوره کم دي خدای دی مور کاندی په هسې زوېه بوره".

که سل ځله زويه غوره وي ترلوره — خدای دې موړکا په داهسې زويه بوره (١)

که سل ځله زوي رويداره وي ترلونو — صدقه شه نا قابله زوي ترلوره (٢)

ننګيالي تربرونه ښه دي اوکه نه وي — ننګيالی ترله هم ښه ده له تربوره

خوبرويي بې دلبرۍ څه په کار نه ده — لکه ونې بې مېوې په پانو کوره (٣)

که دغلوزی لباس وکا غزاوشوه — شهد نه دي چا موندلي بې زنبوره (٤)

١٩٣ — ٢١٧٢

په ماخ دښايسته وُقدر ډېر دی
دطبيب له قدره چا زده بې رنځوره

چې په وخت دځنکدن وکا بې ډېره — ترونن ولې هسې ناست (٥) يې بې تدبيره

هر سړی چې ګانده (٦) غم په مخ کې وينې — له هغه غمه لاتن ګرځي دلګيره

چې سبا ارمانه وي پند د پيرانو — ولې اوس د پير طلب نه کړې بې پيره

ديار ياد به دې ځای څرنګ په زړه نېسي — ياد دغير چې لرې نه کړې له ضميره (٧)

چې د تولت په طلب ګرځي خدای دې هېر دی — فقيري (٨) داهسې چا بې وي فقيره

دغم دې خدای بدل کړه په ښادۍ — زهير مه شې په آشنا پسې زهيره

که هر څو ښايسته ډېر دي په جهان کې — وهر چا ته خپل آشنا دی بې نظيره

هر سړی دهغه مخ په رڼا ګرځي — چې يې خونه دخالص وي پر کې منيره

همېشه پراته په اور وپه اوبو وي (٩) — عاشقان دلعلو لبو له تاثيره

---

(١) دا بيت په "پ" چاپ، "ق" چاپ، "ق، ک" چاپ او د "خ" په لومړۍ نسخه کې نشته.
د "خ" په دوهمه نسخه او مصوره نسخه کې داسې دی: "که سل ځله زوي رويدار وي ترلونو — صدقه شه نا قابله زوي ترلوره".

(٢) دا بيت په چاپي ديوانونو کې نشته.

(٣) په "ق" چاپ، "ق، ک" چاپ او د "خ" په دوهمه او مصوره نسخه کې د "کوره" پرځای "بوره" راغلی دی.

(٤) په "پ" چاپ، د "خ" په لومړۍ او دوهمه نسخه کې "له زنبوره" راغلی دی.

(٥) په چاپي ديوانونو کې د "ناست" پرځای "رنګ" راغلی دی.

(٦) په "پ" چاپ کې "ګان"، "ق" چاپ او "ق، ک" چاپ کې "ورانده" راغلي دي.

(٧) دا بيت په "ق، ک" چاپ کې نشته.

(٨) په قلمي نسخو کې "فقيري" راغلی دی.

(٩) قلمي نسخې: "تمامي عمر په اور او په اوبه وي".

۱۹۴ — ۲۱۸۲

زه رحمان د آزادۍ په تالاش[1] ګرځم
باري نه د تورو زلفو لره ځنځیره

ستا په عشق کې هسې خلاص[2] لره شعوره — چې یوه خبره نه لرم منظوره
طبیبان وایي چې صبر دي دارو دی — خدای فرقه زمونږ[3] پیدا کړه ناصبوره
توري هر چېرې ترلې په د ښمن شي — یاره ستا ستر ګې دوستان وژني په توره[4]
معشوقې د زمانې شوې سره تولې — د زړه خونه مې یې ولوټله چوره[5]
زه تنها په ضرور ندیم ستا له غمه — پیدا شوې عاشقې ده له ضروره[6]
هرې شیې لره ورځ شته ده په دنیا کې — زما عمر جدایي کړ بې نوره[7]
هر ویان وفا له هیڅ سره نه کا — دا خبره په عالم کې ده مشهوره[8]
چې خبر شي واړه ګوټې په غابښ نیسي — په هجران کې خبر مه شي له مهجوره[9]
د رقیب له بد و ستر ګو نه ځان ژغوري — هر عاشق چې بهره مند وي له حضوره[10]
هو مره توان او توفیق نه ګټم په بخت کې — چې تائب کا ما له فسق او له فجوره
په نظر د مدعیانو تور کوډي[11] وي — کړي کښېنوم د کټ د پاسه حوره

۱۹۵ — ۲۱۹۴

د رحمان له[12] ستر ګو نم به هالهٔ[13] وچ شي
که وچ شوی د چانم وي له ناسوره

(۱) په چاپي دیوانونو کې "طلب" راغلی دی.
(۲) د "ب" په دوهم او د "خ" په لومړي نسخه کې د "خلاص" پر ځای "لاړ" راغلی دی.
(۳) دا بیت د "ب" په دوهمه نسخه کې نه دی راغلی او په چاپي دیوانو کې یې دوهمه مسره داسې راغلې ده: "خدای زمونږ فرقه پیدا کړه ناصبوره" د "خ" په لومړي نسخه کې د "زمونږ" پر ځای "زما" راغلی دی.
(۴) دا بیت په قلمي نسخو کې نه دی راغلی په پېښور چاپي دیوانونو د "په توره" پر ځای "بې توره" راغلی دی
(۵) د "خ" په لومړي نسخه کې "پچوزه"، په دوهمه نسخه کې "پلې خپوره"، د "ب" په لومړي نسخه کې "پخښوره" او په "ب ب" چاپ کې دا مسره داسې ده: "د زړه خونې یې او لوټلې بې چپوره".
(۶) دا بیت په قلمي نسخو کې نه دی راغلی.
(۷) دا بیت په "ب" نسخو کې داسې دی: "هرې شپې لره ورځ شته په دنیا کې زما عمر جدایي کړ بې نوره". په "ب ب" چاپ کې د "کړ بې له نوره" پر ځای "کړ لو بې نوره" راغلی دی. د "خ" په لومړي نسخه کې یې وروستی مسره داسې راغلې ده: "زما عمر جدایي کړ بې نوره"، په دوهمه نسخه کې "جدایي زما عمر کړ بې نوره" راغلې ده.
(۸) دا بیت په قلمي نسخو کې نه دی راغلی. (۹) دا بیت په "ب" چاپ کې داسې دی: "له حیرته واړه ګوټې په غابښ نیسي په هجران کې چې خبر شي له مهجوره".
(۱۰) دا بیت په قلمي نسخو کې نه دی راغلی په "ب" چاپ کې: "د رقیب له بد و ستر ګو دې ځان ژغوري هر عاشق چې بهره مند شي له شعوره". (۱۱) د "خ" په لومړي او د "ب" په دوهمه نسخه کې د "دي" پر ځای "دی" راغلی دی. (۱۲) په "ب" چاپ کې د "له" پر ځای "د" راغلی دی. (۱۳) د "خ" په دوهمه نسخه کې د "هاله" پر ځای "کله" راغلی دی.

زړه مدام راته ویل چې ژاړه ژاړه — په ژړا سره دا تللی اشنا غواړه [1]

مسلې د بې ننګۍ ورپسې لنګ کړه — بې چاوڼې د ننګ کښېږده وړې نغاړه

که دیار په سرلوڅۍ دا ستا رضا وي — په خندا خندا راځه په لکه غاړه

دافلاک چې دآسیا په دود ګردش کړ — په دنیا کې به پرې نن دې دانه لواړه

په دنیا کې ګوره هر چې زنده سر دی — داجل په تیغ به پرې کړه د دوی غاړه

۱۹۹ — ۲۰۰

د مکې ځنځیر حاجیان په لاس کې نیسي
ما و نیوې* دیار زلفینې دواړه

ګاه په غار مه [2] سوځې کې پرېږدې په ساړه — کله مري له لوږې کله مري په ډېر خواړه

واړه په غوغا دي چې راغلي په دنیا دي — نه يې هغه وږي په قرار دي نه ماړه

کله لاس په سر ځېله کېږدي تواضع کا — کله وبله کېږدي لاس په توره په چاړه

خاوري دآدم چې خمیر کړې فرشتګانو — درست يې په غمونو په دردونو ولاړه

څه شو که څوک نن ساعت وهل که یا ترل که — پېښ به په هغه شي چې واهه شي هم تاړه [3]

خو به وې تند رستم دا زموږ بنا سسته — زه يې درمانده یم په پښتی په اخاړه [4]

بنا يې چې څوک پس له مرګه خاندي په لحد کې — هر چا چې په داژوندون کې خپل سر وژاړه [5]

---

(۱) داغزل یوازې اویوازې د "خ" په دوهمه نسخه کې په عین شکل راغلی دی او په نورو چاپي دیوانونو او قلمي نسخو کې نشته. (*) اصل: نیولي دي.

(۲) په چاپي دیوانونو کې "نمو" راغلی دی.

(۳) د "پ" لومړۍ نسخه "څه شو که څوک نن ساعت واهه و یا تاړه شي — پېښ به شي هغه چې واهه شي هم تاړه".
د "خ" لومړۍ او دوهمه نسخه: "څه شو که څوک نن ساعت واهه شي یا تاړه شي — پېښ به شي هغه چې هم واهه شي هم تاړه".

(٤) دابیت په "پ" چاپ، د "پ پ" چاپ، د "خ" په لومړۍ نسخه او مصوره نسخه کې نشته. "ق، ک" چاپ: "خو به وی تند رسته دا زموږه
-ودانه خونه — د ډېر چې درمانده شو په پښتنې په اخاړه". "ق" چاپ: "خولې د تند رسته دا زموږه بنا یسته — زه يې درمانده یم په پښتنې په اخاړه".

(۵) د "پ پ" چاپ: "هر چا چې ژوندون کې خپل پښتنې سر وژاړه". د "پ لومړۍ نسخه: "هر چا چې په داژوند خپسر وژاړه".
"ق" چاپ: "هر چا چې په ژوندون کې خپسر وژاړه". "ق، ک" چاپ: "هر چا چې په ژوندون کې ګوره خپل ځان وژاړه".
"خ" لومړۍ نسخه: "هر چا چې په داژوند خپل خپل سر وژاړه".
د "خ" دوهمه نسخه او مصوره نسخه: "هر چا چې په ژوندون خپل سر وژاړه".

وینم واره تلوني هېڅوك نه دي پاتي شوني | يون دى په دالارې هم د ځوان هم د زاره

زلفې د دلدار (۱) دي چي هر څوك يې طلبگار دي | لوى دي كه هلاك دي كه غټان (۲) دي كه واره

سخ د هغه چا دى چي په دركې يي قبول شي | زار د هغه چا چي يې له دره وشاره (۳)

ما بدع الرحمان غونډې جواب كړه ورته سلو (۴)

۱۹۷ — ۲۲۱۱

خداى خبر چې كوم يو هغه تركې وپلاره (۵)

خو به وران شي د دنيا با زاره ناره | هر نفس د بېلتانه په تاخت لتاره (۶)

لا غونچې په باغ سترگې سپرې نه وي | باد خزان يې د زړه مېنه كړه وېجاره (۷)

هسې باد پرې د فنا له لوريه والوت | د لاله خوله (۸) يې پرې بيسته لناره (۹)

څه بزرگي به يې د باز و د هماى وي | زباني ذكر كه سل رنگ كا خواره (۱۰)

كه زر سل كاله يې تېر شي په اوبو كې (۱۱) | په نرمي به نرمه نه شي وچه تراره

---

(۱) "ق، ک" چاپ: "زلفې مې دیاران دي" راغلي دي.

(۲) د "خ" په لومړي نسخه کې "پېران" راغلي دي.

(۳) دا بيت په مصوره نسخه کې نشته، په نورو قلمي نسخو کې يې دوهمه مسرۍ داسې ده: "زار د هغه چا دی چې له دره يې شاړه".

(۴) "ق، ک" چاپ: "ما رحمان غونډې به سلو چې سلام ورته کولو".
په "پ" چاپ، "پ پ" چاپ، "ق" چاپ او مصوره نسخه کې د "جواب" پر ځای "سلام" او د "خ" په دوهمه نسخه کې "لبيک" راغلي دي. او د "خ" په لومړي نسخه کې دا مسرۍ داسې ده: "ما غونډې رحمان غونډې زارۍ وکړه ورته سلو".

(۵) په مقابله شوو کتابونو او قلمي نسخو کې "ولاړه" راغلي دي، خو "د عزم د په نظر کې نيولو او نيت" په معنی د "ويلاړه" په شکل سم دی چې د همون د ب غلي "دوست" په قول يکي راغي.

(۶) دا غزل په مصوره نسخه او د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته. د دې بيت لومړۍ مسرۍ په "پ" چاپ کې داسې ده: "خود به وران شي د دنيا بازاره تاړه".
په دوهمه مسرۍ کې په "پ" چاپ او "ق، ک" چاپ کې د "نفس" پر ځای "ساعت" راغلي دي. لومړۍ مسرۍ يې په قلمي نسخو کې داسې ده: "خو به وران شي د دنيا بازار لتاړ".
او د "پ" په دوهمه او د "خ" په لومړي نسخه کې داسې راغلي ده: "خو به وران شي د دنيا بازار تاړ".

(۷) دا بيت د "پ" په لومړي نسخه کې داسې راغلی دی: "هغې غنچې لا په باغ سترگې سپړې نه وي بد خزان يې د زړه مېنه کړه وېجاړه".
"ق، ک" چاپ: "لا غنچو په باغ کې سترگې سپړې نه وي. چې خزان يې د زړه مېنه کړه وېجاړه".
د "خ" په لومړي او د "پ" په دوهمه نسخه کې داسې راغلي دي: "هغو غنچو لا په باغ سترگې سپړې نه وي بد خزان يې د زړه مېنه کړه وېجاړه".

(۸) په "پ" چاپ کې "قوله" راغلي دي.

(۹) د "پ" له دوهمې نسخې نه پرته په نورو نسخو کې "لنتاړه" راغلي دي.

(۱۰) دا بيت په قلمي نسخو کې داسې راغلی دی: "څه بزرگي به يې د باز و هماى نه شي سر زباني ذکر که سل رنگه خواره".
د "ق، ک" چاپ کې داسې راغلي دي: "څه بزرگي به يې د باز او هما وي سر زباني ذکر که سل رنگ کړه خواره".

(۱۱) "پ" چاپ: "که سل زر کاله يې تېر شي په اوبو کې" او د "خ" لومړي نسخه کې "که يې سل کالونه تېر شي په اوبو کې".

تر داهسې خمره نه خمر بهتر دی ، هر چې حال یې زنګدن شي خمر واره[۱]

**۱۹۸ — ۲۲۱۸**

ترخلاصي ځنې بندي سته يې رحمانه[۲]
که د شها[۳] د زلفو ځیل دې شي په غاره

چې غرقاب شي تر و مژګان په یم دزړه ، نور خراب شي خانمان په نم دزړه[۴]

عبث والي غم دزړه و بوالهوس ته ، خه پوهېږي هلکان په غم دزړه

په بل ځ باندې سبوا دیار له مخه ، ماتړلي دي چشمان محکم دزړه

چې یې عرش او کرسي لاندې تر قدم دي ، بالاتر دی هسې شان قدم دزړه[۵]

د خلیل ترکعبې دا کعبه ده لویه[۶] ، که آباد کا خوک ویران حرم دزړه

که نور خلق قد مونه ږدي په ځمکه ، ما دی ایښی په آسمان قدم دزړه

دامکان چې د آسمان ځمکې تر میان دی ، یو خلوت دی دامکان سلم[۷] دزړه

زه ملهم دزړه له چا غوارم بې خدایه[۸] ، چې کړی نه شي طبیبان ملهم دزړه

**۱۹۹ — ۲۲۲۷**

صورتي همدمان ډېر دي په جهان کې
ولې نه مومي رحمان همدم[۹] دزړه

ساقي پوره نه شه د میو جام تیار کړه ، خمر هېڅ معطلي نه لري تلوار کړه[۱۰]

---

(۱) د "خ" لومړی نسخه : "ترو دهسې خمر نه خمر بهتر دی ، هر چې حال په تنګدستي شي خمر واره".

(۲) دامسرۍ په قلمي او د چاپي دیوانونو کې داسې راغلې ده : "ترولد خلاصه بندي سته يې ای رحمانه" ؛ خو په "پ پ" چاپ کې د "ای" په ځای "نه" راغلی دی. د "خ" په لومړی نسخه کې "ترخلاصي نه بندي سته يې ای رحمانه".

(۳) په چاپي دیوانونو کې "یار" راغلی دی.

(٤) دا غزل په مصوره نسخه کې نه دی راغلی په "ب" چاپ کې دابیت داسې راغلی دی : "چې غرقاب شي تو مژګان په یم دزړه ، نور خراب شي خان ومان په نم دزړه". د پېښور په چاپي دیوانونو او د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې راغلی دی : "چې غرقاب شي تو مژګان په نم دزړه ، نور خراب شي خان ومان په نم دزړه". د "خ" په لومړی نسخه کې : "چې غرقاب شي ترمش ګانو نم دزړه ، نور خراب شي خان ومان په یم دزړه" راغلی دی.

(۵) دابیت د "خ" په لومړی نسخه کې نشته او د "ب" په دوهمه نسخه کې داسې راغلی دی : "چې یې عرش او کرسي لاندې تر سیوری ، بالادی هسې شان حرم دزړه".

(٦) د "خ" په لومړی نسخه کې د "لویه" پر ځای "بویه" راغلی دی.

(۷) د "خ" په دوهمه نسخه کې د "سلم" پر ځای "مسلم" راغلی دی.

(۸) په چاپي دیوانونو کې "بې ربه" راغلی دی.

(۹) د "پ" په لومړی نسخه کې "ملهم" راغلی دی.

(۱۰) دا غزل د "خ" په لومړی نسخه او مصوره نسخه کې نه دی راغلی ، ددې بیت په دوهمه مسرۍ کې د "نه لري" پر ځای په "پ" چاپ کې "نه کاندي" او په "پ پ" چاپ کې "نه کوي" راغلی دی.

هر دم تیغ داستا زما په گلو گرځي[1] — هر نفس د خپل نفس له تیغه دار کړه

ترخودي چهور ته بله بلا نشته — خادمي د بېخودانو په دربار کړه

داپنځه ورځې ژوندون چې غنیمت دی — شکرانه په دا نعمت د کردگار کړه[2]

که غم خوار غوارې په غم او په اندوه کې — سبسبنه د که د شرابو اختیار کړه[3]

خوږې دوه سترگې غرېږي په جهان کې — ننداره په هر ساعت د خپل نگار کړه

هغه خولګ دی چې تهمت پرې وایه نه شي — غوږ په هیچا بانديې مه باسه خپل کار کړه

بې وفاېي د دې دهر یاران وا ړه — چې دې پس له مرگه یارشي هغه یار کړه

مدعي چې په زړه ورشي هغه وایي[4] — گوش او هوش د محبانو په گفتار کړه

۲۰۰ — ۲۲۳۷

رحمان وایي د دنیا چارې فاني دي
البته په دا خبره اعتبار کړه

چې مې مینه خدای په تا باندې پیدا کړه — ترکه ما په هغه ورځ[5] خپله رضا کړه

اوس د ستا رضا جفا کړې که وفا کړې — ما د ستا جفا قبوله په وفا کړه

گل په لعلو په گوهر کله خولګ پېرې — بې له ماچې تا خندا کړه ما ژړا کړه

بې له ماچې داستا غم په هوس پېرم — کوم وگړي په هوس د غم سودا کړه[6]

دوه یاران به دا رنگ نه وي چا لیدلي — چې یوه ورته سلنځل کړه بل دعا کړه

ما ودرست جهان ته شا وتا ته مخ کړ — تا ودرست جهان ته مخ او ما ته شا کړه[7]

---

(۱) دا مسرې په "ب" او "ق، ک" چاپ کې داسې راغلې ده: "هردم تیغ دستا زما په گلو گرزي".
په قلمي نسخو کې داسې راغلې ده: "زما ستا په گلو گرځي هردم تیغ دې"

(۲) دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کې نه دی راغلی.

(۳) دا بیت په قلمي نسخو کې نه دی راغلی.

(٤) "ب" چاپ او د "پ پ" چاپ: "مدعي چې په خوله ورشي هغه وایي".

(۵) د "خ" په دوهمه نسخه کې "په هغه دم" راغلی دی.

(۶) دا بیت د "ب" په لومړۍ نسخه کې نشته.

(۷) دا بیت د "خ" په لومړۍ نسخه کې نشته.

ډېر هند کي په جهان ګرزي دچا یاد دي — عشق عالي پایه د هیرا و درانجا کړه

هم په دالي ترهمه وو[1] نام بلند شو — چي قبوله عندلیب دګل جفا کړه

ناآشنا د بېلتانه له غمه خه ز ده — خدای د غه خواري په بخره د آشنا کړه

عاشقان د یار تر سپیو هم زاړه ږي — ګمنه ما د رقیبانو خه پروا کړه

زه رحمان[2] چي ستا د حسن ثناخوان شوم

ستا له رویه درست جهان زما ثنا کړه

۲۰۱ — ۲۲٤۸

باره وتره هاله کښت و زراعت کړه[3] — تقوی دار شه هله طمع د جنت کړه

عاقلان په وړاندي ځي په ورستو ګوري — په دنیا کي سرانجام د آخرت کړه

سم دلاسه کار هر ګوره ډېر مشکل دی[4] — خولا نه لي غریب زېرمه د غربت کړه

چي نور خلق ملامت در باندي وايي — لا پخوا تر خلقو خپل ځان ملامت کړه

چي عقبی ته د دنیا په اجر موي — خو هم دا عمارت هلته عمارت کړه

خو به ګوري د قیامت ورځو او شپو ته — خو هم دا جهان په ځان باندي قیامت کړه[5]

چي نیکي بدي په تله کي تلل شي[6] — خود په خپله تله واخله عدالت کړه

که لښکر د حرص هوا در باندي زور شي[7] — سر د ننه په قلعه د قناعت کړه

دا به نه شي چي ستا څښتن او د حق څوي — که حق غواړي نو هم څخ په حقیقت کړه

---

(۱) په قلمي نسخو کی "ترهمايي" راغلی دی.

(۲) په چاپي دیوانونو کی "یم" راغلی دی.

(۳) د "خ" لومړی نسخه او مصوره نسخه : "باره تو وجار باسه هلته زراعت کړه".
د "خ" دوهمه نسخه : "باره وجار باسه هله کان دزراعت کړه".
د "پ" لومړی نسخه : "باره ترو جار باسه هاله زراعت کړه".

(٤) مصوره نسخه : "سم له لاسه چاري نه شي مرد هاله يي".

(۵) دابیتا په مصوره نسخه کی نشته.

(٦) د "پ" لومړی نسخه، د "خ" دوهمه نسخه او مصوره نسخه : "چي دي نېك وبد به تله کی تلل شي".

(۷) قلمی نسخی : "که لښکري د حرص ور باندی زور شي".

هغه زړه چې عرش الله دی ګوره کوم دی — څو دې توان شي د جمله زړونو خدمت کړه
وړاندې هم واړه ستا په خبر سړي وو — ته هم پاخه د هغو په خبر همت کړه (۱)
د دنيا چارې هم واړه فاني دي — بارې پوره ته شه يو بل رنګه حکمت کړه (۲)
په طبيب (۳) د عاشقانو دارو نه شي — درومه بل خواته دارو د خپل جمعيت کړه
څو دې حق موندلی نه دی مرد جاړو (٤) چه — په دا مرسته دا (۵) جهان واړه لت پت کړه
اې رحمانه اول ته نصيحت واخله
د غه پسه بيا و بل ته نصيحت کړه

۲۰۲ — ۲۲۶۳

هسې يمه ياره ستا په غم تازه — لکه وي هره ګياه په نم تازه (۶)
سترګې و خوړم کړي کړم له نمه وچې — کړمې کېږي په ژړا صنم تازه
زه به څه کړم د چا چارې بې له ياره — هر سړی په خپله ساه په دم تازه
د يار نوی نوی غم زېږي وي وصل — رغوي سوي پرهر ملهم تازه (۷)
که دې زړه له غمه وچوي د ګلګی مشه — کاتبان کا په چول قلم تازه
رحمانه شايسته ياران ګلونه دي
بې لتانه کړه اکثر مراوي کم تازه

۲۰۳ — ۲۲۶۹

نه يم خوښ د سرو ګلونو په سايانه — خوښ يم ستا د مخ په اور بانندې جليا زه (۸)
په اور سوي ښهر وران دی څه حکمت دی — سوی ستا د مخ په اور يمه بسيانه

---

(۱) د "پ" چاپي ديوان کې د "همت" پر ځای "خدمت" راغلی دی.
(۲) دا بيت د "خ" په لومړي نسخه کې نشته.
(۳) په "ب" چاپ کې "طبيعت" او مصوره نسخه کې "طلب" راغلی دی.
(٤) د "خ" لومړي نسخه کې "مد نا زېږه" او د "پ" لومړي نسخه او مصوره نسخه کې "بې غم مه مشه" راغلی دی.
(۵) "ق" چاپ او "ق، ک" چاپ کې "په دا مرشه"، د "پ" په لومړي نسخه کې "په دا زېږمه" او د "خ" دوهمه نسخه کې "مردانه مشه" راغلی دی.
(۶) دا غزل د "خ" په قلمي نسخو کې نشته او لومړی سری يې په چاپي ديوانونو کې داسې دی: "هسې زه يم ياره ستا په غم تازه".
(۷) قلمي نسخې: "راستوي يو نوی غم زېږي د وصل رغوي د زړه پرهر ملهم تازه".
(۸) د "پ" نسخه او "خ" دوهمه نسخه: "خوښ يم ستا د مخ ونړ وته جليا زه". د "خ" په لومړي نسخه کې "و مخ د تور او" راغلی دی.

خپلوم به دې په هر رنګ چې خپلېږي — که دې موم په دروغ که په رښتیا زه

نن راغلي په جهان یو که دیدن کړي — نه به ته په جهان راشې نه به بیا زه

دا اوبدي وعدې چې ته کوې صنمه(۱) — کاشکي بیا موم فرصت په دا دنیا زه

چې له ډېرې حیانه ګورې وچا ته — غوځ کړم غوځ کړمه دې ستا ډېرې حیا زه(۲)

چې له غمه له اندوهه دې مړ نه یم — سنګ آهن یم آدم نه یمه ګویا زه(۳)

که جوړه تلې شوك وقبر ته دربغه(٤) — ژارم دا چې یا به ته نه یې او یا زه

همېشه د خپلوا وښکولو سېلابه — سرګردان یم تر فلکه تر آسیا زه

که شوك قیاس زما د ډېرو اوښکو کا — هسې ګرځم لکه خس پاس په دریا زه(۵)

۲۰۴

زه [illegible] د یار ثنا کولی نه شم
کاشکي دا چې په جهان نه وی ګویا زه(۶)

۲۲۸۰

---

(۱) د "پ" نسخې او د "خ" لومړۍ نسخه: "دا اوبدې وعدې چې ته کوې منم یې".
د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې ده: "دا اوبدې اوبدې وعدې چې کړې صنمه".

(۲) د "پ" لومړۍ نسخه: "چې له ډېرې حیا نه ګورې وما ته غوځ کړم غوځ ستا دې ډېرې حیا زه".
د "خ" لومړۍ نسخه: "غوځ کړم وګوره دا ستا ډېرې حیا زه".
د "خ" دوهمه نسخه: "غوځ کړم غوځ کړم دغه ستا ډېرې حیا زه".

(۳) دا بیت په "ق، ک" چاپ کې نشته، لومړۍ مسرۍ یې د "خ" په لومړۍ نسخه کې داسې ده: "چې له غمه له اندوهه دې ونه مرم".
د "خ" دوهمه نسخه: "چې له غمه دې مړ نه یم ژوندی پاېم".

(٤) دا بیت په "ق" چاپ او د "خ" په لومړۍ نسخه کې نشته، د "پ پ" چاپ کې لومړۍ مسرۍ داسې ده: "که جوړه شوك تللی وقبر ته دربغه".
"پ" چاپ: "که جوړه تللی شوك وقبر وته دربغه".
"ق، ک" چاپ: "که شوك قبر ته جوړه ورتللی دربغه".
د "خ" دوهمه نسخه: "که جوړه تللای شوك وقبر وته دربغه".
مصوره نسخه: "که جوړه تلی شوك وقبر وته دربغه".

(۵) په قلمي نسخو کې "په دریا زه" راغلی دی.
د "خ" دوهمه نسخه: "په لوی دریا زه".

(۶) "ب" چاپ او د "پ پ" چاپ: "کاشکې نه وای په جهان کی څه ګویا زه".
"ق" چاپ: "کاشکي په دا جهان نه وای ګویا زه".
د "پ" لومړۍ نسخه: "کاشکې مه وی په جهان کې څه ګویا زه".
د "خ" لومړۍ نسخه: "چې رحمان د یار ثنا کولای نه شم کشکې مه وای په دنیا کې لوړ ګویا زه".
د "خ" دوهمه نسخه: "کشکې نه وای په جهان کې خو پیدا زه".

ای زما د زړه آرامه راشه راشه ‌ ‌ سرو قده ګل اندامه راشه راشه

چې همه واړه خوبان دې مقتدیان دې [۱] ‌ ‌ د همه واړو امامه راشه راشه

بې تا نشته هیڅ حرمت [۲] د عاشقانو ‌ ‌ د مشتاقو احترامه راشه راشه

خدای زده بیا به هسې وخت وي که به نه وي ‌ ‌ زه وېرېږم له ایامه راشه راشه [۳]

نن [۴] هنګام دی که جفا کړې که وفا کړې ‌ ‌ چارې نه شي بې هنګامه راشه راشه

دا جهان د مسافرو یو رباط دی ‌ ‌ تله دي تله دي له دې ګرامه راشه راشه

پري رویه، سنبل مویه، ملک خویه ‌ ‌ عنبر بویه لاله فامه راشه راشه [۵]

شپه لا پرېږده بې تا و ځ راباندې شپه شوه [۶]

د ځان ماه تمامه راشه راشه

۲۰۵ ‌ ‌ ۲۲۸۸

په دوران مې [۷] هسې رنګ دلبر پیدا شه ‌ ‌ ګویا بل د لمر د پاسه لمر پیدا شه

یا طالع د زمانې یا بخت زما دی ‌ ‌ چې دا هسې رنګ شیرین بشر پیدا شه

چې قاصد د ورک یوسف زېرې پرې وکا [۸] ‌ ‌ د یعقوب د سترګو بیا نظر پیدا شه

عشق دې دا که یو فساد دی نه پوهېږم ‌ ‌ په جهان کې چې دا شور و شر پیدا شه

درېغه نخل د عشق مه وی زرغون شوی [۹] ‌ ‌ چې له شاخ یې د غم ثمر پیدا شه

---

(۱) د "ب" لومړی نسخه : "چې همه خوبان دې واړه مقتدیان دی"
نوری قلمي نسخې : "چې دا نور خوبان دې واړه مقتدیان دی".

(۲) د "خ" په لومړی نسخه کی د "حرمت" پر ځای "حاجت" راغلی دی

(۳) دا بیت د "خ" په دوهم نسخه کی نشته.

(۴) دا بیت د "خ" په دوهم نسخه کی نشته او د "خ" په لومړی نسخه کی د "نن" پر ځای "دا" راغلی دی.

(۵) قلمي نسخې : "پری رویه، فرښته خویه عنبر مویه سنبل مویه لاله فامه راشه راشه".

(۶) دا مسری په "ب" چاپ او "ق، ک" چاپ کی داسی راغلی ده : "شپه لا پرېږده رونا و ځ راباندې شپه شوه".
د "خ" په دواړو قلمي نسخو کی د "شوه" پر ځای "ده" راغلی دی.

(۷) په "ق، ک" چاپ کی د "مې" پر ځای "کښې" راغلی دی.

(۸) د "ب" له لومړی نسخې نه پرته په نورو ټولو کی د "وکا" پر ځای "وکړ" راغلی دی.

(۹) په مصوره نسخه کی د "زرغون شوی" پر ځای "پیدا شوی" راغلی دی.

ملائیك دعشق له غمه خبر دي [1] — خوهم مالره داسخت سفر پیدا شه
یو د ترکو بې نیازي بل عاشقي شوه [2] — په پرهر باندې مې بل پرهر پیدا شه
دنا اهل زوي پلار به څه ښادي کا — چې له پښته یې لئیم [3] پسر پیدا شه
بیا به روغ دعاشقۍ له رنځه نه شي — په هر تن کې چې دغم [4] اثر پیدا شه

٢٠٦ — ٢٢٩٨

چې هنر عیب کوي، عیب هنر کا [5]
د رحمان په دور دا هنر پیدا شه

چې نصیب یې [6] سینه چاکه زړه افګار شه — جرس څکه په فریاد او په چغار شه
چې نالا دعاشقۍ په عاشق وشوه — دغفلت له خوبه پاڅېده بېدار شه
عبادت دریا کار څه په کار نه دي [7] — لکه غوک هسې [8] په بحر کې مردار شه
دجاهل زهد په زهد حساب نه دی [9] — لکه مال په خمر خرڅ د خمر خوار شه [10]
مشقت دنادانو واړه پوچ دی — لکه بې بارانه ابر تش غبار شه
علمیت دبې عملو عالمانو — لکه ګنج [11] دکتابونو په [12] خره بار شه
چې یې کاندي ونا اهل وناقابل ته — نصیحت دناصحانو کوم [13] په کار شه

---

(۱) دا مسرۍ په "ق، ک" چاپ کې داسې راغلې ده: "ملائیك دعشق له زخمه خبر نه دي".
(۲) دا مسرۍ د "پ پ" چاپ کې داسې راغلې ده: "یو د ترکو عاشقي بل بې نیازي شوه" او د "ق، ک" چاپ کې د "شوه" پر ځای "ده" راغلی دی.
(۳) دا بیت د "پ" په دوهمه نسخه کې نه دی راغلی او د "خ" په دوهمه نسخه کې یې لومړۍ مسرۍ داسې راغلې ده: "دنا اهلو مور و پلار به څه ښادي که".
د "خ" په لومړۍ نسخه کې د دوهمې مسرۍ د "پسر" پر ځای "بشر" راغلی دی.
(٤) د "پ" له لومړۍ نسخې نه پرته په نورو ټولو کې "دغه" راغلی دی.
(۵) په "ق، ک" چاپ کې دا مسرۍ داسې ده: "چې هنر په عیب کوي عیب په هنر کا".
(٦) د "پ" په لومړۍ نسخه کې د "یې" پر ځای "مې" راغلی دی.
(۷) دا مسرۍ په چاپي دیوانونو کې داسې ده: "عبادت دریا کار هېڅ په کار نه دي". د "خ" په دواړو قلمي نسخو کې، د "پ" په دوهمه نسخه او مصوره نسخه کې داسې ده: "عبادت دریا کارو په کار نه دي".
(۸) په "ق، ک" چاپ کې "غوندې" راغلی دی.
(۹) په مصوره نسخه او د "خ" په لومړۍ نسخه کې دا مسرۍ داسې ده: "د زاهد زهد په زهد حساب نه دی".
(۱۰) د "خ" په دوهمه نسخه کې دا مسرۍ داسې ده: "لکه مال چې په خره خرڅ د خمر خوار شي".
(۱۱) د "خ" په لومړۍ نسخه کې "پېټی" راغلی دی.
(۱۲) په قلمي نسخو کې د "په" پر ځای "د" راغلی دی.
(۱۳) دا بیت د "خ" په لومړۍ نسخه کې نه دی راغلی، په "پ" چاپ، "ق، ک" چاپ، مصوره نسخه، د "پ" دوهمه نسخه او د "خ" په دوهمه نسخه کې د "کوم" پر ځای "څه" راغلی دی.

۲۰۷ — ۲۳۰۶

د رحمان کلام په غوږ د بې هنرو
لکه دُر(۱) په لاس د طفل هسې خوار شه

په دنیا کې له دنیا ګوښه کنار شه
سمندر غوندې په اور کې ګلعذار شه

پس له مرګه که ژوندون غواړې سر ګیا کړه(۲)
په پر بکړي سر بیا نوی مرغزار شه

دا ترخې اوبه به څه کوې د بحر
خود بخپله د ګوهر په څېر آبدار شه

بې له خدایه نور د هیچا منت مه کړه(۳)
په وچ کاني باندې ونه د کوهسار شه

که دوني په څېر ګل او میوه غواړې
ځان په نمر کړه سایه بان دهر خاکسار شه(٤)

دست په دست که د خپل کار په درستول یې
لا تر ځان ور رومبی ولاړ د بل په کار شه(۵)

که دې وېره شي له خپلې درماندګیه
د درماندو دستګیري کړه خبردار شه

که هوا دې د جنت په خاطر ګرځي
خاک نشین په آستانه د هغه یار شه

که په توره تاریکۍ کې رڼا غواړې
ننداره چې د یار د زلفو د رخسار شه

که په کار دې د سروشو نه وشېرینې وي
د خپل ځان په وینو سور لکه انار شه

که راضي یې چې دې باغ شي د زړه سبز(٦)
په ژړا لکه باران د نوبهار شه(۷)

۲۰۸ — ۲۳۱۸

د رحمان په عاشقۍ کې ستړې وشوې(۸)
چې څوک والي عاشق روند دی هغه خوار شه

---

(۱) د "خ" په لومړۍ نسخه کې "ګل" راغلی دی.
(۲) د "خ" په دوهمه نسخه کې "ته سرپېچي کړه" راغلی دی.
(۳) د "پ پ" چاپ: "بې له خدایه د هیچا منت بار مه شه".
(٤) د "خ" دوهمه نسخه: "ځان کړه ځمکه سایه بان دهر خاکسار شه".
(۵) چاپي دیوانونه: "لا پخوا تر ځان رومبی د بل په کار شه".
د "خ" لومړۍ نسخه او مصوره نسخه: "لا تر ځان رومبی روان د بل په کار شه"
(٦) د "پ پ" چاپ: "که دې زړه وي چې دې باغ د زړه سبز شي".
(۷) د "پ" په نسخو کې: "کوهسار" راغلی دی.
(۸) د "خ" دوهمه قلمي نسخه کې "واشوې" راغلی دی.

بیا مې زړه د تورو زلفو مسخر شه — چپ و راس مې د حبشو تور لښکر شه
هر طرف مې د دعا غشي گوزار کړه — ولې یو هم هسې نه وُ چې کارگر شه
وهر لور ته چې غوږ باسمه غوغا ده — یا ناري د بېلتانه دي یا محشر شه
واعظان خو وعظ کاندي بارې څه کا — چې د عشق په لیونیو یې گذر شه[1]
چې پدر غوندې یې ما ته نصیحت کړ[2] — په د بدن دستا هغه زما پسر شه
ستا په در کې چې پراته دي نېکبختان دي — چې دستا له دره ووت در په در شه[3]

۲۰۹

د عشق زخم به څوک څه گنډي رحمانه[4]
چې گنډون یې په پرهار باندې پرهر شه

۲۳۲۵

هیڅ مې نه زړه نه پوهېږم د اختر شه — چې دلدار مې د اغیار په شکل وخېر شه
زمانه مې د رقیب له لاسه وژني — چې مې سپې گانه هغه را باندې شېر شه[5]
د هجران غمونو هسې په عذاب کړم — هغه غم[6] چې مې لرل گانه اوس تېر شه
چې په تېغ مې لوې کړي سزا مې داده — سبه چې غوږ مې زړه د ترکو په شمشېر شه
تېر ساعت به د هیچا په لاس کښېنوزي — اوس به څه وایم وچا وته چې تېر شه[7]
چې مې نوش د هجران پیاله کړه تلخه — د وصال لذت مې ټول زهر گنډېر شه[8]

---

(۱) دا مسرۍ په پېښور چاپي دیوانونو کې داسې راغلې ده: "چې د عشق په لیونو باندې گذر شه"
(۲) دا مسرۍ په پېښور چاپي دیوانونو کې داسې راغلې ده: "چې پدر غوندې وما ته نصیحت کا".
(۳) دا بیت په ټولو قلمي نسخو کې نه دی راغلی او په دې وارد چاپي دیوانونو کې راغلی دی.
(٤) دا مسرۍ د "خ" په لومړي نسخه کې داسې راغلې ده: "د عشق زخم به دې څوک څه کړي رحمانه".
په "ق، ک" چاپ کې داسې راغلې ده: "د عشق زخم به څوک وگنډي رحمانه".
(۵) دا مسرۍ د "پ" په دوهمه نسخه کې داسې ده: "چې مې نه گانه هغه را باندې تېر شه".
په مصوره نسخه کې داسې ده: "چې مې سپې گانه را ته شېر شه".
(٦) په "پ" چاپ کې د "غم" پر ځای "عیب" راغلی دی او په "ق، ک" چاپ کې دا مسرۍ داسې ده: "هغه عیب چې به مالن گانه اوس دېر شه".
(۷) دا مسرۍ د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې راغلې ده: "اوس به حال وچا ته څه وایم چې تېر شه".
(۸) دا بیت د "پ" په لومړي او دوهمه نسخه کې، او هم د "خ" په لومړي نسخه او مصوره نسخه کې نشته. د "خ" په دوهمه نسخه کې یې دوهمه مسرۍ داسې ده:
"د وصال لذت چې هسې رنگ گنډېر شه". په "پ" چاپ کې دا مسرۍ داسې ده: "د وصال دولت مې کل زهر وگنډېر شه".
په "ق، ک" چاپ کې داسې ده: "د وصال لذت مې کل واړه گنډېر شه".

۲۱۰ — ۲۳۳

چې يې نه په وفا ياد نه په جفا وي
سکه رحمان دغه يار له دله هېر شه (۱)

پاخه يو ځله سېراب د عشق په جام شه — په ساغر د ماه و مهر مې آشام شه
له اوله بندګي بيا ازادي ده — که مقصود د آزادۍ لرې غلام شه
د صياد له وحشتونو خپل سر خلاص کړه (۲) — لکه مرغ خانګي پخپله رام شه
ژوندی ځان په ځمکه خښ کړه لکه تخم — که لوېي غواړې د خاور و په مقام شه
درست جهان د ګلېنه په خوی وخوره — لکه ځمکه هسې لاندې تر اقدام شه
په نيستي کې د هستي مرتبه ګوره — ننداره چې په وېرانۍ کې د خپل بام شه
و دښمن وته پخپله عيب مه وايه (۳) — ځان پخوا تر مرګه وو ژنه مدام شه
په مستانو کې د عقل ښښتن غل دی — که په نور د خلقو خاص يې دالته عام شه
اې رحمانه د بلبلو ژبه زده کړه (۴)

۲۱۱ — ۲۳۴

دغه پسه په صفت د ګل اندام شه

د دنيا د سود د پاره غمګين مه شه — غم د دين وداېمان کړه بې دين مه شه
هر ګره ګره کشای لري کم بخته — نا اميد له خدايه غوټه جبين مه شه
د بېر خفته دي دا رنده چې دانه چين شي — خوږې آب و دانه شته دانه چين مه شه

---

(۱) د "پا پا" چاپ : "جو له رحمان دغې يار له دله هېر شه".
د پېښور "ق، ک" چاپ : "رحمان ځکه دغه يار له دله هېر شه".
د "خ" لومړی نسخه : " سکه رحمان دغه يار له دره هېر شه".
د "پ" دوهمه نسخه : " سکه د رحمان دغه يادله دله هېر شه".
د "خ" دوهمه نسخه : " چې يې نه په جفا ياد نه په وفا وي سکه رحمان دغه يار له دله هېر شه".

(۲) "ق، ک" چاپ : " له اوله د صياد که ځان خلاص غواړې".
مصوره نسخه : " د وصال له وحشتونو خپل سر خلاص کړه".

(۳) چاپي ديوانونه : " و دښمن وته خپل حال پخپله وايه". د "پ" نسخې او د "خ" لومړی نسخه : " او دښمن ته عيب خپل پخپله والې".

(٤) قلمي نسخې : " اې رحمانه د بلبلو لفظ زده کړه".
د "خ" لومړی نسخه : " اې رحمانه د بلبل لفظ زده کړه ګوره".

هر مرغه چې د بل غوښې خوري مردار دي — ځان حلال کړه لکه زاغي شاهين مه شه

د ذرې په څېر آفتاب په طلب خپل کړه (۱) — لکه تیږه هسې پروت په زمين مه شه

کار په تش لستوڼي نه کېږي بې لاسه — لاس په بن يره کړه بې لاسه آستين مه شه (۲)

عاشقي او خود بيني دي سره لري — که مطلب دې عاشقي ده خود بين مه شه

په خپل کور کې دې سفر دی که پوهېږې — مسافر د هندوستان او د چين مه شه

خپل تابوت درته ولاړ زين کړی آس دی — ته په زېږ مر د بل آس و د زين مه شه

چې تقوی دیانت نه لري ځانته

۲۱۲ — ۲۳۵۱

د دې هسې همنشين، همنشين مه شه (۳)

په امید دګانده وخ زېږور مه شه (٤) — نقد نسیه ځبله بېل کړه او تر مه شه

په امید امید یې خلق نا امید کړل — د فلک له رهزنۍ بې خبر مه شه

د دنیا بادشاهان خواست کړي له فقیره (۵) — ته بادشاه د هسې ملک شه خواستگر مه شه

د هُمای په څېر طمع کړه وچ هډوکي — لکه مچ طالب د شهدو شکر مه شه

ځان صدف غوندې وخاورو ته کړه څرمه — لکه ځګ هسې د بحر په سر مه شه

ډېر عزيزي موم دلان تر سنګ لاندې — ته يو ښا خلکي شه (٦) د او سنکو گوهر مه شه

حیوانات هم په تسبیح د خدای مشغول دي — ته انسان یې تر حیوانه بتر مه شه

نفس شیطان سره وکفر ته وباسي — رحم فهم په ځان وکړه کافر مه شه (۷)

---

(۱) "ق" چاپ او مصوره نسخه کې د "خپل کړه" پر ځای "ګرځې" راغلی دی.

(۲) "ق" چاپ او "ق، ک" چاپ: "لاس په توره کړه بې لاسه آستين مه شه".
مصوره نسخه: "لاس پکښې کړه بې لاسونو آستين مه شه".

(۳) چاپي دیوانونه او مصوره نسخه: "د دې هسې هم نشينو نشين مه شه".

(٤) چاپي ديوانونه: "په امید د آینده و زېږور مه شه".

(۵) قلمي نسخې: "د دنیا پادشاهان خواست کا له فقراو — ته پادشاه د هسې ملک بې خداستګر مه شه".
"خ" په ځینو نسخو کې د "فقراو" پر ځای "قصرونو" راغلی دی.

(٦) قلمي نسخې: "يوڅو تلی شه" او د "خ" په دوهمه نسخه کې "يوڅو ښا خلکي شه" راغلی دی.

(۷) دا بیت په قلمي نسخو کې نشته.

تپ ړانده وي عاشقان د یار په عیب ۔۔۔ ته تپ ړوند د هغه یار په هنر مه شه

دغه ځای د بید لا نو ری ملاح نشاه

۲۱۳ ۔۔۔ ۲۳۶۱

د دلبرو په کوڅه د لا ور مه شه

چې له ستر ګو مې خوناب د زړه عیان شه[1] ۔۔۔ له نظره مې هر سنګ د ر و مرجان شه

خراب زړه چې مې ژړل د یار له غمه ۔۔۔ بیا په اجر د هغې ژړا خندان شه[2]

کمینی له جمله آفتو خلاص کړم[3] ۔۔۔ لکه خاوري د دښمنو په چشمان شه

د غصې زهر یې شهد شول په صبر[4] ۔۔۔ د خلیل په خبر آتش پري ګلستان شه

عشق یو دادی په عاشق له خپله خدا ۔۔۔ هسې نه چې وهرچا و ته عیان شه[5]

چې د یار زلفي رخسار مې په زړه نقش شو ۔۔۔ خپل خلوت مې خراسان و هندوستان شه

د رنځور علاج تا رخه تا رخه داروي ۔۔۔ دغه درد دی چې هم درد و هم درمان شه

چې د استا د خولو بوی ورباندې راځي ۔۔۔ د عطار په مخ د اوښکو رود روان شه

علامت د استغنا به یې څرګند وي ۔۔۔ هغه څوک چې تیر ترځان و تر جهان شه

د ګریوان په چاک کولي خه لا رغړوي[6] ۔۔۔ چې څبګر یې ړومبي چاک تر ګریوان شه

عشق د یار په ړانه وچولي ولجه دی ۔۔۔ خو چې وچولي یې غوته کړه تاوان شه[7]

نادانان به د دنیا غمونه کاندي ۔۔۔ مړ د هغه دی چې په زړه مړ د خپل ځان شه

---

(۱) په "ق" چاپ کې "روان شه" راغلی دی.

(۲) دا بیت په مصوره نسخه کې نشته.

(۳) "ق، ک" چاپ کې لومړی مصرع داسې ده: "کمینه نه له جمله افتو خلاص کړم".

(٤) "ق" چاپ: "د غصې زهر یې شو بدل په صلح".
د "خ" د هم نسخه: "د عیسی زهر یې شهد شو په صبر".

(۵) دا بیت په قلمي نسخو کې نشته

(۶) دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته.
په "ق، ک" چاپ او د "پ" په لومړی نسخه کې د "لا رغړ" پر ځای "پروا" راغلی دی.

(۷) دا بیت د "خ" له لومړی نسخې او مصوری نسخې نه نقل شو.

نشانه د نادانۍ به نوره څه وي — چې سړی په خپل ګوزار[1] باندې پښېمان شه

آدمیت څه په دولت نه دی رحمانه

۲۱۴ — ۲۳۷۵

بت که جوړ شه د سرو زرو نه انسان شه

که په عقل یې لازم په کار نه شه — که له بخته مې یاري غوښته یار نه شه

غرونه غرونه خوب په ځاځکي او بوښتي[2] — یار په سیند زما د اوښکو بېدار نه شه

معلومېږي چې زه کم بخت د درست جهان یم — چې د درست جهان دلدار مې دلدار نه شه

ما غندي او رقیب ستایي طالع ګوره — چې سړی ورته د سپي په مقدار نه شه[3]

کړې یې سل ځله اقرار راسره وکړ[4] — دا زما نا قرار زړه په قرار نه شه

د پېر غمونه د چې یې وخوړه مې بخپله[5] — په دنیا کې مې بل هیڅوک غمخوار نه شه

که مې سل نصیحتونه ورته وکړل[6] — هغه خدای یې لار کړي په لار نه شه

سهل کار دی که رحمانه په زړه آزار شوم

۲۱۵ — ۲۳۸۳

چې خاطر د هغې مستې آزار نه شه

هر ساعت که څه ګوزران دی بې مخلصه — هزار بار ارمان ارمان دی بې مخلصه[7]

که څوک وايي چې له ځانه شیرین نشته — ولې ما ته ځان تاوان دی بې مخلصه

لکه شمع په ورځ مړ مړه د شپې سوځم — تمام عمر مې نقصان دی بې مخلصه

په بلبل کله بهار کله خزان وي — په ما کل واړه خزان دی بې مخلصه

---

(۱) په "ب" چاپ، "ق" چاپ، د "پ" لومړی نسخه او د "خ" په نسخو کې "ګر داړ" او په "ق ک" چاپ کې "حمل" راغلی دی.

(۲) د "خ" لومړی نسخه او مصوره نسخه: "غرونه غرونه خوب په یو ځاځکي او به شي".

(۳) دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته.

(۴) د "خ" دوهمه نسخه: "که سل ځله نه اقرار راسره وکړي".

(۵) دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته، په نورو قلمي نسخو کې لومړی مسره داسې ده: "بې غمزه مې چې یې وخواړه بخپله". د "خ" لومړی نسخه او مصوره نسخه: "بې غمونه چې یې وخوارړ یو د بله".

(۶) قلمي نسخې: "که مې سل نصیحتونه ورته وکړه".

(۷) دا غزل په قلمي نسخو کې نشته.

که شبنم همیش د نور د ابانده وي — په ما کاني د آسمان دي بي مخلصه
د پر غمو نه د هجران رابانديې تسپر دي — اوس يو دم رابانديې گران دي بي مخلصه
د آشنا د ميني اور وما ته گل دی — گل داور په دود سوزان دي بي مخلصه
په وصال کې مې نه مرگ ليده نه تبه — اوس مې مرگ په هر زمان دي بي مخلصه
زه حيران د هغو خلقو په روزگار يم — چې ژوندون ورته آسان دي بي مخلصه

د خان زړه دمه په هېڅ نه شي
مسافر غوندې حيران دي بي مخلصه

۲۱۶ ۲۳۹۳

چې ښکاره شي راته راز د يار له پطه[1][2] — پرېشان شوم په نمط حيران له دې نمطه[3]
خوږک به خر د وفا طمع کاله ښکليو — چې د طمع لفظ خالي دی له نقطه
په کشتي د عاشقي به پل کښېښېږدم — که شم داخل خارج د غم له شطه
پري کړه سر چې شي منصور وهر اشياته — تېره والي د قلم راځي له قطه
بيابه څوک زړونه محبوبه په منګل وړي — هسې را خله لکه تکه سپينه بطه
ديار غم به دې حال په زړه مېشته شي — که دې غير غمونه شي له دله حطه
نن کاغذ راته ښيار د يار راوړي — ګوره څه به شي معلوم له د غه خطه

چې مې قد د يار دراز او نه کوتاه دی
خان والخسته په لاس څه اوسطه

۲۱۷ ۲۴۰۱

د هغو چې په هجران شي سينه داغ — نور بې خبر دي له ارامه له فراغه[4]
د غه ځای دي د بلبلو د تو تيا نو — د چمن له ګلو بېرته او سه زاغه

---

(۱) داغزل د "ح" له دوهمي نسخي نه نقل شو.
(۲) ديار له پطه = ديار له پته ، د قافيي د سمون په غرض يې "پت" په "پط" ليکلی دی.
(۳) نمط = نمت = دالې هم د قافيي د سمون په غرض په "ط" ليکلی دی.
(۴) داغزل د "ح" له دوهمي قلمي نسخي نه نقل شو.

په شمام يې سرتر پايه معطر شوم — تن د يان د زلفو بوی راغی له باغه

تر قيامته به مخمور يې خوده اوسم — که يو ګوټ راکا ساقي له دې اياغه

زه به ستا په در کې عمر واړه تېر کړم — د مجنون مې تل روزګار کېده له راغه

ستا په نور به زه [بالان] صورت ستي کړم
که مې وويني يو ځل جبين چراغه

۲۱۸ — ۲۴۰۷

ما به ولې کړو فرياد او فغان دريغه — که آشنا وي راسره جا ودان دريغه (۱)

له فراقه خ د زړه په وينو وينځم — کاشکي نه وي مرګ بېلتون په جهان دريغه

فرزانه بلبل په وخت د بهار ژاړي — چې آخر به باندې راشي خزان دريغه

زه حيران ورته ولاړ په سترګو وينم — چې دايم راځي د روی ياران دريغه

يو ذره مې په طاعت کې تېره نه کړه — ګران بها عمر مې لاړ رايګان دريغه

سرکښي کې تېر تر حده بېچاره يم
که قوت د طاعت راکړې و جهان دريغه

۲۱۹ — ۲۴۱۳

که يو ځل مې هغه يار ولېدی دريغه — سرفراز مې سرګردان ولېدی دريغه (۲)

چې تمام جهان په عقل غلبل کړمه — زېرمرېزه مې پيکان ولېدی دريغه

د وجود ګلزار يې درست سره اغزي شو — خارستان مې باغستان ولېدی دريغه

روغ صورت لکه بادشاه صحت يې تخت دی — ناست په تخت مې شاه جهان ولېدی دريغه

د تن ښهر يې خرابه خرابي شوه — بيا مې داخراب ودان ولېدی دريغه

لکه زه چې له مخلوقه ګريزان يم — سګ مې هسې ګريزان ولېدی دريغه

دا سبق راته تعليم شکستګي کړه — چې روغ کار مې شکستګان ولېدی دريغه

---

(۱) دا غزل يوازې او يوازې د "پ پ" چاپي ديوان کې راغلی دی په نورو چاپي ديوانونو او ټولو قلمي نسخو کې نشته.

(۲) دا غزل د "پ پ" چاپي ديوان نه نقل شو.

سخت ساعت ځمکه آسمان راته یکسان کړه — فرق د ځمکې د آسمان ولیدی دریغه
و دې خپلې حیرانۍ وته حیران یم — چې حیران صورت شادان ولیدی دریغه
د قرآن او د حدیث په کتو خوښ شوی — بیا په لاس حدیث قرآن ولیدی دریغه
چې زما زحمت پېغور ګڼي وما ته — ما هغه د ځان په شان ولیدی دریغه
خپل یاران مې له زحمته په ژړا دي — ما د غه یاران خندان ولیدی دریغه
د آشنا زلفې مې ولیدې په لاس کې — بند په لاس د هندوستان ولیدی دریغه
صبح و شام مې ګدایي د یار د در کړې — په دا کار مې ځان مهمان ولیدی دریغه
درخانۍ او آدم خان په ارمان لاړل — لرې ماله زړه ارمان ولیدی دریغه
مخامخ مې ګفتګوی له یار سره کړې — د یار ما د غه احسان ولیدی دریغه

چې خطا دې واړه عفوه کړې رحمانه
یار مې هسې مهربان ولیدی دریغه

(۲۴۳۰) ۲۲۰

ته ناحق په ما کینه کړې کینه ناکه — په کینه به آیینه نه کړې ته پاکه(۱)
څوک بې وجهې چا ته توره تیره اخلې؟(۲) — خپل عمل دې چې د نیا یې کړه هلاکه
چې خندایې د بلبل په آه سړ کړه — خدای د ګل ګریبان پاره کړ سینه چاکه
ځکه سپینې شوې اول د حباب سترګې — چې له بغضه په دریاب چوې تناکه(۳)
که تن ځمکه کړې زړه تخم باران اوښکې — لکه نخل سر به وکاږې له خاکه

---

(۱) د "پ" نسخې: "په کینه به آئینه نه کړې خیباکه".
د "خ" لومړی نسخه: "په کینه به آئینه نه کړې خپل پاکه".
په مصوره نسخه او د "پ" په دوهمه نسخه کې داسې ده: "په کینه به آئینه نه کړې څه پاکه".
د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې ده: "په کینه به آئینه څه کړې پاکه".
(۲) د "پا" په لومړی نسخه کې دا مسره داسې ده: "څوک بې وجهې چا ته توره تیره اخلې".
د "خ" په دوهمه نسخه کې "توره تیره" راغلي دي او د "پا" په دوهمه او د "خ" په لومړی نسخه کې د "بې وجهې" پر ځای "ناحق" راغلي دي.
(۳) دا مسره په تمو لو چاپي دیوانو کې په لاندې ډول راغلې ده: "چې له بغضه په دریاب کې چوی تناکه".

بالا دست به شي هاله په نورو ونو[1] — کړه تعلیم د زبردستي و اخلي[2] له تاکه

بیا به نه مومې د ترکو واك و حكم — څو ونه وځې د جهان له جمله[3] واكه

د هغه جهان ژوندون به هغه[4] مومي — چې لاس وکا بې ددې جهان له ژ واکه[5]

ته چې ژغورې سر و مال په عاشقي کې — عاشقي دا هسې چېرې وي کا واکه[6]

چې دا هسې بزرگ مېلمه وکور ته بیایې — اول غولی پاکیزه کړه له خاشاکه[7]

په دوی کې به ورنه شي تر توحیده — څو ضمیر دې خالي نه شي له اشراکه[8]

دا همه واړه حجاب دی چې لیده شي — نور دې حسن بالاتر دی تر افلاکه[9]

په ظاهر لباس غلط د سړي مرشد — مېنځ یې گوره له چغزی اوله متاکه[10]

اولیاء په جهان ځکه ښکاره نه دي — چې پاك ځوي خپسر[11] نغاړي له ناپاکه

۲۲۱

هیڅ وفا یې له هیچا سره و نه کړه
تر و ماځ به څه مانه[12] کا له افلاکه

۲۴۴۵

---

(۱) د "پ" په دوهمه نسخه کې "خلق" راغلی دی.

(۲) د "پ" په لومړۍ نسخې ———— کې "اخلي" راغلی دی.

(۳) په چاپي دیوانونو کې د "درست جهان له واکه" راغلی دی او د "پ" په لومړۍ نسخه کې "له جمله ژ واکه" راغلی دی.

(٤) په چاپي دیوانونو کې "هاله" راغلی دی.

(۵) د "خ" په دوهمه نسخه کې دا مسرۍ داسې ده: "چې ځان وباسي ددې جهان له شراکه".

(٦) په "پ" چاپ او د "پ پ" چاپ کې داسې ده: "عاشقي داهسې چېرې ده کا واکه".
او په "ق، ک" چاپ کې داسې ده: "عاشقي داهسې کله ده کا واکه".
مگر په مصوره نسخه کې داسې ده: "اول غولی پاکیزه کړه له خاشاکه".

(۷) دا بیت په مصوره نسخه او د "خ" لومړۍ نسخه کې نشته.
لومړۍ مسرۍ یې په چاپي دیوانونو کې داسې ده: "چې داهسې لوی مېلمه ته کور ته بیایې".

(۸) دا مسرۍ په مصوره نسخه کې داسې ده: "خود خپلسه خالي نه شي له اشراکه".

(۹) په چاپي دیوانونو، مصوره نسخه، د "خ" لومړۍ نسخه او د "پ" په دوهمه نسخه کې "له ادراکه" راغلی دی.

(۱۰) قلمي نسخې: "په ظاهر لباس غلط د دنیا مرشد میان یې گوره چې چغزی دی که متاکه".
د "پ" په دوهمه نسخه کې یې لومړۍ مسرۍ داسې ده: "په ظاهر صورت غلط د دنیا مرشد".

(۱۱) په مصوره نسخه، د "خ" په دوهمه نسخه کې "خیل سر"، او د "خ" په لومړۍ نسخه کې "خپل ځان" راغلی دی.
دوهمه مسرۍ یې په "ق، ک" چاپ کې داسې ده: "چې پاك روی ځ سر نغاړي له ناپاکه".
په "پ پ" چاپ کې داسې ده: "چې پاك روی پسند وسر نغاړي له ناپاکه".

(۱۲) په "پ" چاپ کې "مانه" راغلی دی.

هسې نه چې زما يار واړه جفا کړه — صد چندان لکه جفا هومره وفا کړه (۱)

لکه زه چې په خپل يار باندې مين يم — يو په سله هومره مينه يار په ما کړه

نه يې (۲) وړې په احسان دې (مې) نه په جور — مجنون ځکه په ليلى پسې ژړا کړه

درست جهان د خوبرويانو ناز بردار دى (۳) — نه يوازې د غم ناز (٤) په ما و تا کړه

۲۲۲ — خشکل نه گوري ځان وهغه مخ ته (۵)
چې فرښتې يې هم د حسن تماشا کړه (۶) — ۲٤۵۰

چې خېمه يې (۷) د سيلاب په مخ شوه لکه — د حباب تماشا گوره تر د مکه

هيڅ وېسا نه ده په کار د يار په سوړې — که ترې لاندې وې دا وسپنو کوډيکه (۸)

داد لاندې به هم واړه چيت پيت شي — مگر سر وي چا وکښلى تر فلکه

چې په اصل خداى نسکور وي پيدا کړى — خوړک به څه خوړي د دې دهر له سبانکه (۹)

چې دښمن يې وي له دوسته اې ولې (۱۰) — د هغو احتياط بويه له کومکه

زاشه واچوه د نفس وخولې ته خاورې — خوړې نه ده خوله د گور په خاورو ډکه

هر چې مړ که يې د گور په خاورو خوله شي — په هغو باندې حرام ده نوره څکه

---

(۱) دا غزل د "ب" په دوهمه نسخه کې نشته.
(۲) د "ب" په نسخو کې د "يې" پر ځاى "مې" راغلى دى.
(۳) په مصوره نسخه او د "خ" دوهمه نسخه کې "ناز پروړ" راغلى دى.
(٤) د "خ" په لومړۍ نسخه کې "يار" راغلى دى.
(۵) دا مسره په "ب" چاپ او "پ پ" چاپ کې داسې ده: "نه به گوري رحمان خشکل هغه مخ ته".
دپښور په لومړۍ دوو چاپي ديوانونو کې داسې ده: "نه به گوري رحمان خړنگ هغه مخ ته".
د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې ده: "خشکله به نه گوري رحمان د هغه مخ ته".
(۶) دا مسره په چاپي ديوانونو کې داسې ده: "فرښتې چې يې د حسن تماشا کا".
په مصوره نسخه کې داسې ده: "چې فرشته يې هم د حسن تماشا کا".
(۷) په قلمي نسخو کې "چې يې خوند د سيلاب په مخ شوه لکه" راغلى دى.
(۸) چاپي ديوانونه: "لاترې لاندې وي د خولې گوکه لکه".
د "خ" دوهمه نسخه: "که تر لاندې خوړک دا وسپنو کړيکه".
(۹) قلمي نسخې: "خوړک به څه خوري د سپهر له سبانکه".
په "ق" چاپ کې لومړۍ مسره داسې ده: "چې په اصل خداى نسکور دى پيدا کړى".
(۱۰) قلمي نسخې: "چې دښمن يې دوست نماى وي اې ولې".

۲۲۳ — ۲۴۵۸

کہ نور ځوك مبارك ړكا وبله نوري
و رحمان ته د خپل يار وي مبارك

گيله وتره په پري سره كلكه[1] — دروتي طمع ومه كړه له فلكه

هر سايل چې سوال د نان كا له آسمانه — گويا غواړي په كچكول كې اوبه مكه[2]

له آسمانه چې ځوك طمع د وفا كا — دغه طمع يې طاعون گنه[3] بې شكه

له ياران سره يې هسې بلې وړي — چې هر زخم يې بدتر وي[4] تر تهوكه

كه په چا يې شفقت او مرحمت شي — ظلم جور يې بدتر وي[5] تر . . .

مومبه نه شي هيڅ سري بې قناعته — كه يې خوند وي په سيم وزر ډكه

بيا به نه مومي كمال بې كيمياغه — كه خيمه يې وي[6] په عرش د پاسه لكه

كه جهان په نور عالم باندې فراخ دى — په تنگ چشم باندې تنگ شي تر څپكه[7]

د دې دهر په يارانو كې آب نشته — كه يې غواړې تر سما وتر سمكه

تر ځې[8] او بنكې د عاشق آب و نمك دي — خداى دې نه كا ځوك بې آب وبې نمكه

۲۲۴ — ۲۴۶۹

دا درازې انديښنې مدكره رحمان
د دنيا چارې په تلو دي تر دمكه

كه په هجر كې ځوك ما پوښتي له حاله — حال خو دا دى چې ناتوان يم بې مجاله

زه ديان په ديدن څكه شتابې كړم — چې د عمر بقا نه وينم تر كاله

---

(۱) دا غزل په مصوره نسخه كې نشته.
(۲) "ق" چاپ او "ق، ك" چاپ : "گويا خير غواړي كچكول كې له اوبو بكه".
(۳) د "خ" په دوهمه نسخه كې "گنم" راغلى دى.
(۴) د "خ" لومړۍ او دوهمه نسخه كې "ستيره وي" راغلى دى.
(۵) دا بيت په "ق، ك" چاپ او "ق" چاپ كې نشته په نورو چاپي ديوانونو او "خ" په لومړۍ او دوهمه نسخه كې د "بتر دى" پر ځاى "تېر دى" راغلى دى.
(۶) په چاپي ديوانونو كې "دې دي" راغلى دى.
(۷) په چاپي ديوانونو كې "تر چشمكه" راغلى دى.
(۸) په "ق" چاپ، "ق، ك" چاپ او "خ" لومړۍ نسخه كې "تر شې" راغلى دى او "خ" په دوهمه نسخه كې "ډېرې" راغلى دى.

چې تر حسن تر جمال دې زار نه شوم | شرمنده یم د خوبانو تر جمال له
ته و ما ته نصیحت مه کړه ناصحه | عشق نې نیاز دی له ثواب له وبال له
بې دخپل آشنا د حسن له تعریفه | هېڅ مې مه پوښتنه له نوره قیل وقال له
ما د عشق په درس کې نور څه لوستي نه دي | بې له زلفو بې له خطه بې له خاله
په دنیا په آخرت مې دې خدای نه کا | بې نصیبه د مهرویانو له وصاله

۲۲۵ — ۲۴۷۷

کړیار سر په د بدن غواړي مرجاړو څه
د غه حکم رحمان کړی دی دلاله

خو تر میانه ورانه نه کړې د تن پوله | وبه نه رسې تر خدایه تر رسوله
خدای وتا ته دین دنیا په غوره کښېنو | تا دنیا کړه په داد وار وکې قبوله
تر حرص په هوړ نه بله بلا نشته | دا بلا دستا په خونه شوه نزوله
یو ساعت دخدای په ذکر مشغول نه شوې | تمام عمر دخپل ځان په غم مشغوله
چې باقي زندګاني په فاني پلورې | ځان په کوم دانش دانا بولې مجهوله
له خالقه روګردان شوې و مخلوق ته | بیا و ځان ته عاقل وایې نامعقوله
نصیحت لکه هلک در بانده تریخ شو | د دنیا په شیرینۍ پسې ملوله

۲۲۶ — ۲۴۸۵

چې رحمان غوندې خورسند نه شې په نوله
خلاص به نه شې په هېڅ رنګ د زړه له زوله

خبر نه یم چې یې زه وستم له کومه | بیا مې کومې خواته استوې چې درومه
لکه ړوند چې لاس د بل په اوږه کېږدي | هېڅ ژوره لوړه نه وي ورمعلومه
خدایه ما په سینه نرۍ لار کړه نالیدلې | لکه ورانه ما شوره چې وي(۱) سرګومه

---

(۱) په قلمي نسخو کې د "چه وي" پر ځای "هسې" راغلي دي.

خراب زړه مې تور و زلفو ته هوس کړې — بازې کبوتر د مار غه په ښکېر په لومه [۱]

هسې کوډې عاشقی را باندې وکړې — چې سنګین خاطر مې نرم شو تر مومه

چې یې هېڅ له خدایه ترس او وېره نه شي — الغیاث د دلبرانو له رسومه [۲]

کله را کاندي شراب د لعلو لبو — کله جام د زهر و را کاندي چې شومه [۳]

۲۲۷ — ۲۴۹۳

د مطلوب له طالبانو چې ځان شمېرې [۴]
اې رانه اول سیال شه بیا یې مومه

اعتماد [۵] به په دنیا کوې ترکومه — دا رفتار به په پسې شا کوې ترکومه

خوب به یې له مرګه ګرزې سپینه زېره — په روښانه ورځ به غلا کوې ترکومه

چې د دهر له یارانو وفا غواړې — صیادي به د عنقا کوې ترکومه

د پیري به علاج په دانګ په لوړ نه شي [۶] — دغه کار به په عصا کوې ترکومه

په غفلت به د خدا امید د مرحمت کړې — د ناسور د رنځ د وا کوې ترکومه [۷]

۲۲۸ — ۲۵۹۹

ته چې پند وایې ناصحه وران ته
شکایت به د قضا کوې ترکومه

شمع د دلبر ستر ګې عاشق پرې پروانه — ځان پرې خپل جلیا کاشي یې خونه ورانه [۸]

مطرپه معنی کې د دلبر د مینې بحر — شو صدف دستر ګو وار ه پرې په دردانه [۹]

---

(۱) دا بیت د "پ" په نسخه کې داسې دی: "خراب زړه مې لوړ و زلفو ته هوس کړه — ولې کبسوتم د مرغه په ښکېر په لومه".
د "خ" په درې دا ړو نسخو کې یې دوهمه مسره داسې ده: "ولې کبوت د مرغه په ښکېر په لومه".

(۲) قلمي نسخې: "الغیاث دی د دلبر ولده رسومه".

(۳) په مصوره نسخه او د "خ" په لومړۍ نسخه کې دا مسره داسې ده: "کله جام د زهر و راکړ چې یې شومه".

(۴) قلمي نسخې: "ته چې ځان طالب شمېرې د مطلوبانو — اې په ځان ترو که سیال یې بیا یې مومه".
د "خ" په دوهمه نسخه کې یې لومړۍ مسره داسې ده: "چې یې ځان طالب شمېرې له مطلوبانو".

(۵) په ټولو قلمي نسخو کې "اعتبار" راغلی دی.

(۶) دا مسره په قلمي نسخو کې داسې ده: "د پیري د علاج په دانګ و په لوړ نه شي".
د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې ده: "د پیري د علاج په دانګ و په دول نه شي".

(۷) دا بیت یوازې او یوازې د "خ" په دوهمه نسخه کې راغلی دی په نورو ټولو قلمي نسخو او چاپي دیوانونو کې نشته.

(۸) دا غزل یوازې او یوازې د "ب" په لومړۍ نسخه او د "خ" په دوهمه نسخه کې راغلی دی. د دې بیت دوهمه مسره د "ب" په لومړۍ نسخه کې داسې ده: "ځان په خپل جلیا کړه مرشه یې خونه ویرانه".

(۹) دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته.

غم مې د زړه وینې تر چشمانو رابهر کړې — اوښکې نه دي وینې وې لېږې شوې دانه[1]

زه په دا له ستر ګوسپند د اوښکو بیایم — یې چې ماهي د وصال وي په آب خانه[2]

شوه چشمه د ستر ګو ستا د غم په وینو صافه — خکه مې همېش اوښکې ځي بې روانه[3]

خیر دې دې وخوا عاشق ته ارزاني کړه — ته دلبر غني یې د خپل مخ په خزانه

اوښکو د فراق دې باندې زور وکړه رحمانه — هیڅ پروایې نه شي بې پروا هم مستانه[4]

۲۲۹ — ۵۰۷

عقل د دنیا دې په جفا سره مسلوب کړه

مکره مکره مکره هسې بده یارانه[5]

دېر عمر مې تېر کړ بیهوده په زمانه — نور دې زما سر وي او د تر کو آستانه

هیڅ مې حاصل نه کړه په شیخي او په تقوی کې — پس له دې مې وار دی هر چې شي په میخانه

شیخ و شیخي ورد و وظیفه او ذکر فکر — زه او ساقي جام و باده چنګ و ترانه

زه و زاهدانو ته حیران یم د وی و ماته — دیوانه به ده خند د وده به دیوانه[6]

ګنج د درو زار شه د عاشق تر خاطې اوښکو — نه خو ار د عقل نه د عشق یوه دانه[7]

تیغ د یار له لاسه په مري د عاشقانو — هسې لذت کاندي جو هر د میو پیمانه[8]

خدای له ره به ودر شم په سودا د یار له مخه — بل مقصود مې نشته په کعبه په بتخانه

زه له دېره مینې په تش بوی د یار شیدا شوم[9] — تل د لمد و ختولو او به دي بهانه

---

(۱) د "خ" دوهمه نسخه: "غم مې د زړه وینې له چشمانو راجهر بې — ولې چې بجهېږي د وصال دې آب خانه".
(۲) دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته.
(۳) د "خ" دوهمه نسخه: "شوې چشمې دستر ګو ستا د غم په اوښکو صافي — خکه همېش اوښکې ترې بجهېږي روانه".
(٤) د "خ" دوهمه نسخه: "هیڅ پروایې نه شي بې پروا یار دی مستانه".
(۵) د "خ" دوهمه نسخه: "عقل د رحمان دنیا سره مسلوب کړ — مکره یاره مکره هسې نه ده یارانه".
(۶) قلمي نسخې: "دیوانه به ده مېخند د وده به دیوانه".
(۷) دا بیت د "خ" په لومړۍ نسخه کې نشته.
(۸) چاپي دیوانونه: "هسې لذت کا لکه د میو پیمانه".
(۹) په چاپي دیوانونو او د "خ" په قلمي نسخو کې "شیدا یم" راغلی دی.

خکه زاهد زهد کا د یو جنت د پاره — سر بښندلی نه شي په ا و ربل د جانانه (۱)

گوره د منصور هسي په دار نه شي چمانه — مکړه دا د عشق خبري مستي زندانه (۲)

۲۳۰ — ۲۵۱۸

بله نښانه د عاشقي نشته نه ماخ لا نه (۳)

بي نام و نښان شه کړي غول په نښانه

تل ژړا فریاد کړم د دلبر پر آستانه — کله به وما ته مخ ښکاره که مستانه (۴)

زه لکه مجنون ولاړ په طمع د لیلا یم — اوس به لیلی راشي پر سپین مخ زلفي شانه

را غلم ستا زیارت له کړي زړه یقین نو ته شلي — تمیک پیر وان بي دواړه پیره ستا دي شکرانه

تیغ د معشوقو دي په گردن دی عاشقانو اپنی — هسي رنگه زیب کړه لکه مي په پیمانه

۲۳۱ — ۲۵۲۳

چیري د منصور په د و د سنگسار نه شي چمانه

مه کوه د عشق خبري د پري رندانه

که له مخه یوه خوا کا حجابونه (۵) — خدای به ورکا و خوبانو ثوابونه

کله وي چي یو په رنگ د هغه یار شي — که هزار شي په آسمان کي آفتابونه (۶)

په گرداب د زنخدان یي هسي غرق یم — هیڅوک مه شه غرق په هسي گردابونه (۷)

لکه زه چي یې له غمه په عذاب یم — خدای دي نه زدي په چا هسي عذابونه

گفتگوی مي هیڅ اثر و ربانه نه کا — که له غمه یي تصنیف کړم کتابونه

په یوه خواب مي رد کا هزار سواله — هسي کاندي د سوالونو ځوابونه

---

(۱) دا دوه بیتونه په قلمي نسخو کي نشته.
(۲) د "خ" دوهمه نسخه: "مه وایه رښتیا خبري د پري رندانه".
(۳) دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کي نشته.
(٤) دا غزل د "خ" له دوهمي قلمي نسخي نه نقل شو.
(۵) د "خ" نیمگړي نسخه: "سکه یوه خوا کا له مخه حجابونه".
(٦) د "خ" نیمگړي نسخه: "که هزار شي افتابونه مهتابونه".
(۷) دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کي نشته.

هیڅ پایاب[1] د فن فریب یې موندهٔ نه شي — ځوك به څه غواړي د بحر پایابونه
که لښکرې وبله کړي دم راته والي — په یاري کې عالم نه کاندي خوبونه[2]
مال و ملك یې همه واړه او به یوسي — د هغو سترګو چې درومي سېلابونه
د کږو ورځو محراب ته لې حیران یم[3] — څه نسبت لري بتان و محرابونه
ما هاله لره پارسایي و ولاس وکښېلی[4] — چې په لاس کړل مطربانو ربابونه

۲۳۲

ارغواني جامې یې واغوستې رحمانه
بیا یې جوړ کړل ستا د قتل اسبابونه

۲۵۳۵

راکوي د بېدردۍ[5] پېغور ونه — بلوي مې په تندي باندې اورونه
نور څه نشته واړه غوښې دي د زړونو — چې وړاندي شي[6] د ترکو په تېغونه[7]
هر نګاه یې په وکښو د زړو نوشېر دي — همېشه را باندې آزمايي زورونه
خدای دې تور د تورو سترګو چاته نه کا — عالمونه یې وکړې په تورونه[8]
یو د حسن اور یې بل کړ په جهان کې — په دا اور باندې یې[9] وسوځل پرګورونه
نه دیان په مینه غلا کړم رقیبانو — ګنهګار یې کوم راپورې وپورونه

۲۳۳

د رحمان د عاشقۍ هسې غږ وشو[10]
چې برپا ئې شوه په هر ښهر کې شورونه

۲۵۴۲

---

(۱) په "ق" چاپ او د "خ" نیمګړې نسخه کې "پایان" راغلی دی.
(۲) دا بیت په مصوره نسخه او د "خ" په نیمګړې نسخه کې نشته.
(۳) د پېښور چاپي دیوانونه او قلمي نسخې: "دابرو لو و محراب ته لې حیران یم".
(۴) په چاپي دیوانونو، مصوره نسخه او د "خ" په دوهمه نسخه کې "وللی" راغلی دی.
(۵) "ق، ک" چاپ کې "را کاده شي د بېدرد و پېغور ونه". په مصوره نسخه او د "خ" په دوهمه نسخه کې "بې ننګۍ" راغلی دی.
(۶) د پېښور چاپي دیوانونو کې "وژلې" راغلی دی.
(۷) په قلمي نسخو کې "پېغور ونه" راغلی دی.
(۸) دا بیت د "خ" په لومړي نسخه کې نشته.
(۹) په چاپي دیوانونو کې په دواړو مسرو کې د "یې" پر ځای "دې" راغلی دی.
(۱۰) په "ق" چاپ کې "زوږ شو" راغلی دی.

په خاطر مې غلبه شول ستا غمونه — لږ د خدای د پاره کښېږده قدمونه

څه خو قیاس زما د بې والو سبکو کړه — چې مې چېرې وو په تن کې دا زلمونه (١)

هر چې ستا په دم ژوندي وي نه رغېږي (٢) — که بې تا په ځان پوکې هزار دمونه

که هزار هزار دمونه په ځان پوکا — نو به نه کا په دمونو قسمتونه (٣)

له قسمته خلاصېږه د هېچا نشته — که داخل شي د مکې په حرمونه

سړی کله په کوښښ ترځایه رسي — څو د خدای له لاسه نه وي (٤) کرمونه

چې توانګر د قناعت په خزانه شي — نو به څه کاندي دینار و درمونه (٥)

٢٣٤ — قسم وخوري له خوبانو بیا یې مات کا — ٢٥٠

څه باور دی د ربح په قسمونه

ژوندي کاندي د دنیا کار و بارونه (٦) — په مړو پر پواته د خاورو انبارونه

خوله سر تور، پښې یې لځا و ورله درومې — چا کانه دي په سر ایښې دستارونه

سنه استو ګنه (٧) د دوو ورونو سره نه شي — بلکه یو ځېله اخلي ازارونه

د یوې ونې (٨) له ښاخه پیدا کېږي — په چمن کې هم ګلونه هم خارونه

هومره خلق هره ورځ له دنیا درومي — چې یې نه په چا حساب شي نه شمارونه

یو یو وار دی په هر چا باندې تېر شوی — همېشه په هېچا نه وي دا وارونه

د بې توزګې بازارګي مې تر سر تېر دي — خوله دې نه کا په ما قنج و بازارونه

---

(١) په چاپي دیوانونو او د "خ" په دوهمه نسخه کې "رودونه" راغلی دی.
(٢) د "پ پا" چاپ: "ستا د حسن مار چې یې وخوري نه رغېږي".
(٣) د "خ" په دوهمه نسخه کې "قبلمونه" راغلی دی.
(٤) دا بیت په "ق" چاپ او "ق. ک" چاپ کې نشته.
(٥) دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته.
(٦) د "پ" په نسخو او د "خ" په لومړۍ نسخه کې "کار و روزګارونه" راغلی دی.
(٧) په قلمي نسخو کې "سنه توښه" راغلی دی.
(٨) د "پ" په نسخو او د "خ" په دوهمه نسخه کې "دیوې د ماڼۍ" راغلی دی.

**۲۳۵ — ۲۵۵۸**

جدايي د آشنايانو هر دم کا ندي
په رحمان باندې د توره و ګوزار ونه

پټ پناه مې په خاطر لګي اور ونه | چې را ياد شي د مينو بشر ونه (۱)
تل جرس درته واهه د کوچ د ليال شي | پر د پسانو زلمو وتړي بار ونه
راشه ورشه حال يې وګوره چې څه دی | پر مينو باندې پرېواته قبر ونه
تاچې دا شيرين بشر خاوري بيابان کړه | تر شيرين بشر يې وخاته خار ونه
هامين چې تا لېده اوس لېده نه شي | دي بند شوي د لحد په حصار ونه

**۲۳۶ — ۲۵۶۴**

يوه ذره د محبت وکړه رحمان ته
چې بې تا لې په زړه نور نه شي فکر ونه

دريغه ولېدی يو ځل هغه مخونه (۲) | چې دراز لري مژګان دراز خد ونه
دراز قد دراز مژګان درازې زلفې | ورې شونډې وره خوله واره غاښونه
د آسمان شمس و قمر به تري قربان کړم | هم د ځمکې په سر واره سره ګلونه
چې يې ووينم په مخ مې اوښکې درومي | د سپرلي لړ نمخه وورې بارانونه
که يو ځل يې مخ ووينم په سترګو | ما په زړه کې قبول کړي دي نذرونه
د هجران په شپه سوړ کټ راته سور اور شي | يو زمان مې باندې نه لګي ارخونه (۳)
چې په سينو انګو دې زلفې زانګي (۴) | ښاماران دي د چندنو په ښاخونه

**۲۳۷ — ۲۵۷۲**

که خداي غم د جدايي ورته آسان کا
و رحمان وته آسان دي نور غمونه

---

(۱) دا غزل د "خ" د دوهمې قلمي نسخې نه نقل شو.
(۲) د "پ پ" چاپ : " دريغه ومې لېده يو ځل هغه مخونه".
"ق" چاپ او "ق ، ک" چاپ : " دريغه ووينم يو ځل هغه مخونه".
(۳) دا او درېيم بيت په قلمي نسخو کې نشته.
(۴) "پ" چاپ : " لوڼې زلفې دي په سپينو لېچو زانګي".

که ستا خپله سیاه رويي نه وي دښمنه — آیینه زما د زړه نه ده خجنه(۱)

ته چې ما ته په نظر د عیب ګورې — دغه عیب واړه ستا دی عیب جنه

خپل صورت په آیینه کې هر څوک وینې — که څېره د چا صفا وي که ږلمنه(۲)

چوهاړي د حلال خور په نام بولي — له ښو خلقو بدګويي نه ده ممکنه

ته چې بد له بله وایې زه وېرېږم — چېرې به خپله بدي نه کړې معینه

تر هغه به رومبی عیب ستا څرګند شي — وهرچا وته چې کړې د چا غندنه(۳)

هر رنګ تخم چې کړې هغه به راخلې(٤) — خپله خپله مېوه نیسي هره ونه

که له خپله عیبه ځان ژغورې رحمانه — د هیچا له عیبه مه کوه پوښتنه

۲۳۸ — ۲۵۸۰

ما وې زه به ترکړم په خوبانو باندې مینه — مینه د خوبانو وچوي د صورت وینه(۵)

خدای زما په برخه عاشقي کړه له ازله — خوښ یم په دا برخه که ترخه ده که شیرینه

ځمکه هغه سوځي هر چې اور ور باندې بلوي — روغه خلقه شوه د رنځور رو تماشبینه

ښه توښه مې نه شي په تښه دا د کور و کلي — مرد بویه چې واخلي د غم پېټي له غمګینه

نور عالم به ترکړم زه مرید د هغه کښ یم — هر چې وما له کا یو پیغام له نازنینه

خوبه سوک په سترګو غروم له هسې ځمه(٦) — خوبه مې تل وینې د زړه خاځي له آستینه

سر د رحمان د روې د هجران په تېره توره(۷) — ته یې نګاهبان شې یا اِلٰهَ الْعٰلَمِینَه

---

(۱) دا غزل د "خ" په دوهم نسخه کې نشته.
(۲) د "خ" په لومړۍ نسخه کې "پلمنه" راغلی دی.
(۳) چاپي دیوانونه: "چې هرچا وته دې کړې ده خندنه".
د "خ" په لومړۍ نسخه او مصوره نسخه کې "دچا" پر ځای "دځان" راغلی دی.
(٤) په چاپي دیوانونو کې "یوسي" او د "خ" په دویمه نسخه او د پېښور په لومړۍ نسخه کې "مومي" راغلی دی.
(۵) قلمي نسخې: "زه به لوړه نه کړم په ښتانو باندې مینه" کښلکي که مې خوک کښیناي توره ورانه کاله حینه".
(٦) دا بیت د "خ" په نسخو کې نشته او د پېښور په چاپي دیوانونو کې لومړی مسری داسې ده: "خوبه د واړه سترګې غروم له هسې ځمه".
(۷) دا بیت د "خ" په لومړۍ نسخه او مصوره نسخه کې نشته. د چاپ کې لومړی مسری داسې ده: "سر د رحمان د روې د رحمان په تېره توره".

۲۳۹ — ۲۵۸۸

اور د جدائیه په رحمان دی لګېدلی (۱)

وخت دی که مدد کړې یا مېران محی الدینه

یا دوې په خوله مکه او مدینه — نسکور پرېوت لې دعوتي په سینه

زور ئې نه شه لکه غونچه مراقبه کړې — پټ دې نقش دزړه رخت دی رنګینه (۲)

دا اطلس و قبا غواړې نه يې مومې (۳) — لړنا کا مرد دې (٤) خرقه کړه پشمینه

عبادت دې خوتېرې تر معصيّت کا (۵) — خه خو ونېسه و ځانته آيینه

کینه بد ده بې شکه جنګ حرام دی — نه له نفس و له شیطان سره کینه (۶)

تر ناپاکو نارینه وي بهتره (۷) — پاک دامنه پرهېزګاره ارتینه

د مردانو کار له نفس سره جنګ وي — نه زنانو غونډې له نقش ونګینه (۸)

د دینداره ارتیني تر یوې کوښې — صدقه شه سل بې دینه نارینه (۹)

نېکوکار سړې بهتر دی که خورد سال وي — تر سپین ږیره، بدکاره دبرینه

۲٤۰ — ۲۵۹۸

بدکردار که صد ساله شي (۱۰) و رحمان ته

خر ګڼه دې لکه طفل شبینه (۱۱)

بیا دې مخ دی جار وتلی خه بلا شوه — دا بلا له کومه لوریه را پیدا شوه

---

(۱) دا بیت په چاپي دیوانونو کې نشته. د "خ" په لومړي نسخه او مصوره نسخه کې داسې دی: "اور د جدائیه په رحمان دی لګېدلی تدبې نګهبان شې یا الله العلیمه".

(۲) د "خ" په لومړي نسخه کې دا مسری داسې ده: "پټ دې نفس دزړه رخت دی رنګینه".

د "خ" دوهمه نسخه: "اندرون دی لکه نقش رنګینه".

(۳) د "خ" لومړي نسخه: "جامه".

(٤) "ق، ک" چاپ: "لې".

(۵) دا بیت په مصوره نسخه کې نشته، لومړي مسرې یې په "ق، ک" چاپ کې داسې ده: "معصیّت به دې خپل تېر تر عبادت کړي".

(۶) دا بیت په مصوره نسخه کې نشته.

(۷) چاپي دیوانونه: "ده"، مصوره نسخه: "دي"، د "خ" دوهمه نسخه: "نه".

(۸) دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته، "ب" چاپ: "نه ښځو غونډې له نقش نګینه".

د "خ" لومړي نسخه: "نه زنانو غونډې نقش نګینه".

(۹) دا بیت په مصوره نسخه کې نشته او د "خ" په دوهمه نسخه کې د "کوښې" پر ځای "نوکه" راغلی دی.

(۱۰) چاپي دیوانونه او نوري قلمي نسخې: "وي".

(۱۱) "ق، ک" چاپ: "بدکردار که صد ساله دي خو رحمان ته هسې ښکاري لکه طفل شبینه".

ورځ چې واوري د غم هسې نه وي خړوې — لکه نن چې د خپل یار و ماته شا شوه (١)

دا زما په یار کې مهر و وفا نشته — که دنیا واړه بې مهره بې وفا شوه

چې یې هیڅ له خدایه ترس او ویره نشي — په نصیب مې یوه هسې دلربا شوه

چې و حسن ته یې ګورم حیران یم — راڅرګنده یوه هسې تماشا شوه

څه د حلو د حساب خبره نه ده — بې صبري مې تر حسابه زیاته لا شوه (٢)

قراري مې په طلب کې شوه حرامه (٣) — بې غمي مې په مذهب کې ناروا شوه

چې رابنکلي مې پرې غشي د دعا و — هغه نښه مې ونه وېښته خطا شوه

لکه پوچ بادام بې مغزه بې حاصله — هسې پوچه بې حاصله مې دعا شوه

عاشقي چې مې له خلقو په غلا کړه — هغه غلا مې په تمام جهان رسوا شوه

څه به لا د نسیا معاملو هم — چې مې نغده په ورغوي کې نسیا شوه

در د بېرته جار و توښو راته پوره بې — په نصیب مې بله نه وه داوه دا شوه (٤)

یوه بخره هر سړي له خدای ورکړه — زما بخره آشنایي د خپل آشنا شوه (٥)

د تدبیر په دام به څه ښکار کښېوزي — معشوقه چې مې په مثل د عنقا شوه

ورځ چې واوري د غم هسې نه وي څړوې — لکه نن چې د خپل یار و ماته شا شوه (٦)

چې یې زړګی زېږ رخسار زما د خاورو — عاشقي نه وه په باب زما کیمیا شوه

څه حکمت د یار په مینه کې خدای کښېښود — چې عاشق له هم درد شوه هم دوا شوه

٢٦١٦    دا باران نه دی چې ورېږي له آسمانه<br>د مرغانو په ښکاځ باندې ژړا شوه    ٢٤١

---

(١) دا بیت په چاپي دیوانونو کې نشته.
(٢) قلمي نسخې: "په هغه خوا شوه" راغلي دي.
(٣) چاپي دیوانونو: "قراري مې په طلب کې بې حرام شه".
(٤) دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته.
(٥) د "خ" په لومړۍ نسخه او مصوره نسخه کې "هر آشنا" راغلي دي.
(٦) دا بیت په چاپي دیوانونو کې نشته.

چې په نور څه پورې زړه تړي بې خدایه ... څه پوهېږې چې په ځای کړې کــه بې ځایه (۱)

داخونشته چې به تل ترتله پاتې ... که بیا پاتې خو تر سلو کالو پایه

که دې سل کاله شي عمر خو به تېر شي ... دغه پسه بیا به څه کړې راته وایه (۲)

سم له لاسه چارې نه شي مرد هغه دی (۳) ... چې بېدار وي وغلیم وته له ورایه

ته په اصل کې سړی یې خاروی (٤) نه یې ... د چارپایو چارې مه کوه د وپایه (۵)

مرتبه به دې د هیچ او د مېږي شي ... زړه په غوړ و غوښو مه تړه همایه (۶)

موړ به نه شې ته په حرص بې قناعته ... ای په تخت دا ورنګ زیب ناسته ګدایه (۷)

ورانــدې سرای لره توښه تړه رحمانه (۸)

٢٦٢٤ ٢٤٢

خو سفر دې کړی نه دی (۹) لره سرایه

په حالت د عاشقانو نظر بویه ... په زیارت د شهیدانو ګذر بویه

بې مرشده خبر څوک د مرید اخلي ... څوک په غم د فرزندانو پدر بویه

بې رېباره رسېده وېیان ته ګران دي ... په کوڅه د مهرویانو رهبر بویه

بې هنره چا دولت موندلی نه دی ... په خدمت د صاحبانو هنر بویه

ستا له سترګو مې هر ګور ملاحظه شي ... له دې هسې سیاه دلانو (۱۰) حذر بویه

---

(۱) د "ق، ک" چاپ : "راته وایه دا په ځای کړې کــه بې ځایه".
د "خ" لومړۍ نسخه : "څه دې زده چې خدای به ځای کړې که بې ځایه".
د "خ" دوهمه نسخه : "څه دې زده دي چې په ځای کړې که بې ځایه".
د "ب" لومړۍ نسخه : "څه دې زده چې دا بې ځایه کړ کا بې ځایه".

(۲) د "خ" دوهمه نسخه : "دغه پسه به لور څه کړې راته وایه".

(۳) د "خ" لومړۍ نسخه : "هــم له لاسه".

(٤) د "خ" لومړۍ نسخه : "چارپای نه یې". مصوره نسخه : "خاروی مشه".

(۵) "ق، ک" چاپ : "خودرایه". "ق" چاپ : "مرشره چارپایه".

(۶) قلمي نسخې : "زړه په غوښو په غوړ مه تړه همایه".

(۷) د "ب" نسخه : "موړ به نه شې په حرص بې قناعته ... که یې په تخت داورنګ ناسته ګدایه".

(۸) د "خ" لومړۍ او مصوره نسخه : "واخله".

(۹) د "خ" لومړۍ نسخه : "نه وی".

(۱۰) د "خ" په لومړۍ نسخه کې د "سیاه دلانو" پر ځای "سیاه مارانو" راغلی دی.

٢٤٣

بنه چې سترګي خدای ملالي کړې د ترکو — لن په زړه د ظالمانو اش بویه

ستا په داغ (١) به هر یو زړه مشرف نه شي — دغه تاج د بزرګانو په سر بویه

چې خبر د داغ نه اخلي یار بدکا

بادشاهان له ګدایانو خبر بویه

٢٦٣٢

---

زه مي ورکړو خود رای — هر چې شي تکیه په خدای

په سودا د عاشقۍ کې — یا به شاه شم یا ګدای

یا به کېنم و د وحشته — یا په سیوري د همای

---

(١) "پ پ" چاپ کې د "داغ" پر ځای "یار" او د "خ" په لوړۍ نسخه کې "تاج" راغلی دی.

چې خدای کا هغه به وشي — نه بل خدای لرم نه ځای

بې دلبره به وړن نه کړم — بل هیڅ‌یا ته د زړه رای (۱)

پای بوسي به یې پرې نږدم — خومې ړیي دست و پای

یا خندا ده په جهان کې — یا ژړا ده په وای وای (۲)

تردا دوچارو په هورته — نور څه نشته په دا سرای

عاشق بویه چې صادق وي — نه خودکام و نه خود رای

خالې دې نه کا څوك په عشق کې — جوفروش گندم نمای

زه رحمان په کان پوهېږم

کمې ملشي کار فرمای (۳)

۲۴۴ — ۲۶۴۳

کشلې زه خاورې ایرې دستا در وای — چې قدم دې همېشه زما په سر وای

خوبوځله زما ستا وبله مخ شوی — نور مې موخه ستا دغشیو په ته تر وای (۴)

تمام تن مې دړنجو په خېر اوره شوی (۵) — خو په ما دتورو سترگو یو نظر وای

په زېړ رنگ په سپینو اوښکو به ما بیا موندله؟ — که دترکو ملاقات په سیم و زر وای

ملامت به په ما څه لره وایه شو — که دستا د دلبرې نه څوك خبر وای (۶)

مرتبه که ستا دعشق شي ورخرگنده — ملایك به واړه وایي چې بشر وای (۷)

تماشا به زما هله درښکاره شوه — که ته ما غوندې بېدل وای زه دلبر وای

---

(۱) قلمي نسخې : "نور و هیڅ‌یا دزړه رای".

(۲) دا بیت د "خ" په لومړۍ نسخه کې نشته.

(۳) د "ب" په نسخو او د "خ" دویم او مصوره نسخه کې د "ملشي" پرځای "مل وي" راغلی دی.

(٤) قلمي نسخې : "نورمې موخه ستا وغشیو ته بهتر وایے".

(۵) د "خ" قلمي نسخې : "تمام تن مې دړنجو په خېر ووړ ووړ وایے".

(٦) دا بیت د "خ" په لومړۍ نسخه کې نشته.

(۷) په قلمي نسخو کې "که بشر وای" راغلی دی.

په خوبان به زما سترګو غوندې نه رغي | که په مخ مې د ښېرو تورو پرهر وای

ستا په درد کې طبیب والي رحمان ته
لا به ښه وی که دې حال تر دا بتر وای

٢٤٥ ٢٤٥٢

یو یو داغ په تن را ښیي د هر چا دی | که بادشاه د ولایت[1] دی که ګدا دی
سیرابي په سرچشمه د دنیا نشته | تشنه لب یې ګوښې ګوښې په غوغا دی
لږ راحت په د بر زحمت باندې مونده شي | د دې دهر خس حرام شه[2] که وریا دی
د دنیا ښادي بې غمه مونده نه شي | لږ خیرات د شوم له کوره په بلا دی
فراغت پرې باندې ولې حرام نه وي | چې داخل په سراچه د دې دنیا دی
د مجنون د حال پوښتنه به څوک څه کا | جهان واره کوړاکوړ مجنون لیلا دی
عشق یو هسې رنګ افسون په عالم یو کې | چې عاشق په تورو سترګو نابینا دی
د هر چا یې بخره ورکړه ګوښې ګوښې | خپل قسمت د هر سړي جلا جلا دی
ورکړه راکړه همګي د بل په لاس دي | دلته دخل نه زما دی نه دستا دی[3]
په هر څه[4] چې د صاحب د زړه رضا شي | په بنده که ناروا دی هم روا دی
خوا ناخوا که یې رضا وي که یې نه وي | د قسمت رسد[5] رضا او نارضا دی
ځان جهان سپارلی بویه وهغه ته[6] | چې یې حکم جاري شوی په هر چا دی

---

(۱) د "خ" په دوهمه نسخه کې د "ولایت" پر ځای "زماني" راغلی دی.
(۲) په چاپي دیوانونو کې "حرام دی" راغلی دی.
(۳) دابیت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته په "ب" چاپ کې دابیت داسې دی:
"ورکړه راپېر ورده تول د بل په لاس دی هلته دخل نه ستا دی نه زما دی".
"ق، ک" چاپ: "ورکول او اخستل د بل په لاس دی".
"پ، ب چاپ او "ق" چاپ: "ورکول راپېر ودل د بل په لاس دی".
د "ب" لومړی نسخه او د "خ" لومړی نسخه: "ورکړه راپېر ورده همه د بل په لاس دی".
(٤) د "خ" په دوهمه نسخه او نیمګړې نسخه کې "په هر کار" راغلی دی.
(٥) د "خ" په دوهمه نسخه کې "د قسمت شوی" راغلی دی.
(٦) د "خ" دوهمه او نیمګړې نسخه: "ځان ایمان سپارلی بویه وهغه ته".

دهرچا په لاس چې حکم حاکم ورکا — جهان واړه د هغه په مدعا دی

چې مولا ورسره مل نه وي تاج (تاځ نه)

٢٤٦ — ٢٦٦٦

که لښکر یې ورسره وي یک تنها دی

هسې رنګ نعمت راکړی خدای وما دی — چې هیڅ څیز بهایې نشته بې بها دی (١)

یو خودا چې یې په شکل د آدم کړم — دویم دا چې محمد ﷺ مې رهنما دی

لاس و پښې غوږ وسترګې خوله او ژبه (٢) — یو صورت مې په خواسه مُسما دی

آسمان ځمکه، لمر، سپوږمۍ او روښانه ستوري — درست جهان مې و نظر ته تماشا دی

شپه او ورځ د ماه و مهر له پرتوه — مخ د ځمکې راته درست نقره طلا دی

په شپه مسبلک په ورځ کافور رابانده وري — درست صورت مې پکې غرق سرتر پا دی

په هر دم زندګاني بخښي وما ته — هر نسیم دیار له لوري مسیحا دی (٣)

دچمن وسرو ګلونو ته چې ګورم — هر هر ګل راته د فرا یه په خندا دی

د ګلګونو میو نا وې راته ناسته — زنګاري قمیص اغوستی د مینا دی

خپلې وینې په ورغوي کې نیولې — هر ساغر د مې فروشو جان فدا دی (٤)

د شنه رود (٥) په غاړه ناست سرود په لاس کې — هر مطرب لکه بلبل هسې ګویا دی

سپین مخونه سرې لښتې دي د دلبرو — هر دیدن یې د آفتاب په څیر رڼا دی (٦)

---

(١) قلمي نسخې : "چې هیڅ هیڅ بهایې نشته بې بها دی".
"ق، ک" چاپ : "چې بهایې هرګز نشته بې بها دی".

(٢) د "خ" دوهمه نسخه کې "لوړه" راغلی دی.

(٣) دابیت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته.

(٤) د "ب" لومړی نسخه او د "خ" دوهمه نسخه : "هر ساغر د مې پرستو جان فدا دی".
د "خ" لومړی نسخه : "هر ساغر د مې پرخښتو ځان فدا دی".

(٥) په چاپي دیوانونو کې "سبزه رود" راغلی دی.

(٦) دابیت په "ب" چاپ، "ق" چاپ، او "ق، ک" چاپ کې نشته. په قلمي نسخو کې یې لومړی مسری داسې ده :
"سپین مخونه سرې لښتې د دلبرو".

۲٤۷ — ۲٦۷۹

چې دا هسې معرفت يې پرې پېر زوکړ(۱)
په ځان(۱) باندې منت د پاک مولا دی

دا چې مست په مېو راغی يار د چا دی
بيا به تا خت کا په کوم غولي وار(۲) د چا دی

چې زړه سوی يې د حرم په صيد هم نه شي
دا يې درد او نې صرفې گوزار(۳) د چا دی

ما خو نه دي خولې يې وچې آزار کړي
دا چې ما آزار وي آزار د چا دی(٤)

چې يې درست جهان د مخ په ننداره زيست کا
دا آفتاب غونډې روښان رخسار د چا دی

چې بلبل بې رسېدې ترگلو نه شي(۵)
دا د ننه په حرم گلزار د چا دی

۲٤۸ — ۲٦۸۵

چې هېڅ ترس په زړه کې نه لري ځان(٦) (ژړه نه)
دا نا ترس او نې پروا نگار د چا دی

غواصان که گوهر غواړي گوهر دا دی
بېدلان که دلبر غواړي دلبر دا دی(۷)

زما يار غونډې به بل يو دلبر نه وي
د جمله وُ دلبرانو سرور دا دی(۸)

خوند دلبو او د چاه زنخدان يې(۹)
دا شه گوره زمزم دا دی کوثر دا دی

چې يې وصل او هجران وته نظر کړم(۱۰)
زه گومان کړم جنت دا دی سقر دا دی

---

(۱) د "خ" دوهمه نسخه: "چې نعمت د معرفت يې پرې پېر زوکړ".

(۲) دا غزل د "خ" په مصوره نسخه کې نشته او "خ" په دوهمه نسخه کې د "غولي" پر ځای "لوری" راغلی دی.

(۳) قلمي نسخې: "چې زړه سوی يې د حرم په صيد نه شي دا د عشق يې صرفې گوزار د چا دی".
د "خ" دوهمه نسخه: "دا يې درېغه يې صرفې گوزار د چا دی".

(٤) دا بيت د "پ" په لومړۍ نسخه کې نشته.

(۵) د "پ" په قلمي نسخه کې "ترگله" راغلی دی. د "خ" لومړۍ نسخه: "چې بلبل يې رسېدې نه شي ترگلو".

(٦) د "خ" لومړۍ نسخه: "چې هېڅ ترس يې په زړه نه کېږي رحمانه دا نا ترسه نا فرمان نگار د چا دی".
"ق ک" چاپ او "ق" چاپ: "دا نا ترسه بې پروا گونار د چا دی".

(۷) دا غزل په مصوره نسخه او "پ" په دوهمه نسخه کې نشته.

(۸) د "خ" دوهمه نسخه: "زما يار غونډې به بل په جهان نه وي د جمله و دلبرانو سردار دا دی".

(۹) د "خ" لومړۍ نسخه: "خوند دلبو و د چاه زنخدان دې".
د "خ" دوهمه نسخه: "خوند دلبو يې او چاه يې زنخدان دې".

(۱۰) د "پ" نسخې: "چې د وصل و هجران ته يې نظر کړم".
د "خ" لومړۍ نسخه: "چې د وصل و هجران وته يې گورم".
د "خ" دوهمه نسخه: "چې و هجران و وصال وته يې نظر کړم".

ته خطبه په منبر څه لولې خطيبه — قدم کېږده په ځان باندې منبر دادی

د کعبې سفر آسان دی مردها له چې — که له ځانه سفر وکړې سفر دادی (۱)

هر منعم چې دلجويي د قلندر کا — هغه نه دی قلندر، قلندر دادی

چې توانګر د قناعت په خزانه شي — بل توانګر په جهان نشته توانګر دادی

داهنر نه دی چې خاورې په ځولو سره زر کا

چې زر خاورې کا لانه هنر دادی

۲۴۹ — ۲۶۹۴

هغه زړه چې ستا د عشق په اور کباب دی — که مرهم ور باندې کېږدې ډېر ثواب دی

حجاب بونه له اغيارو مناسب دي — د يارانو په يارۍ کې څه حجاب دی

بې له تا چې بنايسته ږيې بې حسابه — نور بنايست د جهان واړه په حساب دی (۲)

بنايرې که هر څو ډېرې بنايسته دي — په هغو کې هم ستا حسن انتخاب دی

لکه ګل (۳) چې تر آفتاب پورې خجل دی — دغه هسې ستا تر مخ پورې آفتاب دی

دادميو څه مستي او سرخي نه ده (۴) — تېغ د سترګو دې په وينو کې غرقاب دی

زه رحمان به خواب څه کوم وياړ ته

وژوندي لوته د مړيو څه خواب دی

۲۵۰ — ۲۷۰۱

د ساقي په لاس کې جام د ميو ناب دی — مطرب ايښی په زانو باندې رباب دی

ته چې ما وته توبه وايې ناصحه (۵) — په دا وخت کې چا څه د توبې تاب دی

زه چې ځان منعه کوم د عشق له کاره — په دا هسې کار کې کوم سود او ثواب دی (۶)

---

(۱) چاپي ديوانونه: "د مکې سفر آسان دی مرد هغه دی چې له ځانه سفر کا ندی سفر دادی".

(۲) چاپي ديوانونه: "په هغو کې هم ستا حسن انتخاب دی" يعنې دا دی بيت دوهمه مسرۍ او ورپسې بيت لومړۍ مسرۍ په چاپي ديوانونو کې نشته.

(۳) په قصه خوانۍ چاپ او "ق،ک" چاپ کې د "ګل" پر ځای "شمع" راغلی ده.

(۴) قلمي نسخې: "دادميو د مستۍ سرخي نه ده".

(۵) د "خ" لومړۍ نسخه: "ته چې ماته توبه فرمايې ناصحه". مصوره نسخه: "ته چې ما وته توبه ښيې ناصحه".

(۶) دا بيت او له دې نه وروسته بېتونه په مصوره نسخه کې نشته. په "ق،ک" چاپ او "ق" چاپ کې د "کاره" پر ځای "لاره" او د "خ" په دوهمه نسخه کې "اوره" راغلی دی.

دا آسمان چې لوی په عقل کې بالـه شي | په محیط د عاشقۍ کې یو حباب دی(۱)
محتسب په رقص گډ شو باک یې نشته | صوفي پروت په میخانه کې مست خراب دی(۲)
هر چې ژغوري سر و مال په عاشقۍ کې | هغه کړی کور په مخ کې د سېلاب دی
په رقیب باندې غفلت راغی ویده شو | یار پېلو له مخ واخیست بې حجاب دی(۳)
ته چې خوب غواړې(٤) په عشق کې راته وایه | کوم چا کړی د مزري په خوله کې خواب دی
بې عمل که کتاب کېږدي په سر خه شو | گویا اینې یې تر پېښو لاندې کتاب دی
چې د شرله عملونو نه خیر غواړې | تشنه لب غوندې سرشوی په سراب دی(٥)
د دښمن له مکاره نه و وېرېږه | په نرمۍ یې غلط مه شه سنگ در آب دی

## ۲۵۱

عبادت په شتاب هسې کړه ~~لکه~~ راځه(۹)
لکه عمر چې دې تلونی په شتاب دی

## ۲۷۱۳

چې تر سنگ و تر آهنه یې زړه سخت دی | زړه هغه لره ورکړی ما کم بخت دی
خدایه کله به هغه غل راته اسیل کړې(۷) | چې لوټلی یې زما د خاطر رخت دی
هومره غم به نور په هیچا باندې نه وي | لکه غم چې د خپل یار په ما یک لخت دی

---

(۱) د "خ" دوهمه نسخه : " په محیط د عاشقۍ یو حجاب دی ".
(۲) دا بیت د "خ" له لومړۍ او دوهمې نسخې څخه نقل شو.
(۳) دا بیت د "خ" له لومړۍ او دوهمې نسخې څخه نقل شو.
(٤) "ق، ک" چاپ : "کوی" او "ق" چاپ کې " والې " راغلی دی.
دا مصرۍ د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې ده : " ته چې خوب په عاشقۍ کې له ما غواړې ".
(٥) د "خ" لومړۍ نسخه : " که سر د لعلونه خیر خیر غواړې ".
د "خ" دوهمه نسخه : " چې د شرعې له عملونو خیر غواړې تشنه لب غوندې سېر شوی په سېراب دی ".
(۹) د "خ" دوهمه نسخه : " عبادت په شتاب کړه رحمانه ".
(۷) په قلمي نسخو کې " یاغیان " راغلی دی.

مګر بلبل په تېره تيغ شي يا ل له ياره — ګنه بناخ له خپله شاخ سره درخت دی[1]

د پالنګ او د پېړۍ[2] حاجت بې نشته — د يارانو نشستن د زړه په تخت دی

چې له د بره درده وخت پېژاندی نه شي

۲۵۲ — په رحمان باندې بې ياره هسې وخت دی[3] — ۲۷۱۹

ستا له لاسه په ما جوړ دی که داد دی — زما مراد د خو واړه ستا د خاطر مراد دی[4]

ستا په مينه کې زما له مخه تښتي — که آفت دی که آسيب دی که فساد دی

هر امداد چې را کاوه شي ستا په مينه — په لېمه زما قبول هغه امداد دی

که تمام جهان مې پرېوځي په لېمه کې — بې تا نه راګرځېږي نه مې ياد دی

ما چې غوږ د استاد عشق په ترانه کړ — نصيحت مې نور د زړه په غوږ وباد دی

اوس زما له ننګ و نامه سره څه دي — چې دې نام د عاشقۍ را باندې زياد دی

هر ګلشن چې له ګلرخه بې ځړه وي — د عاشق په نظر غولی د صياد دی

د رحمان و توان ته ګوره هومره نازکړه

۲۵۳ — چې دا وسېنو روح نه دی آدم زاد دی — ۲۷۲۷

کړې بې مهر و محبت که لې عناد دی — ما د يار په ياري کړی اعتماد دی[5]

زه او يار که په تن دوه په معنی يو يو — هزار خونې واړه ښهر يو بغداد دی

هېڅ بېلتون زما د يار و بله نشته — کار همه واړه موقوف په خپل ميعاد دی

زه خپل آه آتشين له خدايه غواړم — د آشنا خاطر که موم دی که فولاد دی

هېڅ موقوف د معشوقې په حسن نه دی — د عاشق خاطر په خپله مينه ښاد دی

---

(۱) دا بيت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته. په نورو قلمي نسخو کې يې دوهمه مسره داسې ده: "ګنه بناخ له خپله درخته سره درخت دی".

(۲) د "خ" په لومړۍ نسخه کې "ښېرېد" راغلی دی.

(۳) قلمي نسخې: "په رحمان د يار له غمه هسې وخت دی".

(۴) په چاپي ديوانونو کې "زړه" راغلی دی.

(۵) په قلمي نسخو کې "اعتقاد" راغلی دی.

چې د آه و د فریاد طاقت یې نه وي — هر سکوت د بې طاقتو آه فریاد دی

سل په دا رنګه نوموني د عشق نور دي — لکه نوم چې د مجنون او د فرهاد دی

چې یې زړه شي هلته کښېني هلته پاڅي — عشق د عقل و د هوش کره داماد دی

بادشاهان په عاشقۍ کې ملنګان شي — ما او تا غوندې وګړي د چا یاد دی

چې پریشان د یار د زلفو په خبر نه وي — جمعیّت د هغو زړونو لوی فساد دی

که رښتیا له خرابۍ سره ګنج وي — خرابات د بې بنیاد و بیخ بنیاد دی

که کمال د کمینه په اندازه دی — فوقیّت د شاګردانو په استاد دی

که په یار پسې تر ځان تر جهان تېر شي[1] — په رحمان زمونږ هسې اعتقاد دی

۲۵۴ — چې دا نور شاعران کاندي هغه نه کا / رحمان کړي نوی نوی اجتهاد دی[2] — ۲۷۴۱

په خاطر باندې مې ستا د غم غبار دی — همیشه مې په زړه پروت انبار انبار دی

که رهبر وي ګمراهانو لره خضر — عاشقانو لره خضر ستا رېبار دی

ګوندې چېرې خولګ د خدای په در قبول وي — ستا له لاسه مې فریاد په هر دیار دی

د شهیدو پرهارونو ته نظر کړه — هسې رنګه مې له دوسته ګو خونبار دی

چې د غم په بار یې زړه دی زما کښېنلی — هم هغه مې په زړه کښېنلی په بار بار دی[3]

چې هر دم مې د غمزو په تورو وژني — لا مې زړه د هغه سترګو منت بار دی[4]

د آسمان دې د هغو په مدعا وي — چې په ما باندې یې کړی ستا اختیار دی

۲۵۵ — که یار سل ځله جفا ور سره کاندي / د رحمان داهسې کله اعتبار دی — ۲۷۴۹

---

(۱) دا بیت په "پ پ" چاپ او "ق، ک" چاپ کې نشته.

(۲) دا بیت د "پ" په لومړي نسخه کې نشته.

(۳) دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته. د "پ" په لومړي نسخه کې دوهمه مسرۍ داسې ده: "لا مې زړه د هغو سترګو منت بار دی".

(٤) دا بیت د "پ" په لومړي نسخه کې نشته.

کمیني یو نا درکار دی … چې کمال حُني اظهار دی

چې اختیار یې کمیني کړه … په دانه کې پټ خروار دی

چرګ په دوه پیسې حلال شي … باز په سل روپۍ مردار دی

چې آسمان شو سرګردان شو … چې زمین شو برقرار دی

نښتر ګوره سرکښي کا … انګور ګوره نګونسار دی

ذره خواره شوه آفتاب شوه … ابر خورب دی غبار دی (۱)

کوه بلند شو سیه سنګ شو … لعل وور شو بزرګوار دی (۲)

لوی آسمان توره تبی شو … هلك لمر خره انوار دی (۳)

۲۵۶ … ۲۷۵۸

وور سړی ګوره تاج بانه

چې لوی فیل یې بار بردار دی

زلفې دې له ډیرې درازیه پای ترسر دي … یا د بنفشې لښتې خورې په صنوبر دي

لب دې آب حیات دي یا شکر یا نبات دي … یا خوزه غلط شوم (٤) ترهمه وار ورهتر دي

قد ته دې خولك نه شي رسېدی له بلندی … ولې چې معراج وته خانه د پیغمبر دي

ما چې ستا بنا یست ولمر سپوږمۍ سره په تول کړه … تللي په میزان کې تر آسمانه سپوږمۍ لمر دي

خاخلې له آسمانه په هر ځای وورې یکسانه … پرخه په واښه شي په صدفو کې ګوهر دي (۵)

بخت دی چې یې خولك متمکن کړه په تخت باندې … خولك دغم په خار سره پاره پاره جګر دي (۶)

---

(۱) قلمي نسخې: "ذره ضعف شوه افتاب شوه … ابر خورب شو تش غبار دی".

(۲) په "ق، ک" چاپ کې "ابدار دی" راغلی دی.

(۳) "ق، ک" چاپ: "نمر هلك نور الانوار دی"

نور چاپي دیوانونه: "هلك لمر صره الوار دی".

د "پ" لومړی نسخه: "هلك لمر شو خره انوار دی".

(٤) په قلمي نسخو کې "یم" راغلی دی ددې بیت لومړی مسری په "ق" چاپ کې داسې ده: "لبې ستا آب حیات دی یا شکر دی یا نبات دی".

(۵) دا بیت د "خ" په لومړی او دوهمه نسخو کې نشته.

(۶) دا بیت د "خ" په دوهمه نسخو کې نشته.

باد چې دې په زلفو باندې قصد د پرېشانۍ کړ ... ځکه بې ګردونه د جهان واړه په سر دي

هله به سرې شي چې دې نوم عبدالرحمان شي ... او س سرې په خه بې که دې لوستی زر وزر دي[1]

۲۵۷ ... سپینې او سپکې، زېړ خال مینې له دولته[2] ... ۲۷۶۷

اې رحمانه دا د عاشقانو سیم وزر دي

دنیادار که مستغني په سیم وزر دی[3] ... هنرمند و ته خزه ګنج د خپل هنر دی

بې هوده به زور وزور[4] و ځان ته وایي ... د دنیا سړی که هر څو زور ور دی

هسې مه وایه چې زه یم په جهان کې ... پیدا کړی د خدای د سر د پاسه سر دی

ځینې ځینې یې ولیان پیغمبران کړل ... نه چې هر سړی ولي او پیغمبر دی[5]

جو دانه قدر یو لعل یکې پیدا شي[6] ... نور جهان واړه د تور و کانو غر دی[7]

یو بادشاه دی چې لښکر یې پسې درومي ... نه په هر یوه سړي پسې لښکر دی[8]

پیدا کړي خدای سړي په تفاوت دي ... هسې نه چې جهان واړه برابر دی[9]

که د عمر و رفتن ته خوک نظر کا ... دا به وایي چې آفتاب د نماز دیګر دی[10]

چې یې[11] سر په حمکه ایښی وي و یار ته[12] ... په آسمان باندې ختلی لکه لمر دی

---

(۱) دا بیت په قلمي نسخو کې نشته.

(۲) دا بیت په "پ" چاپ کې نشته.

(۳) د "پ" لومړۍ نسخه: "دنیادار که دنیادار په سیم وزر دی".

(۴) د "پ" لومړۍ نسخه کې د "به" پر ځای "و" راغلی دی.

(۵) د "پ" لومړۍ نسخه: "ځینې ځینې یې ولیان پیغمبران کا هر سړی نه اولیا نه پیغمبر دی".

د "خ" لومړۍ نسخه: "نه چې هر یو اولیا او پیغمبر دی".

د "خ" دوهمه نسخه: "ځینې ځینې اولیا د ځینې نبیان وو نه چې هر یو اولیا و پیغمبر دی".

مصوره نسخه: "ځینې ځینې اولیا و پیغمبران کړه نه چې هر یو اولیا و پیغمبر دی".

(۶) د "پ" لومړۍ نسخه: "جو دانه قدر چې لعل یکښې پیدا کا".

نورې قلمي نسخې: "جو دانه قدر یو لعل یکښې پیدا کړه".

(۷) د "خ" دوهمه نسخه: "نور جهان واړه تور کاڼي او تور غر دی".

(۸) د "پ" لومړۍ نسخه: "نه په هر چا پسې کړی خدای لښکر دی".

(۹) دا بیت په مصوره نسخه کې نشته. لومړی مسره یې په "ق، ک" چاپ او "ق" چاپ کې د "سړي" پر ځای "هر څوک" راغلی دی.

(۱۰) د "خ" دوهمه نسخه: "دی به وایي چې رفتن د نماز دیګر دی".

(۱۱) "ق، ک" چاپ: "چا چې".

(۱۲) "پ پ" چاپ: "خپل یار ته".

تعجب زما د ډېرو وسنکو مه کړه (۱) ... ما موندلی په دا بحر کې ګوهر دی

۲۵۸ ... ۲۷۷۸

دریا خرقه یې خدایځ مه کړه په غاره (۲)
رحمان کوڼ دستار تړلی قلندر دی

دواړه سترګې مې کړې دستا په لوري دي ... مدام دوی د فراق په آب شور دي

زه یوسپی یم چار چشمه دستا له سپیو ... چې مې ستا ور ته دوه سترګې خلور دي (۳)

کنه ولې مې دوه سترګو ستا په طمع ... وهر دري (۴) وته نیولې کوډ په کوډ دي

چې مې خال د ترکو ولید په خپل زړه کې (۵) ... دواړه کسي مې وزړه وته نسکور دي

اعتبار د زماني په اشنا مه کړه ... همګي واړه دخپلو رختو چور دي (۶)

ما قبول د رقیب نازکړ ستا د پاره ... سود و زیان په دا جهان کې خوارو ورور دي

۲۵۹ ... ۲۷۸۵

په رحمان باندې ګمان داهسې مه کړه (۷)
چې بې تا په نورښه غولېږي هغه نور دي

ستا له غمه مې په سر کې هسې شور دی ... ګویا میشت (۸) مې په سر شهر دلاهور دی

په افسوس و په جادو د تورو سترګو ... خراب دل مې له جملهٔ عالمه تور دی

---

(۱) د "پ" لومړی نسخه : "ته زما په ډېرو وسنکو عیب مه کړه".
د "خ" لومړی نسخه : "ته زما د ډېرو او سنو ته عیب مه کړه".
د "خ" دوهمه نسخه : "ته زما د ډېرو او سنکو غیبت مه کړه".

(۲) د "خ" دوهمه نسخه : "دریا خرقه دې خدایځ مه کړه په غاړه".

(۳) دا بیت په "پ" چاپ کې نشته. د "خ" لومړی نسخه کې لومړی مسری داسې ده : "زه یو سپی چارچشمه یم دستا د سپیو".
دوهمه مسری په مصوره نسخه کې داسې ده : "چې ستا ولوري ته مې دوه سترګې خلور دي".

(۴) چاپي دیوانونه : "وهر لوري ته".

(۵) مصوره نسخه او د "خ" لومړی نسخه : "چې مې خیال د ترکو ولید په خپل ځان کې".
د "خ" دوهمه نسخه : "ما چې خیال د ترکو ولید په خپل ځان کې".

(۶) دا بیت د "خ" دوهمې قلمي نسخې نه نقل شو.

(۷) چاپي دیوانونه او نورې قلمي نسخې : "په رحمان باندې داهسې ګومان مه کړه".
دوهمه مسری د "خ" په دوهمه قلمي نسخه کې داسې ده : "چې بې تا به په لورښه غولېږي لور دي".

(۸) "ق" چاپ او "ق، ک" چاپ کې "جوړ" راغلی دی.

کړمي زړه له غمه چوي راته والي — غم د هجر دغه مي ګڼه لا نور دی

د هجران په بیماری کې را معلوم شو — چې اخستي مي آزار د پلار و مور دی

دا دنیا په مثال کور شو د غمونو — چې په هسې کور نازېږي هغه کور دی

دا جهان نه د چا خپل دی نه به خپل شي — چا په خپله رضا پرېښو چا په زور دی

چې د مرګ په پور ورېږو کې یو ومري — دی د واړه یو پور ورېږو زوی او ورور دی (١)

که رحمان په عاشقۍ بې عزت کېږم (٢)
ما په سترګو قبول کړی دا پېغور دی

٢٩٠ — ٢٧٩٣

که دلدار په دلدارۍ زما قدم ږدي — ګویا هر قدم په لاړې (٣) د حرم ږدي

ځای لري که بې منته بوسه را کا — کوم کریم په چا منت د خپل کرم ږدي (٤)

معشوقه مشفقه بویه مهربانه (٥) — نه قارون چې په ځان اسم د حاتم ږدي

خلای وما وته ګلونه د جنت کړل — که داغونه مي په زړه باندې د غم ږدي

هسې پټ الرم (٦) دا زېړ رخسار له خلقو — لکه زر چې څوک له خلقو پټ په نم ږدي

هیڅ مانه دې څوک له مستو سترګو نه کا (٧) — کوم یو مست دی چې قدم په لاره سم ږدي

راحت بې زحمته نه دی چا موندلی (٨) — کوم طبیب دی چې په دوغ صورت مرهم ږدي

---

(١) دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته.
(٢) د "خ" لومړۍ نسخه: "که رحمان په عاشقۍ کې غیرت نه کړي".
(٣) مصوره نسخه: "په لوړې".
(٤) دا بیت د "خ" په لومړۍ نسخه کې نشته.
(٥) "ت" چاپ: "معشوقه شفیقه بویه مهربانه".
د "خ" دوهمه نسخه: "معشوقې مشفقې بویه مهربانې"
(٦) "ق" چاپ او د "خ" دوهمه نسخه: "پټ ګرځم".
"ق، ک" چاپ او مصوره نسخه: "پټ ساتم"
(٧) د "خ" لومړۍ نسخه: "برېنډ وستي ګو".
(٨) چاپي دیوانونه: "راحت نه دی بې زحمته چا موندلی".

زه هر ګوره تر خپل صمد پورې شرمېږم (۱) — برهمن چې سر په پښو د خپل صنم ږدي
واسمان ته لاس د عقل نه رسېږي (۲) — دا خو عشق دی چې په عرش کرسي قدم ږدي

زه تاج یې تاج ګټم د یار له لاسه
که مې پښه په سر د جور و دستم ږدي

۲۶۱ — ۲۸۰۳

د دنیا کار ونه واړه غولول دي (۳) — دا ګمان په هیچا مه کړه چې مې خپل دي
هېڅ مزه په دا جهان کې پاتې نه شوه — دا یخ خوږي په اوبو پورې کول دي (۴)
که دې د وه کاسې دانې وي په کندو کې (۵) — پس له شامه هسې وایه (۶) چې د بل دي
پوره غوږ د غوښو شته په هر چا پورې — که د شرم (۷) پوره غوږ غوږي باطل دي
که ته دوه (۸) او درې عیبونه د بل شمار کړې — بل به تا ته هسې وايي چې ستا شل (۹) دي
نصیحت د ناصحانو اثر نه کا — د سرې او سپینې خوشې تېرول دي (۱۰)

دا نا اهل همدمان دي نه پوهېږم
که مې د تاج پښې په ګوګل دي

۲۶۲ — ۲۸۱۰

---

(۱) "پ" چاپ او د "خ" لومړی نسخه : " زه هر ګوره تر خپل صنم پورې شرمېږم ".
"ق" چاپ : " زه هر ګوره خپل صنم پورې شرمېږم ".
"ق، ک" چاپ : " زه هم ګوره خپل صنم پورې شرمېږم ".
"پ پ" چاپ : " زه هر ګوره تر صنم پورې شرمېږم ".
مصوره نسخه : " زه هر ګوره تر خپل یار پورې شرمېږم ". نو موړی بیت د "خ" په دوهمه قلمي نسخه کې نشته.
(۲) "پ، پ" چاپ : " واسمان ته لاس د عقل نه رسېږي ".
"ق، ک" چاپ : " دې اسمان ته لاس د هیچا نه رسېږي ".
(۳) "پ پ" چاپ : " د دنیا چارې همه واړه غولول دي ". د "پ" لومړی نسخه : " د دنیا رنګار همه وبله غولول دي ".
د "خ" لومړی نسخه : " د دنیا رنګار همه واړه غولول دي ". د "خ" دوهمه نسخه : " د دنیا کار وبار واړه غولول دي ".
(٤) د "خ" دوهمه او مصوره نسخه : " هېڅ مزه په دا جهان کې طمع مه کړه دا یخ خوږي په اوبو پورې کول دي ". د "خ" لومړی نسخه :
" هېڅ مزه په دا جهان کې طمع مه کړه یخ خوږي دا اوبو پورې کول دي ". چاپي دیوانونه : " د یخ سوري په اوبو پورې کول دي ".
(۵) د "خ" لومړی نسخه : " په کندو دل کې ".
(۶) چاپي دیوانونه او د "خ" لومړی نسخه : " وايي ".
(۷) مصوره نسخه : " سر ".
(۸) چاپي دیوانونه : " یو او دوه ". د "خ" لومړی نسخه : " دوه درې ". د "خ" دوهمه نسخه : " دوې نورې "، مصوره نسخه : " دوه ".
(۹) چاپي دیوانونه او نورې نسخې : " سل ".
(۱۰) قلمي نسخې : " بېهوده د سرې او سپینې کوتل دي ".

سپین رخسار و مشکین خال دې و بله ضم دے — یا محمود او ایاز ناست سره همدم دي

که دې مخ په زلفو پټ شو باك یې نشته[1] — د حیات اوبه هم پټې په توږم دي

ستا د زلفو له رخساره له سرو شونډو — پیدا شوي شام شفق د صبحدم دي

په دهن کې دې غاښونه تجلي کا — یا غوټۍ په غوټچه کې د شبنم دي[2]

نه چې اوس زمانه غوځ ستا په غمزه دی — چاره غوښې لا قدیم سره په غم دي

بې ژړا وچاته نه ګوري سیه چشم — د نرګسو غوړېده د جوی په نم دي

راحت نه دی چا موندلی بې زحمته — ستا جفا و وفا دواړه منقسم[3] دي

ستا د حسن د تعریف له برکته
د رحمان د شعر کوکې پر عالم دي

۲۶۳ — ۲۸۱۸

چې د ښکنګه مې دلبر په لاس کې جام دی — نن اورنګ د زمانې زما غلام دی

مدام کله وي دنیا د دنیا دارو — بې له عشقه چې دولت یې مستدام دی

دهارون څرخ پای نیلي دی د سپهر — خو به دوکا چې یې دو په سر د بام دی[4]

د دنیا چارې په مثل دي د سیورې — د آفتاب په مخ د سیورې څه مقام دی

که یې صبح ښایسته دی خنده رویه — بیا یې هسې په هر صبح پسې شام دی

نه په مهر کې آرام شته نه په ماه کې — په دنیا راغلی هر یو بې آرام دی

ببغمي په دنیا چېرې ده رحمان نه
یو ببغم دې څوك را و ښیي کرام دی

۲۶۴ — ۲۸۲۵

ما د ستا و لمن ته اچولی دا چپل ځان دی — ستا دی زما نه دی که دانا دی که نادان دے

---

(۱) د "خ" لومړی او دوهمه نسخه: "که دې مخ په زلفو پټ دی باك یې نشته".

(۲) د "ق" چاپ او "ق، ک" چاپ: "یا غوټۍ چې په غوټچه کې د شبنم دی".

(۳) قلمي نسخې: "مغتنم".

(٤) دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته.

خپله سرکشي لوېږي چې واړه فراموش دي — هسې مې ځان ستا ولوی قامت ته حیران دی

بې له تاکه سیل(۱) په ګلستان کړم د ګلونو — نه پوهېږم هېڅ چې ګلستان دی که زندان دی

چا پېژاندم زه چې عاشق نه وم په جهان کې — اوس مې ستا له رویه نوم رسوا په دې جهان دی

د پرهېز ولې تېر شول د مجنون بې نام ونقشه(۲) — عشق دی چې عاشق له هم نام دی هم نشان دی

لوی ترکوم چې ینځې دي پر وانه چې افسانه شو — واړه په سبب د عاشقۍ دي نمایان دي

واړه د خپل ځان په نظر ګوره که دانا یې
ای عبدالرحمانه جهان د ستا عبدالرحمان دی

۲۶۵ — ۲۸۳۲ م

په نامه د هغه خدای مې دا بیان دی — چې یو نوم یې په نومونو کې سبحان دی

هم(۳) بادشاه دی د جمله و بادشاهانو — هم د هر یوه سلطان په سر سلطان دی

هغه کار چې وهر چا وته مشکل دی(۴) — هغه کار واړه وده وته آسان دی

څوک آفتاب شي په آسمان راخېژولې(۵) — ده آفتاب راخېژولې په آسمان دی

څوک د لمر په مخ حجاب شي غوړولې — ده پټ کړی لمر په ابر کې پنهان دی(۶)

څوک په شپه کې شي مهتاب(۷) پیدا کولې — ده په شپه کې پیدا کړی ماه تابان دی

څوک یو څاځکی پرېښتی شي له آسمانه — نزول(۸) کړی ده په مونږ باندې باران دی

څوک شي روح ننوېستی په یوه ماشي — ژوندی(۹) کړی ده په روح تمام جهان دی

---

(۱) "پ" او "ق" چاپ کې "سیر" او په قلمي نسخو کې "ګذر" راغلی دی.
(۲) د "ب" په لومړۍ نسخه کې "نام ونشانه" راغلی دی.
(۳) د "ب" په لومړۍ نسخه کې د "هم" پر ځای "دی" راغلی دی په "پ پ" چاپ کې یې دوهم مسرۍ داسې ده: "هم د هر یوه په سر باندې سلطان دی".
(۴) د "ق، ک" چاپ: "هغه کار واړه په ده باندې اسان دی".
(۵) "ق" چاپ: "څوک افتاب شي واسمان ته خېژ ولې".
(۶) له مصوري نسخې نه پرته په نورو نسخو کې "پلنهان" راغلی دی.
(۷) د "خ" لومړۍ نسخه: "افتاب". او دا بیت په "ق، ک" چاپ کې داسې دی:
"څوک په شپه کې شي مهتاب راخېژ ولې — ده په شپه کې خېژ ولی ماه تابان دی"
(۸) "ق، ک" چاپ او "ق" چاپ کې "نازل" راغلی دی.
(۹) قلمي نسخې: "زنده".

ځوک وسنګ شي رنګ دګلو ورکولی　　ده وسنګ ورکړی رنګ دارغوان دی [۱]

ځوک له خاوره شي یو ګل پیدا کولی　　ده له خاورو پیدا [۲] کړی ګلستان دی

ځوک لداوره شي اوبه پیدا کولی　　ده له اوره پیدا کړی زمستان دی [۳]

ځوک له سنګه شي ګوهر پیدا کولی　　پیدا کړی ده له سنګه دُر ومرجان دی [۴]

ځوک شي رزق وهر [۵] مخلوق ته رسولی　　دی دهر یوه مخلوق روزي رسان دی

ځوک بنده لره ایمان شي ورکولی　　ده ورکړی هر مؤمن لره ایمان دی [۶]

ځوک له ځمکې وآسمان ته شي ختلی [۷]　　ده عیسیٰ لره ورکړی دا مکان دی

ځوک له خدای سره خبرې شي کولی　　ده موسیٰ مشرف کړی په دا شان دی [۸]

ځوک ایښودی په توسن دهوا [۹] زین شي　　ایښی ده په هوا تخت دسلیمان دی

ځوک په سپینه زیره پاتې ترقیامته [۱۰]　　ده په خضر باندې کړی دا احسان دی

چې په ده شي هغه کار په هیچا نه شي　　هر توانا د ده تر توان پورې ناتوان دی

په اوبو کې یې د کاني کوټ بنا کړ　　ده ورکړی پکې اور لره امان [۱۱] دی

---

(۱) "ق، ک" چاپ : "ځوک شي سنګ ته ورکولی رنګ دګلو　　سنګ ته ده ورکړی رنګ دارغوان دی".
"ق" چاپ : "ځوک شي سنګ ته ورکولی رنګ دګلو　　ده وسنګ ورکړی رنګ دارغوان دی".
د "خ" لومړی نسخه : "ځوک شي سنګ لره دګلو رنګ ورکولی　　ده وسنګ ورکړی رنګ دزعفران دی".
د "خ" دوهمه نسخه "ده ورکړی سنګ ته رنګ دارغوان دی."

(۲) د "خ" له دوهمې نسخې نه پرته په نورو نسخو کې "زرغون کړی" راغلی دی.

(۳) دا بیت په "پ" چاپ، "ق، ک" چاپ او "ق" چاپ کې نشته

(٤) دا بیت د "خ" په لومړی نسخه کې نشته.

(۵) د "خ" دوهمه نسخه : "وکل مخلوق ته". په "ق" او "ق، ک" چاپ کې دا مسرئه داسې ده : "ځوک شي رزق رسولی هر یوه ته".

(٦) دا بیت د "پ" په لومړی نسخه کې نشته. د "خ" لومړی او مصوره نسخه کې د "مومن" پر ځای "بنده" راغلی دی.

(۷) قلمي نسخې : "ځوک له ځمکې وآسمان وته ختی شي".
"ق" او "ق، ک" چاپ : "ځوک له ځمکې وآسمان ته دی ختلی".

(۸) دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته.

(۹) په چاپي دیوانونو کې د "هوا" پر ځای "اسمان" راغلی دی.

(۱۰) "ق" چاپ : ځوک تر ډیره به وپاتې ترقیامته".

(۱۱) چاپي دیوانونه : "مکان دی"
لومړی بیت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته.
په "پ" چاپ او د پښتو په چاپي دیوانونو کې د "کوټ" پر ځای "ګوټ" راغلی دی.

په سجده[1] یې ځمکې سردي لګولي
هم یې زور ند په رکوع سره آسمان دي

هره ونه په قیام ورته ولاړه
هر ګیاه یې په تسبیح سره زبان دي[2]

همه واړه په تسبیح دده مشغول دي
که ملك دي که پیري دي که انسان دي[3]

هر ماهي یې په دریاب کې حمد[4] وایي
هر مرغه یې په چمن کې ثنا خوان دي

حق په حق یې ثنا هیچا کړې نه ده[5]
نه له هیچا واقع شوې دا بیان دي

مخلوقات و هسې نه دي پیژندلي
لکه ده سره[6] چې قدر دخپل ځان دي

حد پایان یې بې هیڅ سري موندلي نه دي
معرفت یې هسې بحر بې پایان دي

نه هیڅوك دده په خبر دده په شان دي
او نه دي دچا په خبر دچا په شان دي[7]

نه یې زیان نه یې زوال نه یې نقصان شته
دي[8] بې زیانه بې زواله بې نقصان دي

نه یې مثل نه مثال نه یې مکان شته
دي بې مثله بې مثاله بې مکان دي[9]

پاك یې وګنه بې شکه بې ګمانه
له هغو چې دچا شك دچا ګومان دي[10]

نه یې څوك په سترګو ویني نه لیده شي[11]
او یې چونه بې چوګونه نمایان دي

که څوك والي لیده نه شي لیده نه شي[12]
او که والي وهر چا ونه عیان دي

---

(۱) په چاپي دیوانونو کې "سجود" راغلی دی.
"پ پ" چاپ کې دوهمه مسره داسې ده : " زور ند سره هم په رکوع سره آسمان دی".

(۲) د "خ" دوهمه نسخه : " ګویان دی "

(۳) قلمي نسخه : " که سړي دی که پیري دی که حیوان دی" .

(٤) د "خ" دوهمه نسخه کې د "حمد" پرځای "ثنا" راغلی دی.

(۵) "پ" چاپ ، "پ پ" چاپ او "ق ، ک" چاپ : " حق په حق یې هیچا نه ده ثنا کړې".
"ق ، ک" چاپ کې دوهمه مسره داسې ده : " نه هیچا نه واقع شوې دا بیان دی".

(٦) قلمي نسخو او "پ" چاپ ، "ق ، ک" چاپ او "ق" چاپ کې د "سره" پرځای "څخه" راغلی دی.

(۷) دا بیت په "پ" چاپ ، "ق ، ک" چاپ او "ق" چاپ کې نشته .

(۸) د "خ" دوهمه نسخه کې د "دی" پرځای "او" راغلی دی.

(۹) دا بیت په "ق" چاپ کې داسې دی : "نه یې مثل نه مثال نه یې پایان شته دی بې مثله بې مثاله بې پایان دی".
په "ق ، ک" چاپ کې یې دوهمه مسره له "ق" چاپ سره یو شان ده په نورو چاپي دیوانونو او قلمي نسخو کې یې لومړۍ مسره داسې ده : "نه یې مثل نه مثال شته نه یې مکان شته".

(۱۰) مصوره نسخه : " له هغو چې دچا فکر په بل شان دی ".

(۱۱) "ق" چاپ او "ق ، ک" چاپ : " که یې څوك په سترګو ویني لیده نه شي".

(۱۲) د "خ" دوهمه نسخه : "که څوك وایي چې لیده شي لیده نه شي ".

منزه دی له جمله و جهتونو — او بیا هر جهت په ده باندې ودان دی[1]

بې پردې به حسن چا نه وي لیدلی — که څوك وايي چې لیده شي تش گومان دی[2]

۲۶۹ — ۲۸۶۸

له زر گونو صفتونو راشه گوره

چې یې کړي نیم صفت عبدالرحمان دی[3]

ذره مې ستا په ذکر فکر گلستان دی — تن مې ستا له غمه پاڼه د خزان دی

ستا د غم له هجره هسې لړزه مند یم — چې په سترگو کې مې جوړ رود روان دی[4]

ستا کتو[5] مې عجب زخم په زړه وکړ — چې هم وینې ترې بهیږي هم خندان دی

هسې رنگ مې د خپل زړه له وینو واخست — چې ځان درست راته په شکل د جانان دی

که د ستا د زلفو مار کاندي خوږنه — ما موندلی ځنې عمر جاودان دی

ځنگدن که هر څو تریخ وتلخ واړه شي — ستا د لبو په مدد آب حیوان دی

آشنايي تر حد الحد کمزوري نه ده — معطر په بوی د مصر درست کنعان دی

لکه لمر په څلورم آسمان لیده شي — محبت په سل حجابه کې عیان دی

نور د شمع په فانوس کله پټیږي — عشق د عقل په پرده کې نمایان دی

که د ستا په مخ کې بوی د حجاب نشته — زه له ډېرې ځلې[6] وایم چې نهان دی

---

(۱) دا بیت په مصوره نسخه کې نشته.

(۲) دا بیت د "خ" له دوهمې نسخې نه نقل شو.

(۳) د "ب" لومړۍ نسخه : "له هزار وصفتونو باور مه کړه — چې یې کړي دا صفت عبدالرحمان دی".
"ق" چاپ او "ق، ک" چاپ : "له زر گونو صفتونو راشه گوره — یو صفت یې کړي ما عبدالرحمان دی".
د "خ" لومړۍ نسخه : "له هزار صفتو یو یې ادا نه کړ — چې یې کړي دا صفت عبدالرحمان دی".
د "خ" دوهمه نسخه او مصوره نسخه : "له هزار وصفتونو باور وکړئ — چې یې کړي نیم صفت عبدالرحمان دی".

(٤) دا بیت او ورپسې دوه بیتونه د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته. په چاپي دیوانونو کې دا بیت داسې دی : "ستا د هجر په غم هسې لړزه مند یم — چې په سترگو کې مې جوړ رود روان دی"
د "خ" په لومړۍ نسخه کې دوهمه مسره داسې ده : "چې له سترگو مې د میو جوی روان دی".

(۵) په "ق، ک" چاپ کې "ستا لیدو" راغلي دي.

(٦) په "ق" چاپ او "ق، ک" چاپ کې "مینې" او د "خ" په دوهمه نسخه کې "حیا" راغلي دي.

طاوس رنګې زلفې چا دي سمې کړي(۱) — چې هر موی یې په ښو رنګه په خوشان دي
بې پردې په حسن نه وې چا لیدلې — که خوک والې چې لیده شي تش ګمان دی(۲)
ښادي غم غوندې اسانه مونده نه شي — سوړ په خپلو وینو لعل د بدخشان دی
که وصال په هر زمان وای هسې دریغه — لکه غم چې د هجران په هر زمان دی
بې د ستا له ملاقاته چې مشکل شو — نور مشکل واړه په ما باندې اسان دي
هم په دا راته اسان شوه نور غمونه — چې ستا غم د حد په هور ته راته ګران دي
قافله د صبر هیڅ ویسا پرې(۳) نه کا — ستا له غمه مې منزل د زړه ویران دي
یو نفس به دې له دره بیرته نه شم — څو مې یو نفس(۴) باقي په دا جهان دی
لکه سر وسامان ستا د زلفو نشته — هسې زړه زما بې سر و بې سامان دی
لکه تا چې تور ګیسو په مخ پریشان کړه — هم مې هسې خراب زړه پسې پریشان دی

خوار خاطر به د رحمان سلامت څو وي
چې ګذر یې ستا په چاه زنخدان دی

۲۶۷ — ۲۸۸۹

ستا د عشق حرفونه تورنه دي ګلګون دي — هم په دا چې نوشته په جګر خون دي(۵)
تشریح نه شي هغه غم د عشق له میو — چې یې خاوري د فرهاد و د مجنون دي(۶)
د دنیا چاري همه واړه فاني دي — دا د ستا جور و فا ولې افزون دي
مقتولان ستا د غمزو دي لاله نه دي — چې په سره کفن له ځمکې رابېرون دي

---

(۱) چاپي دیوانونه: "طاوس رنګه زلفې دې چا هسې ګړه کړې".
د "خ" دوهمه نسخه: "طاوس رنګه زلفې نه دي چا لیدلې — که خوک والې چې لیده شي تش ګومان دی".
(۲) دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه او نیمګړې نسخه کې نشته.
(۳) د "پ" لومړی نسخه او د "خ" په لومړۍ نسخه کې: "ما باندې نه کا" راغلی دی.
(۴) "ق" چاپ او "ق، ک" چاپ کې "دم نفس" راغلی دی.
(۵) دا غزل په قلمي نسخو کې نشته.
(۶) "ق، ک" چاپ: "یاره ستا جور و جفا ولې افزون دی".

چې یې هیڅ بها زلمي و ځنه نشته — جونه نه دي سکه ګنجونه د قارون دي

بادشاهان په یوه دم کې ګدایان کا — مال بدلي فسادونه د ګردون دي

**۲۶۸** — **۲۹۹۶**

د رحمان زړه خوناب مګر قبول شي

چې مخونه د دلبرو پرې ګلګون دي

غم دې هسې غلبه شو په ما باندې — چې مې ځای نه شي د ننه نه د باندې

له زګیرویه مې نور خلق په عذاب شول — تل د وچوله کبله سوځي تاندې

زه د ستا په غم کې شمع غوندې ژاړم — ته زما په ژړا صبح غوندې خاندې

زړه مې هسې ستا په لورې آویزان دی — لکه زلفې دې په مخ دې آویزاندې

ما دې ستا دانه ښېښو په اوښکې سوې — د دنیا اندېښنې واړه لکه سپاندې

دا دستور دی چې لوی (۱) غم په سړي ورشي — نور غمونه یې هم شي تر پښو لاندې

هر چې ما په نصیحت له تا جار باسي — بیا دې ستا په لورې د روي تر ما وراندې (۲)

**۲۶۹** — **۲۹۰۴**

سره لمبه ګوره چې څه کا په وچ ډکي

مخ د یار په رحمان هسې چارې کاندې

په دنیا کې که څه کار دی خوردین دی — د دې کار په کننده ؤ آفرین دی

چې تقوی او دینداري یې شي په بخره — د هغو د سعادت ستوری قرین دی

قناعت مې هسې خوند په خوله کې کېښود — چې وچ ټوک مې په دهن کې انګبین دی

بې حاجتیا نو یې اوښانو بادشاهي کا — د زاړه پوزي توکر کې یې قالین دی

چې په خواست د حاجت پورته کا لاسونه — د آسمان د ملایکو پرې آمین دی

چې قبوله کهتري کا په دنیا کې — د هغو په بهترۍ باندې یقین دی

---

(۱) په قلمي نسخو کې "یو" راغلی دی.

(۲) د "خ" دوهمه نسخه: "هغه تله کا ستا ولورته تر ما وراندې".

تل د لوړي اوبه درومي و ژوړ ته — حق تعالی کمال ورکړی و مکین دی

خاکساري د خاکسارانو مرتبه ده — که زمکې لا خیرن وي زړه یې سپین دی

د سرکښو سرکه ورشي و آسمان ته — په دوه ورځې پسې ځای زېر زمین دی

چې سنبوره یې وي په سرکې اولوي کا — د رحمت لیاقت نه لري لعین دی

که صورت یې د سړي، سړي بالرشي — په معنی کې سړی نه دی شیاطین دی

که رحمان سره متاع د دنیا نشته — شکر دا چې نه خودرای دی نه خودبین دی

٢٧٠ — ٢٩١٦

مخ د یار شمس و قمر درې واړه یو دي — قد د سرو صنوبر درې واړه یو دي

حاجت نه لرم په شهد و په شکرو[1] — لب د یار شهد و شکر درې واړه یو دي

که بې یاره په بستر د یاسمین و یم — نار و خار و دا بستر درې واړه یو دي

چې و درو و دیوار ته یې نظر کړم — باغ بوستان او دغر دره درې واړه یو دي

چې غبار یې د کوڅې را باندې راشي — دا غبار مشک و عنبر درې واړه یو دي

خدای د یار له هجره هېڅوک خبر مه کړه — تاخت و قتل دا خبر درې واړه یو دي

هغه دم چې سړی درومي له جهانه — توره خاوره سیم و زر درې واړه یو دي

قلندر چې په رښتیا قلندري کا — خان، سلطان و قلندر درې واړه یو دي

ور دې نه شي په پردي ملک حمله هېڅوک[2] — کوڼ و کړ او مبصر درې واړه یو دي

چې دې نه لکې یو یار نه دې آشناوي — هغه نهر بحر و بر درې واړه یو دي

په دکان د نابیناؤ جوهریانو — خرمهره لعل و گوهر درې واړه یو دي

پسران دي عار زما له عشقه نه کا — پاک عاشق پسر[3] پدر درې واړه یو دي

---

(١) د "خ" لومړۍ نسخه: "حاجت نه لري په شهدو په شکرو".

(٢) په قلمي نسخو، "پ" چاپ، "ق" چاپ، او "پ پ" چاپ کې دا مسرعه داسې ده: "ور دې نه شي په پردې که حمله هېڅوک".

(٣) دا بیت په "پ" چاپ کې نشته او په مصوره نسخه کې د "پسر" پر ځای "پیر" راغلی دی.

په سبب د ظالمانو حاکمانو — ګور او ور او پېښور د ږي وار ه يو دي[1]

**غزل وشوه که ځان ستائي و ناصح ته**

**(۲۹۳۰) (۲۷۱)**

**بې هنره ګا وخر د ږي واره يو دي**

چې دا هسې لاس په لاس د دنيا پرېښود ي — ~~خه چو چندن~~ په ځان پورې مښود ي

دا دنيا په مثال پوله مرګ سيلاب د ي — د سيلاب په مخ کې څه پوله اېښودي

جل ځلي لا وا ده ندوي سره کونه وي — دا رنګ چارې د مرګې د خرخښود ي

تا فلې چې په دنيا کې شوې داخلې — بيا هم هسې معلومېږي چې دلښود ي[2]

دا سفر به په هغو باندې آسان وي — چې ترکوچ بچوا په زېرمه د توښود ي

چې بې وخته ارمان کا په رخت اوده وي — د هغو عالمو نېږې د وکښو دي

په هر شان چې يار خوښېږي زه هغه کړم[3] — خپلول د صاحبانو په پېښو دي

ديار غم مې لکه تاج وي په سر اېښې — نور غمونه مې هم لاندې تر پښو دي

معشوقې په عاشقانو خود پوهېږي — د لته څه د عاشقه نښې د ښو دي[4]

**مې خواران کړي خبر شي لا مستي نه**

**(۲۹۴۰) (۲۷۲)**

**د ناصح د ميخانې شراب د خښو دي**

زه بلبل ستا د وصال بوستان خر دی — ستا د وصل په نسبت ګلستان خر دی

چې آشنا شي ستا له دره له د بوله — انتظار يې په روضه د رضوان خر دی

چې روزي يې شهادت شي ستا له تېغه — احتياج يې په چشمه د حيوان خر دی

چې مسکن يې د زړه ستا د زلفو خم شي — وهغوته د عطار و دکان خر دی

---

(۱) دا بيت د "خ" په نسخه کې نشته، په "ق" چاپ او "ق،ک" چاپ کې دا مسرئه داسې ده: "ګور او کور او پېښور د ږي واره يو دي".

(۲) "ق" چاپ، "ق،ک" چاپ، په "مصره" په او د "خ" په دو هم نسخه کې "د تلو دي" راغلي دي.

(۳) قلمي نسخې: "په هر رنګ چې يار خوښېږي نه يې کړمه".

(۴) د "خ" دو هم نسخه کې "اېښودي" راغلي دي.

هر چې لاندې خپل وجود تر خپل قدم کا | عرش یې لاندې تر قدم شي آسمان څه دی

بوالهوس که بوسه غواړي له تا څه شو | هر رنګ هر رنګ ویل کاندي نادان څه دی

زه چې ستا له غمه زار یم آه فریاد کړم | برق و رعد چکاره دي باران څه دی

ځان جهان مې هسې ستا په مینه هېر دی | نه پوهېږم چې ځان څه دی جهان څه دی

ته چې نه ګورې وما ته لږ مې پوه کړه | په دا کار کې دې ضرر او نقصان څه دی

که ستا سترګې دي قاتلې زه مقتول یم | وایه لوړ دې په خاطر کې ارمان څه دی

زه بې صبره یم که مهر د ستا نشته | له دې دوارو دې په زړه کې ګمان څه دی

چې مې وینې ترو مې څه پوښتې له حاله | له عیانه احتیاج د بیان څه دی

۲۷۳ — هر چې وایي ستا رسۍ د رحمان غاړه
وتوانا وته حجت د ناتوان څه دی — ۲۹۵۳

نیغ[۱] مې ستا د بڼو غشي په سینه دي | پورې ووړې مې وتلي ترا ینه دي

تل یې مخ د یار په مخ باندې وي ایښی | هغه زړونه چې بې زنګه آیینه دي

هسې نه چې زه نن ورځ په تا شیدا یم | ستا غمونه مې په زړه کې دېرینه دي

لکه ستوري چې بربښنا کا په آسمان کې | په تن مې ستا داغونه نګینه دي[۲]

درته وایم چې له آهه مې پرهېز که[۳] | د هغو چې پوښاک وي پشمینه دي

که د ستا رخسار سوزانې لمبې وي | ولې کسې زما تور سوي نه بینه دي

څه بد سم په صبحدم ګورې وځانه | چې دې سترګې په مې مستي شبینه دي[۴]

هغه سترګې چې پیدا کړې خدای خونړۍ | بې غضبه[۵] په غضب او په کینه دي

شرابیان[۶] چې شراب مومي خوږې شومي | کله منعم په اخترۍ[۷] په آدینه دي

---

* . د دې مخ پایلیکونه دې په (۲۰۵) مخ کې وکتل شي.

۲۷٤ — ۲۹۶۳

چې تمام د خپل ځیګر په وینو رنګ شو
د رحمان خبرې ځکه رنګینه دي

د عاشق نظر په خورد و په خواب نه دی (1) — مراد یې بې د یار له دره (2) بل باب نه دی
تر نظر په خپل هنر په عقل مه کړه — دا اسباب په عاشقۍ کې اسباب نه دی (3)
چې د یار سره حساب د دنیا کاندي — د غه هیڅ په عاشقانو حساب نه دی (4)
چې عاشق په عاشقۍ کې ارباب نه شي (5) — که د درست جهان ارباب شي ارباب نه دی
هر چې یار منعه کوي له خپله یاره — دا کتاب د عاشقانو کتاب نه دی
دا حجاب چې نور (6) عالم یې حجاب بولي — دا زما د یار تر میانه حجاب نه دی
که ثواب دی هم سیوا د یار له مخه (7) — ما ګڼلی د غه کار په ثواب نه دی
که لیدلی زلیخا یوسف په خوب و — ما په ویښه دی لیدلی په خواب نه دی
صبر و نیسه په مخ کې که مراد غواړې — هیڅ اکړی د غه کار په شتاب نه دی

۲۷۵ — ۲۹۷۳

سوال د بوسې کړی دی رحمان له یاره
لا یې هیڅ ځنې موندلی جواب نه دی

د عشق زخم خو د زخم په شان نه دے — د بل زخم په خیر سهل و آسان نه دی (8)
عاشقان و معشوقې سره پوهیږي — د غه راز و نور عالم ته عیان نه دی (9)
عاشقي نه ده که ګورې حیراني ده — کوم سړی په د غه کار کې حیران نه دی (10)
یو عاشق دې څوک راوښیي په عشق کې — چې یې رود په مخ د اوښکو روان نه دی (11)
هوره اوښکې د عاشق په ګریوان ورې (12) — ته به وایې چې یو سیند د ګریوان نه دی
دا هجران دی چې یې مرګ په عاشق ګران کړ — که هجران و سره نه وي هیڅ ګران نه دے (13)

---

* د دې مخ د متن پایلیکونه دې په ( ۲۰۵ ) مخ کې وکتل شي.

نور غمونه که په ځان د سري بد دي | غم د ترکو بد د مېچا په ځان نه دی (۱)

د دوزخ داور که تاو له حده تېر دی | برابر د بېلتانه لـــه نېران نه دی (۲)

چې بالښي خوږک په عشق کې کم عقل | دا کم عقل د بر هوښیار دی نادان نه دی

۲۷۹ | چې بې یاره وجهان وته نظر کړم | ۲۹۸۳

رحمان وایم چې ویران دی وران نه دی (۳)

---

د (۲۰۳) مخ د متن پاملیکونه :

(۱) په قلمي نسخو کې "څرخ" راغلی دی.

(۲) دا بیت د "خ" په لومړي نسخه کې نشته . په "ق" چاپ او "ق، ک" چاپ کې د "داغونه" پرځای "غمونه" راغلی دی.

(۳) د "ب" لومړي نسخه او د "خ" لومړي نسخه : " ورته وایه چې له آهو مې پرهېز که".

د "خ" دوهمه نسخه : " ورته وایه چې له آهوې پرهېز که".

(٤) دا بیت د "خ" په لومړي نسخه کې نشته .

(۵) "ق" چاپ او "ق، ک" چاپ کې "بې سببه" راغلی دی.

(٦) د "خ" په دوهمه نسخه کې "مې خوران" راغلی دی.

(۷) د "خ" په لومړي نسخه کې "په جمعه" راغلی دی.

د (۲۰٤) مخ د متن پاملیکونه :

(۱) دا غزل د "ب" په نسخو او مصوره نسخه کې نشته .

(۲) "ق، ک" چاپ ، "ق" چاپ او د "خ" لومړي او دوهمه نسخه کې " د یار له بابه" راغلی دی.

(۳) د "خ" لومړي او دوهمه نسخه : " دا اسباب د عاشقانو اسباب نه دی".

(٤) د "خ" لومړي او دوهمه نسخه : " د غه جنګ به عاشقانو کې حساب نه دی .

(۵) د "خ" نسخې : " ارباب نه وي ".

(٦) د "خ" دوهمه نسخه : " عام عالم"

(۷) د "خ" لومړي نسخه : " که ثواب دی هم ثواب دیار په عشق کې".

(۸) "ق، ک" چاپ : " د عاشق زخم د زخم په شان نه دی

د غه راز ولوړ عالم ته عیان نه دی".

"ق" چاپ : " د غه راز د نیا عالم ته عیان نه دی".

د "خ" دوهمه نسخه : " د عاشق زخم خه د زخم په شان نه دی".

(۹) "ق، ک" چاپ : " دا د عشق اسرار په هاخا ګمان نه دی".

"ق" چاپ : " دا د عشق اسرار په جاهلانو بیان نه دی".

د "خ" دوهمه نسخه : " د غه راز د هر سړي ته عیان نه دی".

(۱۰) دا بیت د "ب" په لومړي نسخه کې نشته .

(۱۱) "ق" چاپ : " باران نه دی".

(۱۲) د "ب" لومړي نسخه : " هومره اوښکې د عاشق په ګریوان در و مي".

"ق، ک" چاپ : "هومره اوښکې د عاشق په مخ راد رومي".

د "خ" دوهمه نسخه : " هومره اوښکې په ګریوان د عاشق درومي.

(۱۳) چاپي دیوانونه : " که هم ځان د محنه د غه دومره هم ګران نه دی"

(پاته په (۲۰٦) مخ کې)

هر نګار چې بې وفا دی نګار نه دی — په ګلزار کې چې ګل نه وي ګلزار نه دی (۱)

هغه یار چې اخلاص نه لري یار نه دی — هغه کار چې بې فایده دی څه کار نه دی (۲)

په تلخۍ د میو مست خالق (۳) مې خوښ دی — هغه خار چې بوی د ګل لري خار نه دی (٤)

دیندار یې د دنیا داري ده حبله (٥) لري — مال به دلې هیڅ دیندار دنیا دار نه دی

که رونګار دی په جهان کې عاشق ده (٦) — د دې نور عالم رونګار څه رونګار نه دی

چې تصدیق یې په خپل زړه کې محکم نه وي — دا په خوله ظاهر اقرار څه اقرار نه دی (۷)

په هر زړه چې د خپل یار د غم غبار وي — د غبار د رحمت دی غبار نه دی

چا به کسب نې له شفقته نور څه نه کړه — باري ګنج دی چې هر چا ته اظهار نه دی (۸)

معشوقه وفا له هیچا سره نه کا — ګنهګار یو د دې رخت خریدار نه دی

---

د ۲۰۵ مخ د متن پا یلیکونه :

(۱) دا بیت په مصوره نسخه کې نشته . د "خ" لومړۍ نسخه کې یې لومړۍ مسرۍ داسې ده : " لور غمونه که په ځان د هر سړي دی ".

(۲) دا بیت او ورپسې بیت په قلمي نسخو کې نشته .

(۳) "ق ، ک" چاپ : " زه رحمان وایم چې وران دی ودان نه دی ".

د دې مخ د متن پا یلیکونه :

(۱) دا غزل د "ب" په نسخه او مصوره نسخه کې نشته . د دې غزل لومړی بیت د "خ" په لومړۍ نسخه کې داسې دی : "هغه یار چې بې وفا دی څه یار نه دی
هغه کار چې بې بقا دی څه کار نه دی

د "خ" دوهمه نسخه : له اغیار سره سودا څه په کار نه دی
له مکار سره رونګار څه رونګار نه دی

(۲) دا بیت د "خ" له دوهمې نسخې نه نقل شو .

(۳) "ق ، ک" چاپ : "انسان".

د "خ" دوهمه نسخه : " په تلخۍ د میو مست عالم خرم وي "

(٤) دا مسرۍ د "خ" په لومړۍ نسخه کې داسې ده : "هغه کار چې بوی د خار لري خار نه دی".

(٥) "ق ، ک" چاپ او "ق" چاپ : "سره".

د "خ" لومړۍ نسخه : "وسله".

(٦) د "خ" لومړۍ او دوهمه نسخه : "که رونګار دی په دنیا کې د عاشق دی "

(۷) د "خ" لومړۍ او دوهمه نسخه : " چې بنا یې د تصدیق محکمه نه وي
د ظاهر په خوله اقرار څه په کار نه دی

(پاته په (۲۰۷) مخ کې)

دد لدار وصال دخدای په داد مونده شي[1] — دغه کار مې دهیچا په اختیار نه دی

۲۷۷ — ۲۹۹٤

په رحمان باندې منت دمعشوقو دی[2]
دبې حسنو معشوقو منت بار نه دی

هغه یار چې بې وفا دی خه یار نه دی — هغه کار چې بې بقا دی خه کار نه دی
که دسر ښندل دشوار په ما وتا دي[3] — دا په عشق کې سهل کار دی دشوار نه دی
اند پښنه سړي بیدار کاندي لخوبه — کم اندېښنه که بیدار دی بیدار نه دی
که خه عمر دی عاشق لره وصال دی — دهجران عمر دعمر په شمار نه دی[4]
دچشمانو په حُنبل[5] کې تېر و بېر شي — اعتبار دزماني اعتبار نه دی[6]
که دسلوز ویو پلار شي به یې خه کا[7] — بې وقوفه زوی دپلار خه په کار نه دی[8]

معشوقې همېشه ناز په عاشق کاندي
رحمان هیڅ لدخپله یاره آزار نه دی[9]

۲۷۸ — ۳۰۰۱

عاشقان دي په اور سوي یا دې که نه دي — ستا دعشق په اور الوي دي که نه دی[10]

---

د (۲۰۶) مخ د پاڼلیکونو پاته برخه:

(۸) "پ" چاپ، "ق، ک" چاپ او "ق" چاپ: "باړي گنج دی چې هر یوته اظهار نه دی".
د "خ" لومړی نسخه: "حیا به کسب دعشق نه کم باری خه کړي چې داگنج وهر یوه ته اظهار نه دی".

ددې مخ دمتن پاڼلیکونه:

(۱) "پ" چاپ او "ق، ک" چاپ: "دخپل یار وصال دخدای په داد مونده شي".
"ق" چاپ: "دخپل یار وصال دخدای په امر مونده شي".
د "خ" لومړی نسخه: "دخپل یار وصال دخدای په داد مونده شي دغه کار و هیڅ بنده ته اظهار نه دی".
(۲) دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کی نشته.
(۳) د "خ" لومړی نسخه: "که دسر ښندل دشوار دی وتا ته".
(٤) د "پ" لومړی نسخه: "دهجران عمر په عمر خه شمار نه دی".
د "خ" لومړی نسخه: "دهجران عمر په عمر شمار نه دی".
(۵) د "خ" دوهمه نسخه: "دهل".
(٦) د "خ" دوهمه نسخه، "ق، ک" چاپ او "ق" چاپ: "اعتبار دزماني خه اعتبار نه دی". او هم دا بیت او ورپسې بیتونه د "پ" په لومړی نسخه کی نشته.
(۷) "ق، ک" چاپ: "که دسلوز ویو پلار شي خوك به یې خه کا". "ق" چاپ: "که دسلوز ویو پلار شي خوك به یې خه کا نه دی".
د "خ" دوهمه نسخه: "که دسلوز ویو پلار شي ته به یې خه کړي"
(۸) د "خ" لومړی او دوهمه نسخه او مصوره نسخه: "بې وقوفه زویه زویه دپلار نه دی".
(۹) د "خ" لومړی نسخه: "معشوقه همېشه ناز په عشاق کاندي دا رحمان لدخپله یاره آزار نه دی". په "ق" چاپ کی هم معشوقه راغلی ده.
(۱۰) دا غزل د "خ" په لومړی نسخه، مصوره نسخه او نیمگړي نسخه کی نشته.

زخمتونه د هجران واړه په عشق کې — تا وما وته بنو ولې دي که نه دي

په دنیا کې خو یا سر و مال ویل شي — د واړه ما په تا بایللي[1] دي که نه دي

تل د دوو ځو په لېندو د بنو غشي — تا په ما باندې راکښلي دي که نه دي

چې مدام یې زمانه له غمه چوي — تورې زلفې دي پېچوې دي که نه دي

راشه وګوره احوال د عاشقانو — مړه د عشق په تېغ کوتلي[2] دي که نه دي

ناصحان چې نصیحت وما ته کاندي[3] — چېرې دوی هم مین شوي دي که نه دي

بنایسته که په بنایست کې ملایک وي — په وکښنه د زړونو روي دي که نه دي

۲۷۹ — ۳۰۱۰

بلبلان پسې ناري وهي رحمانه
د بهار ګلونه شوي[4] دي که نه دي

داسې وند يې چې معلوم يې واړه مړه دي — که څه دي هم هسې وایه چې څه نه دي[5]

یا د باد په مخ کې خاوري دي دا تورې — یا د اوبه مخ کې واړه وچ واښه دي

د خپل عمر شپې او ورځې چې په شره کړم — هسې دروغ ګویا لهنده او به دي[6]

غافلان که وېني اوري به يې څه کړي[7] — دالې خوب دي نه لېده نه اورېده دي

چې د خدای له معرفته خبر نه وي — هغه واړه که بیدار دي هم اوده دي[8]

۲۸۰ — ۳۰۱۶

د رحمان د زړه له حاله خدای خبر دی
چې په زړه کې یې د یار له غمه څه دي[9]

---

(۱) په قلمي نسخو کې "پا سلوي دی" راغلی دی.

(۲) د "ب" په لومړي نسخه کې "په شیر کوی دی" او د "خ" په دوهمه نسخه کې "په ستر ګو کوي دي" راغلی دی.

(۳) په "پ" چاپ او "پ ب" چاپ کې "دیاړته" راغلی دی.

(٤) په قلمي نسخو کې "تويي دي" راغلی دی.

(٥) دا غزل د "پ ب" چاپ کې نشته.

(٦) د "ب" لومړي نسخه: "هسې دروغ چې دسیند ګویا او به دی". د "خ" دوهمه نسخه: "هسې دروغ ګویا بحردی او به دی".

(٧) "ق، ک" چاپ: "غافلان چې وېنې اوري عمل نه کړي".

(٨) د "خ" لومړي نسخه: "بیدار نه دی".

(٩) د "خ" لومړي او دوهمه نسخه: "چې په زړه یې د اشنا له غمه څه دی".

په ظاهر صورت چې ستا د درګدای دی ‏— په معنی کې د جمله وګو کدخدای دی (۱)

مجنون بېد غوندې بې رونق د ګلستان شي ‏— چې یې ستا له غمه سر په پشت پای دی

چې له غمه د جرس غوندې نالان دی ‏— د جمله ګمراهانو رهنمای دی

چې خوک زړه د ستا وتوره وسترګو ورکا (۲) ‏— ستا د وروځو تر محراب لاندې ځای دی

چې مسکن یې د زړه ستا د زلفو خم شي ‏— د هغو نا ستی په سیوري د همای دی

چې تا وویني وما ته نصیحت کا ‏— شک پرې مذکوره بې شکه چې خودرای دی

۲۸۱

که زردار دي آشنایان د زردارانو
د رحمان د آشنایانو تکیه خدای دی

۳۰۲۲

که مطلب و مدعا سړي خدای دی ‏— هر هر سړی د ژوندیو رهنمای دی

مسافر چې په رحلت کې حبله غږ کا ‏— هر آوان یې خواب آلوده درای دی

که سړی وحقیقت و ته نظر کا ‏— ژوندی خلق واړه ناست د مړو په ځای دی

داخو بخت دی خوک یې سپین او خوک یې توره ‏— ګنه عینې لکه زاغ هسې همای دی

لکه فرق چې د همای او د زاغ نشته ‏— هم دغه دلیل د شاه و د ګدای دی

ته نظر د کاریګرو په کار مه کړه ‏— کار همه واړه موقوف په کارفرمای دی

سالکان چې د جهان تماشا کاندي ‏— له جهانه یې مطلب جهان آرای دی

که خوک خپل د ستو وپای و یاسي له میانه ‏— خدای یخپله د بې دستو دست و پای دی

په هغه جهان سبکي و بدي نشته ‏— هر مطلب د طالبانو په داسرای دی

۲۸۲

زه رحمان یوازې نه یم په دا کار کې
همېشه دیار په یار پسې وای وای دی

۳۰۳۳

---

(۱) قلمي نسخې: "په معنی کې د جمله جهان کدخدای دی".

(۲) "ب" په لومړي نسخه او "خ" په نیګړي نسخه کې "توره و زلفو" راغلي دي.

که د خلقو و نظر ته آدمي دی — خوار عاشق د معشوقې د کوځې سپی دی

هر چې ځان دیار په سپیو کې داخل کا(۱) — تر و هاله به ورته وایم چې سړی دی

ما د خدای دیار له غمه بې غم نه کا — دا په ملك د عاشقۍ کې لوی ورانی دی

زه د یار په غم کې زیره خبره خوښ یم — دا زما خزان خزان نه دی سپرلی دی

زه ژوندون دیار و وصل ته وایم — گنهگار یو دوزخې په ژوندون ژوندی دی

تر چې ما منعه کوې دیار له دره — کوم یو دی له دغه دره بریالی دی(۲)

زه دیار مینې په یار باندې شیدا کړم — که خوك ما گڼې زه نه یم وار دی دی

چې وحشي مجنون یې ښهر له راوست — د لیلی د زلفو مسې غر وندی دی(۳)

زرداران که او به ښني په جام د زرو — خوښ زما د اخپل د خاوره و کنډولی دی

اورنگ زیب که د دیلي په تخت نازیږي — خپله خوله هر گدای له دیلي دی

چې له خپله کوره و وځي مسافر شي — خوك یې په ژړنې ساهو دی که مړی دی

چې یې خاوري شي له خاوره سره گډې — تر و چا خرزده چې دکوم نبکه ملسی دی

توره شپه په آشنایانو رڼا ورځ ده — رڼا ورځ په ناآشنا و تروږمی دی

نه دي ستر گې پوه زه غوږ دکم شناختو — په معنی کې یو دبوال سوری سوری دی(٤)

عاشقان یې د دنیا له غمه خلاص کړه — عشق په مثل د سلیمان باداشاهي دی

هر چې حب د عاشقۍ لري په زړه کې — که په قطع(۵) صد ساله وي هم ځلمی دی

داهلال دی چې لیده شي په شفق کې — که په لاس دگل ندامې سپین ښږی دی

ناآشنا به ډېره خشکل ځنې مومي — چې مدام یې په آشنا باندې غوږی دی(٦)

---

(۱) د "پ پ" چاپ کې "حساب کا" راغلی دی

(۲) دا بیت د "خ" په نیگمړي نسخه کې نشته.

(۳) دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته.

(٤) دا بیت په نیگمړي نسخه کې نشته.

(۵) په "ق" چاپ او "ق، ک" چاپ کې "حمر" راغلی دی.

(٦) په "ق" چاپ او "ق، ک" چاپ کې "زبیرگی" راغلی دی.

خر بوي مې قرباني لره پوهېږم — دا چې کړې دې په ما باندې زړه سوی دی

چې په نوم باندې بالښت لېده نه شي — معلومېږي چې نرحوږ یا ښاپېرۍ دی (۱)

چې د خط په دود خلق یې پېرېږي — زنخدان یې تر سبزې لاندې کوهې دی (۲)

زه رحمان له یاره خوښېږم که جفا کا

۲۸۳ — ۳۰۵۵

که جفا نه کا وفا کا خو تېرۍ دی

ستا الفت مې په مخ باندې ولې دی — لږ مې ووښته له حاله چې ولې دی؟

زه په تا پسې مجنون یم قارون نه یم — چې مطلب مې غوا وغیلې یا غلې دی (۳)

هغه کوڅې لکه تا دې په ما کړې — کله کړې په مجنون باندې لیلی دی

لکه ما چې مصلي درپسې لنګ کړې — کوم ملنګ هسې لنګ کړې مصلي دی

بوی هم ستا د وفا نه دی رالوتی (۴) — ما پخپله خپلې کړې تسلي دی

نصیحت اثر په زړه د عاشق نه کا — ګنه یا دې زما د پېرې مسلي دی (۵)

که رحمان د عاشقۍ په تېغ شهید شي

۲۸۴ — ۳۰۶۲

د جنت حورې همه واړه دلې دي

چا چې کړې و دنیا و ته اسرې دي — د همه واړو په سر خاورې ایرې دي (۶)

نادانان که د دنیا په چار نازېږي — و دانا ته واړه وشتې (۷) مسخرې دي

چې بې خدایه محبت کا هغه خلق — نارینه یې واړه خره او ښځې خرې دي

وسپین ږیري وته مه وایه سپین ږیره — همګي واړه طفلان د ګهوارې دي (۸)

---

(۱) دا بیت په نیګمړي نسخه کې نشته، د "خ" په لومړي نسخه کې دا مسرۍ داسې ده: "معلومېږي چې نه حوږ نه ښاپېرۍ دی".

(۲) دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته.

(۳) "پ" چاپ: "زه په تا پسې موسی یم قارون نه یم — چې مطلب مې غوا وغیلې یا ګلې دي".
د پېښور چاپي دیوانونه: "زه په تا پسې موسی یم قارون نه یم — چې مطلب مې غوا، غلې او یا ګلې دي".

(٤) په قلمي نسخو کې "رابلودلی" راغلی دی.

(٥) دا بیت په "پ پ" چاپ کې نشته.

(٦) چاپي دیوانونه: "دهغو په سر همه خاورې ایرې دی" (٧) "ق، ک" چاپ: "تموکې"، د "خ" لومړی نسخه: "ږشتی"

(٨) د "پ" لومړي نسخه: "دا همه واړه طفلان د ګوارې دی". د "خ" دوهمه نسخه: "وسپین ږیري نه مه وایه چې سپین ږیری".

هسې وايي چې ځمکه دي د ز نانو ... کړي يې ايښې په دستارکې ترڅې دي
نه څه فيض نه ګټه ځنې مونده شي[1] ... همګي واړه بې فيضه بې ګټې دي

۲۸۵ ... ۳۰۶۹

ذخيره د دنيا مه کوه صالح ناله
دا همه واړه د خاورو ذخيرې دي[2]

په هر ځای چې ستا ثنا شي ښيوه ګري ... خوږه شي هلته د رو مرغلري
دغو ستر ګو به اوښکې وي ګلرنګې ... هر چې ستا په ګل رخسار وي منتظري
هغه کله د ناصح خبرې اوري ... هر چې اوري ستا خوبې خوبې خبري[3]
مرور کاندي عاشق له جمله خلق ... معشوقې له هيڅا مه شه مروري
په ساعت کې سړي مړ هم بې ژوندي کا[4] ... طايفې دي د خوبانو سحرګري
زه ځان ډوب ګڼم بې تا په خپلو وينو ... کړمي ډوب کا څوک په شهدو په شکري
لړې لړې غم دي واړه رانژدې کړ ... چې له مخه دې حجاب کړ را ته لري
چې مي نوم د ستا د تورو زلفو واخيست[5] ... راپسې شوې د بلا تورې لښکرې
هيڅ په حق د حقدارانو نه ګروهيږي ... هميشه زما د زړه په ورو منکري[6]
زما ستا مينه ښکاره په جهان ده ... ولې دا رنګه ښکاره ګواهي[7] نغري

---

(۱) چاپي ديوانونه : "چې نه فيض نه څه ګټه ځنې مونده شي".
مصوره نسخه : "نه څه فيض نه څه ګټه ځنې مونده شي".
(۲) د "پ" لومړۍ نسخه : "د همه واړو په سر خاورې ايرې دي".
د "خ" دوهمه نسخه : "د دنيا ذخيرې کل خاورې ايرې دي".
مصوره نسخه : "دا همه دايره خاورو ذخيرې دي".
(۳) د "خ" په دوهمه نسخه کې "ورې ورې خبرې" راغلي دي.
(٤) چاپي ديوانونه : "په ساعت کې سړى مړ کا هم ژوندى کا".
د "خ" دوهمه نسخه : "په ساعت کې سړى مړ بيا يې ژوندى کا".
(۵) چاپي ديوانونه : "چې مې نوم د ستا د زلفو په خوله واخيست".
(٦) د "پ" لومړۍ نسخه : "هميشه زما په زړه ورې منکرې"
مصوره نسخه : "هميشه زما په ورې زړه منکري". نوموړى بيت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته.
(۷) د "خ" په دوهمه نسخه کې د "ګواهي" پر ځاى "دعوى" راغلى دى.

زه چې ستا له غمه ژاړم آه فریاد کړم — د رقیب کره هم د ول وي هم سندرې [1]
چې میوه یې د کابل خوړلې نه وي — د هغو له خمه وځکېږي ګرګرې [2]
د رند و سترګو حاجت د رانجه نه وي [3] — په بد رنګه نا وې څه والې سندرې
که په غره په سمه ګرځم باك مې نشته — مزرې تل ګرځي په لوړې په ژورې

۲۸۶ — ۳۰۸۴

د رحمان شعر به ولې نادر نه وي
چې ثنا کاندي د تا غوندې نادرې

عاشقي را باندې سورې کړې مړې — هیڅ مې نه دروي یې یاره ترمرې [4]
څه اثر به یې د عقل وي په سر کې [5] — د هغو په سر چې کېږي سبا پېرې
د مژګانو په پنجو مې زړه راکاږي — خدای د ترکو بندې [6] سترګې کړې زمرې
علوفه به یې بې غمه نور څه نه وي — هر چې کاندي د خوبانو چاکرې [7]
لر د صبر سبق ما له هم را کړې — که په عشق کې څوك د غه طاقت لري [8]
خدایه څه دي د کوتوال په لاس کې ورکړم — چې شپېرو ورځ مې غږوي لکه تورې [9]
په صورت مې نرې تبه شوه ولاړه — تا چې د واره سترګې تورې کړې نرې [10]
د وصال دلالان کوم طرف ته غواړم؟ — چې بندي شوم د هجران په کچرې
نور د شمع په فانوس کله پټېږي — تا چې واغوستې د خیال جامې نرې

---

(۱) د "خ" دوهمه نسخه : "زه چې ستا له غمه تل ژړا فریاد کړم — د رقیب کره هم د ول شته هم سندرې".
د "ق ،ک" چاپي دیوان کې دوهمه مسره داسې ده : "د رقیب کره مې د ول دی یا سندرې".
(۲) دا بیت او ورپسې دوه نور بیتونه په "ب" چاپ ، "ق ،ک" چاپ ، "ق" چاپ ، د "خ" لومړۍ نسخه او مصوره نسخه کې نشته.
(۳) د "ب" په لومړۍ نسخه کې "په رند د سترګو" راغلي دي.
(٤) د "خ" دوهمه نسخه : "عاشقي را باندې سیورې کړې ژړې — هیڅ مې نه دروي یې یاره ترحلقې".
په "ب" چاپ او "پ ب" چاپ کې لومړۍ مسره داسې ده : "عاشقي را باندې سورې کړې مړې".
(٥) مصوره نسخه : "څه اثر به یې په سر کې وي د عقل".
(٦) چاپي دیوانونه : "مستې".
(۷) د "خ" لومړۍ نسخه : "که په عشق کې څوك د غه طاقت لرې".
(۸) دا بیت د "خ" په لومړۍ نسخه کې نشته.
(۹) دا بیت په لوړو قلمي نسخو کې نشته په [illegible] نسخه کې داسې دی : "خدایه د عشق د پېر دلالو په لاس کې ورکړم — شپېرو ورځ مې ژغم وي لکه تېرې".
(۱۰) دا بیت او ورپسې دوه نور بیتونه په قلمي نسخو کې نشته.

کله رقیبانو ته نظر کړي کله ما ته ... ستا باران د مهر په ښو بد و یکسان اوري

ځان په مستو سترګو باندې مه غلوه رحمانه[1]

۲۸۹ ... ۳۱۱۰

دا مستان هوښیار دي له حکمته سره ښوري

غمخواري دا هسې چیرې وي غمخوري ... چې به ما د لته کې ناست لرې ته ړوندې[2]

هغه خدای چې یې ستا مخ بله لمبه کړ ... د الم به یې کړه زما په ګوګل پورې

هم هغه دي زما توره لیمه سره کړي ... چې یې ستا لاسونه سره کړه سترګې تورې[3]

غل د سرو د مال غلا په توره شپه کا ... ته په ورځ زما د سر و د مال چورې

اصیل نه دي چا پیر ودي نه یې پلورې ... ته اصیل په دیدن پیرې هم یې پلورې

دا کوم رنګ د آشنایۍ او دیارې دی[4] ... چې زه ستا د مخ ننداره کړم ته مې زورې

د رخانۍ په سل غمونو خلاصی اخته کړه ... زه به ولې له تا زار کوم که ګورې[5]

زه وتا وته د ستا له جوره ژاړم ... ته راواخلې[6] سل ګیلې نادرې نورې

۲۹۰ ... ۳۱۱۹

د رخسار په عاشقۍ به آفرین کړې

که لمن مخ په آئینه کړې ځان وګورې[7]

ته په هره ګړۍ[8] غم د سیم و زر خورې ... زه دې هره ګړۍ وینم چې خپل سر خورې

عاقبت به دې یو خنډ تر سینې ورځې ... ته چې تل په هر هر[9] شاخ باندې ثمر خورې

---

(۱) د "ب" لومړۍ نسخه : " مه غولېږه دسترګو په وهلو یې رحمانه".
(۲) قلمي نسخې : " چې ما دلی وته ناست لرې ته دورې ".
(۳) دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته .
(٤) په چاپي دیوانونو کې د "یارۍ" په ځای " ورورۍ " راغلی دی.
(۵) دا بیت د "ب" په لومړۍ نسخه ، د "خ" په دوهمه نسخه او مصوره نسخه کې نشته د "خ" په لومړۍ نسخه کې دوهمه مسرۍ داسې ده :
" زه به ولې له تا زار کړم خپلې مورې ".
(٦) "ق" چاپ او "ن ، ک" چاپ کې " راوسېکې " راغلی دی.
(۷) د "ب" لومړۍ نسخه : " که لمن مخ وآئینې ته کړې وګورې "
د "خ" لومړۍ نسخه : " که لمن مخ وآئینې وته وګورې".
د "خ" دوهمه نسخه : " که ته مخ وآئینې وته وګورې".
(۸) د "خ" دوهمه نسخه : " چې په هره ګړۍ ".
(۹) چاپي دیوانونه : " هر یو ښاخ " ، د "خ" دوهمه نسخه او مصوره نسخه : " په هر ښاخ ".

معلومیږي چې خپل غم د سره نشته — څکه غم د برادر او د پسر خوري [1]
په عوض یې کوم طاعت کړي راته وایه — دا نعمت چې [2] په هر شام په هر سحر خوري
روژتي هم په خلوه یار پس افطار کا — نه خاوه څله طعام په هر پهر خوري [3]
کړیو څله تر کماله ورسیږي — نور به غوښې د خپل ځان لکه قمر خوري
بې هنر وله قند هم زهر قاتل دی [4] — قند یې وګڼه که زهر په هنر خوري
که سنبه د نام و ننګ دې شي تر ځنګه — د هر چا په کج روی به خپل ځیګر خوري [5]

٢٩١

خوشال په زړه د صبر [6] نخل کړه رمانه
چې [7] مدام د برخوردار وي په خیر برخوري

٣١٢٨

لر چشمانو مې د غم دا او بنې ایدي — چې اغیار (ته) یار زما له قصده ګوري [8]
سر و مال به د قاصد تر راتلو جار کړم — چې خبر د الدرا وړي د یار له لوري
تر سر کې پیزوان یې جار شه قلندره — لکه مست هاتي مدام په ځنځیر سنوري
تر چې راغلي خوبان واړه پسې شا شول — لر چې وځیږي نور چې پټیږي ستوري
شینکي خال دې د جبین په مخ کې زیب کا — لکه حوره د طوطي ونې تر سیوري

٢٩٢

په تاج د بېغمی ساعت حرام شو
لکه بید مجنون مې شاله سنوري

٣١٣٤

---

(١) دا بیت په چاپي دیوانونو کې نشته.
(٢) د "خ" دوهمه نسخه: "چې نه هر شام"، "ق" چاپ او "ق، ک" چاپ: "چې نه په هر شام و سحر خوري".
(٣) دا بیت د "خ" په لومړي نسخه او مصوره نسخه کې نشته، "ق، ک" چاپ: "نه به خر ننګه روژه نیسي په صبر چې خلوه څله طعام په هر پهر خوري". په نورو چاپي دیوانونو او د "خ" دوهمه نسخه کې لومړی مسری داسې ده: "روژتي په خلوه هم پهر افطار کا".
(٤) د "ق، ک" چاپ او قلمي نسخې: "بې هنر وله قند زهر قاتل دی".
(٥) دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته لومړی مسری یې د "پ" په لومړي نسخه کې داسې ده: "که سنبه د نام و ننګ ده تر ځنګه".
(٦) مصوره نسخه: "د خیر نخل کړه".
(٧) "ق، ک" چاپ او "ق" چاپ: "که مدام".
(٨) دا غزل د "خ" له دوهمې نسخې نه نقل شو په نورو نسخو او چاپي دیوانونو کې نشته.

تر ابده وختې پورې به جفا کړي  کم به مهر و وفا هم چېرې پیدا کړي

معشوقې کله جفا کله وفا کا  مېنا یې چې کله هغه کله دا کړي

ماسته خوې دې وهر چا و ته ستا یلی[1]  چېرې یې نه چې د رو غږن مې تر هر چا کړي

ستا خه لاس را باندې نه رسي دلبره  چې په لاس د رقیبانو مې سزا کړې[2]

مرم به دا چې د رقیب[3] په رضا د ر و مې  نه په دا چې ته په ځان خپله رضا کړې

چې دغه او ښکې زما دغه خوستا وې[4]  دا یې راز به مې په درست جهان رسوا کړي

په درست عمر به هیچا لېدلې نه وي[5]  هغه چارې چې ته هر ساعت پر ما کړې

مارځور په کټ کې پرېږدې چې کمربېنم  تر لاګر زې د رقیب سره خندا کړې[6]

لاس تر غاړې د رقیب سره خندا کړې  چې ما و وینې له قصده را ته شا کړې[7]

هر بېګاه والې چې خوله به سبا د ر کړم[8]
دا بېګاه به په ناح کله سبا کړې

۲۹۳ — ۳۱٤٤

په پیرې کې چې هوس د مې و ناب کړي  بې هوده ګمان په صبح د مهتاب کړي[9]

بې طاعته عنایت له خدایه غواړي[10]  د عتاب په ځای امید د ثواب کړي

دانسته ګناه کوي توبې و کا بې  لکه بت هسې په غمو سترګو خواب کړي

په هغو غوږو چې ذکر د خدای اوري  بیا سماع په هغو غوږو د رباب کړي

---

(۱) د "پ" په نسخه کې "ویلي" راغلی دی.
(۲) دا بیت د "خ" په لومړۍ نسخه کې نشته.
(۳) په چاپي دیوانونو کې "اغیار" راغلی دی.
(٤) چاپي دیوانونه: "چې دستا دغه خصلت دی زما او ښکې".
(۵) د "خ" لومړۍ نسخه: "په درست عمر به یې هیچا لیدلې نه وي".
(۶) دا بیت د "پ" په لومړۍ نسخه، د "خ" په دوهمه نسخه او مصوره نسخه کې نشته. د "خ" په لومړۍ نسخه کې د "کمربېنم" پر ځای "لولېږم" راغلی دی.
(۷) دا بیت د "پ" په لومړۍ نسخه، د "خ" په دوهمه نسخه او مصوره نسخه کې نشته.
(۸) چاپي دیوانونه: "هر بېګاه والې سبا له به خوله درکړم". د "خ" په لومړۍ نسخه کې د "خوله" پر ځای "حق" راغلی دی.
(۹) دا غزل په مصوره نسخه کې نه دی راغلی.
(۱۰) د "ب" لومړۍ نسخه: "په طاعت عنایت له خدایه غواړي". په "پ" چاپ کې داسې راغلی دی: "بې طاعته عنایت غواړي له خدایه".
او دا بیت د "خ" په لومړۍ نسخه کې داسې راغلی دی: "بې طاعته عنایت له خدایه غواړم د عتاب په ځای امید د آب وتاب کړي".

په هغو شوندو چې حمد وثنا وايې — هم هغه شونډې بيا د ونې په شراب کړې

علم وکړې هيڅ(1) عمل ورباندې نه کړې — لکه طفل هسې لوبې په کتاب کړې

په شپه پروت يې د مغان په ميخانه کې — او په ورځ مخ په لوري د محراب کړې(2)

تمام عمر د دنيا په طلب ګرځې — بيا د خداى په طالبانو حساب کړې

له خالقه دې نه شرم نه حجاب شي(3)

له رانه ګوښه ونيسې حجاب کړې

۲۹۴ — ۳۱۵۳

چې مدام د بل وعيب وته نظر کړې — خداى له خپله عيبه ولې ناخبر کړې(4)

که يو جو دانه عيب وينې په بل کې(5) — هغه يو جو دانه عيب به دې لوى(6) غر کړې

که دې خپله ګناه لويه لکه غر وي — په حيله حيله به غر د مچ وزر کړې(7)

که خوك تله د انصاف په لاس کې درکا(8) — خپل تټو او د بل آس به برابر کړې

تو لعنت دې په داهسې منصفي شه — چې له حقه و باطل وته ګذر کړې

خداى وتا د ملائکو مقام درکړ(9) — ته دا خپل صورت په خپله ګاو خر کړې

په نعمت يې شکرانه کولى نه شې — چې زحمت درباندې درشي شور وشر کړې(10)

---

(1) د پېښور په "ق، ک" چاپ کې د "هيڅ" پر ځاى "بيا" راغلى دى.

(2) دا مسرۍ په "پ" چاپ کې داسې راغلې ده: "او د ورځې مخ په لورې د محراب کړې"
و "خ" په لومړۍ نسخه کې داسې راغلې ده: "ورځ د ورځې مخ په لورې د محراب کړې".

(3) دا مسرۍ په "پ" چاپ او "پ اپ" چاپ کې داسې راغلې ده: "له خالقه دې نه شرم نه حجاب دى".
د پېښور "ق، ک" چاپ کې داسې راغلې ده: "د خالقه دې نه شرم نه حجاب شته".
د "پ" په دوهمه نسخه کې دا مسرۍ داسې راغلې ده: "له خالقه دې هيڅ شرم حجاب نه شي".
او د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې راغلې ده: "د خالقه دې نه شرم شي نه ويره".

(4) دا غزل د "ب" په لومړۍ نسخه کې نشته، د "خ" په لومړۍ نسخه کې د "ناخبر" پر ځاى "کور وکړ" راغلي دي.

(5) د "خ" په لومړۍ او دوهمه نسخه کې "د نورو" راغلي دي.

(6) د "خ" په لومړۍ او دوهمه نسخه کې "تورغر" راغلي دي.

(7) دا بيت د "خ" په لومړۍ نسخه کې نشته.

(8) د "پ" نسخې او د "خ" لومړۍ او دوهمه نسخه: "که خوك تله دانصاف درته په لاس کا".

(9) د "ب" لومړۍ نسخه: "خداى د تا ته ملائکو مقام درکړو".

(10) دا بيت په "پ" چاپ، "ق" چاپ او "ق، ک" چاپ کې نشته.

چې خدای ستا په رضا کار کا ستا هم بویه　　چې دا خپله رضا واړه و خدای وته کړي (۱)

نه هغه چې دی به ستا په رضا کار کا　　ته خپل ځان دده په کار کې مقصر کړي

که دې یو وښته دځان د پاسه کوږ شي　　ځان هغه ساعت له خدایه منکر کړي

چې بندګي دې په خدای وی یو ګوهر دی　　نمایان یې په جهان کې لکه نمر کړي

لکه څوك ترملې لار شي بېرته راشي　　د دنیا دپاره هسې لوی سفر کړي

که یوه رتبه دې نه د په لاس کې کښېوځي　　خرڅ خرواره دعبادت په رتبه ور کړي (۲)

دځوانۍ عمر دې تېر کړو په غفلت کې　　په پیرۍ کې به څه زړه مه د محشر کړي (۳)

په دنیا پسې دې ملري دي رنګ کړي　　ځان وخلقوته درویش وقلندر کړي

لکه وار چې د زړي لوله تېر شي　　اوس تونې له ضرورته په سپین سر کړي

په پیرۍ کې دځوانۍ چاره (۴) نه شي　　ته په ورځ دعاشوري به څه اختر کړي

لکه بیخ د زړي ونې چینجي وخوري　　په دا تېر عمر به څه ښاخ وثمر کړي

دغه باغ به دې خلاص نه شي له خزانه (۵)　　که چاپېر ورځنې سد د سکندر کړي

۲۹۵　　وبدخواه وته څوك نیك نصیحت نه کا
ستا په غم شریك دی که باور کړي　　۳۱۷۳

خدایه مه کړه ناامید هغه وګړي　　چې امید یې وي د ستا په کرم کړي

ستا له رحمه به زه ولې نومېدي کړم　　چې دې ځان دی د رحیم په نام نوم کړي (۶)

خواست زما قبول کړې ای ملك الملکه　　ستا د اسم اعظم روی مې دی درود کړي (۷)

---

(۱) دا دوه بیتونه په چاپي دیوانونو کې نشته.
(۲) دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته. د "پ" په لومړۍ نسخه کې یې دوهمه مسره داسې ده: "خرواره دعبادت په رتبه ورکړي"
(۳) دا بیت په مصوره نسخه کې نشته. دوهمه مسره د "خ" په لومړۍ نسخه کې داسې ده: "د پیرۍ په وخت به څه نګدا اختر کړي".
د "خ" دوهمه نسخه: "د پیرۍ په وخت به زړه مه د محشر کړي".
(۴) دا بیت په مصوره نسخه کې نشته په "ق، ګ" چاپ کې د "چاره" پر ځای "کار ونه" راغلي دي.
(۵) د "خ" په دوهمه نسخه کې "له زاغانو" راغلي دي.
(۶) د "خ" دوهمه نسخه: "چې دې ځان دی د رحیم په نام یاد کړي".
(۷) دا څلور بیتونه په چاپي دیوانونو او قلمي نسخو کې نشته، د ملا بسته خان په نامه له قلمي جونګ څخه نقل شول. نوموړی قلمي جونګ د ښاغلي رفیع په شخصي کتابخانه کې شته.

خلاص یې مه کړه بندیوان بندې چې تمین — چې په غاړه یې وي ستا د مینې پړی
همېشه به رنځوری او ملن ګرځي — چې یې نهال وي په سینه د مینې زړی
که ملاح ستا د الطاف وي چې خلاص کا — ګنې نه شي خلاصېدی د عشق سیند وړی
دا نیمګړي سړي ننګ هم دخیل نام کا — ته خو خدای یې چې په هېڅ نه یې نیمګړی[1]
هېڅ بنده دې په بندګۍ[2] کې لېوه نه شي — چې تا خط د ازادۍ[3] نه دی ورکړی
دا همه واړه شومیت دی د شومانو — ګنې ته د چا په زړه نه یې ستړی
چې یې تا یې په زړه باله هوا ګرځي — تر مقصوده به ونه رسي وګړی[4]

۲۹۶ — ۳۱۸٤

هر چې ستا په لاره قدم د راستۍ کېږدي
که یې زیان وي زه رحمان یې پور وړې

د آشنا له لاسه ناست یم په زړه ستړی — په فلوس مې په کار نه دی درست وګړی
چې په ژوندي طمع پرېکړه شي له ژونده[5] — نور په څه باندې وېرېږي سړی پرېکړی
که ژوندون د عاشقانو په وصال وي — زه مهجور یم په دغه روایت مړی
خوږ ژوندون مې جدایي هسې را تریخ کړ — چې د غم له تلخۍ دم نه شم رانغړی
دا صورت[6] په مثال خس محبت اور شو — تر و داور په مخ کې څه کاندې خسړی
لاعلاج به لکه اوښ باربرداري کا — چې په پوزه یې پېزوان شو د عشق پړی[7]

۲۹۷ — ۳۱۹۱

له احواله یې د دردو پوښتئ یارانو
بېلتانه د رحمان وار دی خطا کړی

---

(۱) د "پ پ" چاپ : "نه خو خدای وي چې په هېڅ نه وي نیمګړی".
"ق، ک" او "ق" چاپ : "ته خو خدای یې په هېڅ خیز نه یې نیمګړی".
(۲) د "پ پ" چاپ او "ق، ک" چاپ : "بزرګۍ".
(۳) د "پ پ" چاپ : "بزرګۍ".
(٤) د "پ" لومړی نسخه او د "خ" لومړی نسخه : "دووړی" ـ د "خ" دوهمه نسخه "خوب وړی".
(۵) د "خ" لومړی نسخه : "په ژوندون چې طمع پرې کا له ژوندونه".
(۶) د "خ" دوهمه نسخه : "دا ژوندون".
(۷) د "ق، ک" چاپ : "د غم پړی".

خو به هسې آزادي په دا جهان کړي — چې خبرې به د سرو و سامان کړي[1]

همېشه به دا جهان دې باندې نه وي — چې به سیل په بوستان په گلستا کړي

واړه دردي بدلوي (بې) په مشکلېو — هر تلاش چې د دنیا په سود و زیان کړي

غمخواري د آل عیال دې حمقي ده — چې د بل په زړه مرګ چې خپل نقصان کړي

په نفاق کې به ضایع شي مرد هاله — که بخوا تر دښمن جمع خپل کاروان کړي

چې په دوو بېړیو پښې ږدي دوب شي — بېهوده دلبستګي په این وآن کړي

دتبر عمر زمان مه کوه حمانه

۲۹۸ — چېرې نه وي چې بیا دا ساعت ارمان کړي — ۳۱۹۸

خدایه زړه د رقیب نرم په حسان کړي[2] — مال د یاره ، یار له ما سره یکسان کړي

هغه درد چې د آشنا د بېلتانه دی — دفع رفع[3] یې د وصل په درمان کړي

ته چې ما منع کوې د یار له لوري — کشلي باد سحر منع په بوستان کړي[4]

غم د هجر چې تېرې، تر او ره سخت دی[5] — له دې غمه مې په امن په امان کړي

کاروبار د عاشقي ډېر مشکل دی[6] — دا مشکل زما په ما باندې آسان کړي

حجاب لرې کړه زما د یار تر میانه[7] — بې حجابه مخ د یار را ته عیان کړي

که مطلب د نور چا نور یې من تېږي دی — ما گدای په آستانه د خپل جانان کړي

که دا نور عالم وبله خواته گوري — ما په لوري د دلبرو[8] نګران کړي

---

(۱) دا غزل د "خ" له درېمې قلمي نسخې نه نقل شو.

(۲) دا غزل په مصوره نسخه کې نشته . ددې بیت لومړی مسرعه د پېښور په چاپي دیوانونو او قلمي نسخو کې داسې ده: "خدایه زړه د مهر دیانو مهربان کړي".

(۳) په "ب" چاپ کې "دفع ورفع" راغلي دي.

(٤) دا بیت په قلمي نسخو او د پېښور د قصه خوانۍ "ق. ک" چاپ کې نه دی راغلی

(۵) دا مسرعه د "ب" په لومړۍ نسخه کې داسې ده: "غم د هجر چې بتر تر کاڼي اور دی".

په پېښور چاپي دیوانونو کې داسې راغلې ده: "غم د هجر چې تېرې تر کاڼي اور دی".

د "خ" په لومړۍ نسخه کې "غم د هجر چې تېر تر کمه او وېره دی".

(٦) د پښتو ټولنې د لومړۍ نسخې نه پرته په نورو ټولو کې دا مسرعه داسې راغلې ده: "کاروبار د عاشقۍ چې ډېر مشکل دی."

(۷) دا مسرعه په پېښور چاپ کې داسې راغلې ده: "حجاب لرې کړه زما له یار تر میانه"

(۸) د "خ" په لومړۍ نسخه کې "دلبرانو" راغلي دي.

نه به ما منع کړې نه، له خپله یاره — نه به کوز په حمله ستوري د آسمان کړې [۱]

نه چې یار لره ورځم په هغې لاره کې — مهتر خضر مهتر الیاس مې رهبران کړې [۲]

تاریکي د معصیت را ځنې واخلي — د طاعت په رڼښنایي مې زړه روښانه کړې

چې زما په پریشانۍ یې [۳] زړه سنه کېږي — زړه یې ما غوندې په یار پسې پریشان کړې

چې زما په چمن راشي گستاخي کا — د شبنم په څېر یې عمر یو زمان کړې [۴]

چې ازاده د منکر تر سره پرې بوځي — د فلک په څرخ مې تورن د زیان کړې [۵]

هغه عشق چې د ترکو د غمزو وي — هر کلام مې د هغه عشق پیکان کړې [۶]

چې کشور د افغانانو معطر کا [۷] — د هر بیت مسرې [۸] مې زلفې د خوبان کړې

چې هر حرف مې د نافې په څېر خوشبوي شي [۹] — برکت مې په جزدان په قلمدان کړې

الهي د خپل حبیب له برکته [۱۰]
داساده انشا رنگینه د لعل کړې

۲۹۹ — ۳۲۱۶

ما په تا پسې داسې جامې رنگ کړې — ته لا بیا په ما گومان د نام و ننگ کړې [۱۱]

هیڅ اثر یې په سنگین خاطر و نه شو — که هر څو مې مصلي د رپسې لنگ کړې [۱۲]

---

(۱) دا بیت په قلمي نسخو کې نه دی راغلی.

(۲) دا مسرۍ د "پ پ" په چاپ کې داسې راغلې ده: "مهتر خضر او الیاس مې رهبران کړې".
"ق، ک" چاپ کې داسې راغلې ده: "نه چې یار لره ورځم په کومه لاره کې مهتر خضر او الیاس مې رهبران کړې".

(۳) د "خ" په لومړۍ نسخه کې د "یې" پر ځای "دې" راغلی دی.

(۴) دا بیت د "پ" په دوهمه نسخه کې نه دی راغلی.

(۵) دا بیت د "پ" او د "خ" په لومړۍ او دوهمه نسخه کې نه دی راغلی.

(۶) دا بیت د "خ" په لومړۍ او دوهمه او د "پ" په دوهمه نسخه کې نه دی راغلی.

(۷) په "پ" چاپ او په پېښور ملولو چاپي دیوانونو کې د "کا" پر ځای "شي" راغلی دی.

(۸) دا بیت د "پ" په دوهمه نسخه کې نه دی راغلی.

(۹) دا مسرۍ په "پ" چاپ کې داسې راغلې ده: "چې هر حرف یې د نافې غوندې خوشبو وي".
"پ" چاپ: "چې هر حرف یې د نافې په څېر خوشبوي دی"
د پېښور "ق، ک" چاپ: "چې هر حرف د نافې غوندې خوشبو دی".
د "خ" په لومړۍ نسخه کې: "هر چې حرف یې د نافې په څېر خوشبوي وي". دا بیت د "پ" په دوهمه نسخه کې نه دی راغلی.

(۱۰) دا مسرۍ د "خ" په لومړۍ نسخه کې داسې راغلې ده: "الهي د پیغمبر له برکته".

(۱۱) د دې بیت لومړۍ مسرۍ په "ق، ک" چاپ کې داسې راغلې ده: "ما په تا پسې دا خپلې جامې رنگ کړې".
دوهمه مسرۍ یې د "پ" په لومړۍ نسخه کې داسې راغلې ده: "ته لا بیا گومان په ما د نام و ننگ کړې" او لومړی غزل په مصور نسخو کې نه دی راغلی.

(۱۲) دا بیت د "خ" په لومړۍ نسخه کې داسې راغلی دی: "هیڅ اثر یې په سنگین خاطر و نه شو که هر څو مې مصلي هم پسې رنگ کړې".

دلسوزي به دې په نور وګړي څو وي (۱) | چې له ما غوندې مخلص سره جنګ کړي
ته په عشق کې ما هاله دروغژن بوله | که (۲) يو بل هم هسې ما غوندې ملنګ کړي
دا ناړې سوړې غمازې دي په عشق کې | ګنه ما به د بلبل په څېر آهنګ کړي (۳)
عاشقي و معشوقي ته سپينه لار ده | ته وما وته دا سپينه لار ګړنګ کړي (٤)
چې يو دم مې له نظره پناه کېږي (۵) | دا جهان لکه لحد را باندې تنګ کړي
په سنه خوی سره د خلقو افسانه وې | خدای زما له کم بختيه په زړه سنګ کړي (۶)

۳۰۰

دا دې څوک له څنګه ناست د نر پوهېږم (۷)
چې خبر يې له (لاح) سره په څنګ کړي (۸)

۳۲۲۵

که د عشق شکرې تېرې تر ګلو کړي | نور لذت به لکه زهر هسې تو کړي (۹)
که دې وشي ملاقات له سره وقدو | د فاختې په څېر به کوکې په کوکو کړي (۱۰)
عاشقي به د عشق توره در په لاس کا | تر و د صبر د سکوت په ملک به هو کړي (۱۱)
په انصاف په عدالت به نوشيروان شي | هر عمل به (۱۲) د خپل ځان په ترازو کړي

---

(۱) دا مسرۍ په "پ" چاپ او "ب ب" چاپ کې داسې راغلې ده: " دل سوزي به دې په لوړ وګړي څه شي".
په "ق، ک" چاپ کې داسې راغلې ده: " دل سوزي به دې په لوړ و خلکو څه شي".

(۲) د "خ" په دواړو نسخو کې د " که " پر ځای " چې " راغلی دی.

(۳) دا بيت په اړو واړو چاپي ديوانونو کې داسې راغلی دی: " دا ناړې سوړې غمازې دي په عشق کې ګنه تل به د بلبل په څېر ټنګ کړي".
د "خ" په لومړۍ نسخه کې داسې راغلی دی: " دا ناړې سوړې غمازې دي په عشق کې ګنه تل به د بلبل په دود په ننګ کړي".
د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې راغلی دی: "دا ناړې سوړې په عشق کې دي غمازي"

(٤) دا بيت په "پ" چاپ او د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې راغلی دی: " د عاشق و معشوقې ته سپينه لار ده ته وما وته دا سپينه لار ګړنګ کړي".

(۵) دا مسرۍ په ټولو واړو چاپي ديوانونو کې داسې راغلې ده: " چې يو دم مې له نظره نه يو خوا شي".
د "خ" په لومړۍ نسخه کې دا مسرۍ داسې راغلې ده: " چې يو دم مې له نظره يوه خوا شي".

(۶) په "ب" چاپ کې داسې راغلی دی: " په سنه خوی سره د خلکو افسانه شي خدای زما له کم بختۍ نه په زړه سنګ کړي".
د "خ" په لومړۍ نسخه کې: " چې سنه خوی بوی د خلکو افسانه يې ".

(۷) په پېښور چاپي ديوانونو کې او د "خ" په لومړۍ نسخه کې "را نه ووايه " راغلی دی.

(۸) د " ب " د لومړۍ نسخې نه پرته په ټولو کې "جنګ" راغلی دی.

(۹) دا رديف په مصوره نسخه کې نه دی راغلی.

(۱۰) دا بيت د "خ" په لومړۍ نسخه کې داسې راغلی دی " که په قد دې سر وقد و دې ګذر شي د فاختې په دود به کوکې په کوکو کړي".
په "ق، ک" چاپ کې په لومړۍ مسرۍ کې د " په څېر" پر ځای "هسې" راغلی دی.

(۱۱) دا بيت د "خ" په لومړۍ نسخه کې نه دی راغلی او په ټولو واړو چاپي ديوانونو کې يې دوهمه مسرۍ داسې راغلې ده: " لو نه د صبر د سکون په ملک به هو کړي".

(۱۲) په "ب" چاپ او د "خ" په دوهمه نسخه او "ق، ک" چاپ کې د "به" پر ځای "چې" او په "ب" چاپ کې "که" راغلی دی.

د سکندر په څېر جهان به در څرگند شي (1) — که سر کوز په آیینه د خپل زانو کړې

تر یخ لوگی به یې د قند و په څېر نغرد شي (2) — که صورت د عشق په اور کې تماکو کړې

و به نه وینې د ترکو مستې سترگې — مگر ځان په خپلو وینو کې سالو کړې (3)

که یو ځله تورې زلفې په شانه کړې — خالستر به په چمن کې کشالو کړې (4)

د ریست جهان به قاف تر قافه معطر شي — که یو ځله شانه گنډه په گیسو کړې (5)

ستا د زلفو مار خوړلی به روغ نه شي — که افسون د مسیحا ور باندې پو کړې

لاس و پښې دې بې زیوره ښایسته دي — خو منت به د پایلو (6) د باهو کړې

که سوزن د بنو راوړې تار د زلفو (7)

د رحمان د زړگي زخم به رفو کړې

٣٠١

٣٢٣٧

(8)

تا چې مخ د پېرۍ سترگې د آهو کړې — نه پوهېږم چې آهوې که جادو کړې

دعاگوی چې د چا و مرې خو ښادي ده (9) — ته په خو زما و مرگ و ته ارزو کړې

په محراب د عاشقانو کاني ووړي (10) — ته چې چین د جبین غوټه په ابرو کړې

تا چې رنگ د گلو واخیست زه پوهېږم — زرغونه به په څېره زما گنگو (11) کړې

ستا له دېره د بره څوره معلومېږي — چې به ما په خپلو وینو (12) کې لاهو کړې

---

(1) دا مسری په "پ" چاپ کې داسې راغلی ده: "د سکندر په څېر جهان به دې روزي شي"، په "پ" چاپ او "خ" لومړي نسخه کې "د سکندر په څېر شاهي به دې روزي شي" او د پېښور "ق، ک" چاپ کې "د سکندر په شان جهان به دې روزي شي" راغلی دی.

(2) د "پ" په لومړي نسخه کې "نغرد"، په "ب" چاپ کې "نغرده" او د "خ" په دوهمه نسخه کې "نغر" راغلی دی.

(3) د "ب" لومړي نسخه: "مگر ځان په خپلو وینو کې لاهو کړې".

(4) دا بیت په دوو دارو چاپي دیوانونو، د "خ" په لومړي نسخه او د "ب" په دوهمه نسخه کې په ورپسې ردیف کې راغلی دی.

(5) دا بیت په چاپي دیوانونو، د "خ" په لومړي نسخه او د "ب" په دوهمه نسخه کې په ورپسې ردیف کې راغلی دی.

(6) د "خ" په دوهمه نسخه کې "پاولیو" راغلی دی.

(7) لومړي پنځه بیتونه په چاپي دیوانونو کې په "تا چې مخ د پېرۍ سترگې دې آهو کړې" غزل کې راغلي دي.

(8) دا غزل د "خ" په لومړي نسخه او مصوره نسخه کې نه دی راغلی. او دا بیت د "پ" په لومړي نسخه کې داسې راغلی دی: "تا چې مخ د پېرۍ سترگې د آهو کړې
تر و پېرۍ که آهوې که جادو کړې"
دوهمه مسری یې د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې راغلې ده: نه پوهېږم چې پېرۍ یې که آهوې که جادو کړې".

(9) د "خ" په دوهمه او د "ب" په دوهمه نسخه کې د "ښادي ده" پر ځای "ښادي که" راغلی دی.

(10) د پېښور "ق، ک" چاپ کې "یو ځي" راغلی دی.

(11) په "ب" چاپ کې "کنگو" راغلی دی.

(12) په "ب" چاپ، د "خ" دوهمه او د "ب" په دوهمه نسخه کې د "وینو" پر ځای "اوښو" راغلی دی.

[1] زاغ به نه شي بې دیاره سره دیدنه — که سل پنډه سپېلني ځان ته لوګي

د غفلت لیچن لېمه به دې روښان شي — که د یار د کوڅې خاورې ته خښبلګو کړې [2]

دا دارو ته به دوالي کوې طبیبه — چې دیار په درد و غم کې مې دارو کړې [3]

نصیحت به عاشقانو اثر نه کا — دا محنت واړه بې ځایه بې قابو کړې

۳۰۲

په ماتم باندې بې یاره خوب حرام دی
کړې سل پالنګه [4] لاندې ترپلو کړې

۳۲۴۷

که نظر په ما توګوره وروزګار کړې — هومره نه دي چې حساب یا به بې شمار کړې [5]

په هر غم کې خاموش اوسه او که نه وې — د بدخواه خاطر به شنه دردو [6] ازار کړې

صبر و نیسه په محنکې که مراد غواړې — په تلوار به هېڅ و نکړې که تلوار کړې [7]

رضا پاسله و قضا ته فراغت شه — او که نور څه نور څه والې ځانه خوار کړې [8]

آزادي او کاروبار دې وبله لرې [9] — لاس له کاروباره وباسه که کار کړې

۳۰۳

چې پخپله بې فاني بولې ماتمه
تروپیاځه په هغو چارو اعتبار کړې [10]

۳۲۵۳

---

(۱) دغه "خ" لومړنی پنځه بیتونه، په ورو وارو چاپي دیوانونو کې په "که د عشق شکرې تېرې تر ګلو کړې" غزل کې راغلي دي.

(۲) دا بیت په "پ" چاپ او "ق،ک" چاپ کې داسې راغلی دی: "د غفلت لیچن لېمه به دې بینا شي — که دیار د کوڅې خاورې دې خښبلګو کړې".
په "پ" لومړي نسخه کې یې دوهم مسری داسې راغلی ده: "که دیار د کوڅې خاورې خښبلګو کړې".
د "خ" په دوهمه نسخه کې دا مسری داسې راغلی ده: "که دیار د کوڅې خاورې په خښبلګو کړې".

(۳) دا بیت د "پ" په لومړي نسخه کې داسې دی: "دا دوا که به دواکوې طبیبه — چې دیار په درد و غم کې مې دارو کړې".
په "پ پ" چاپ کې داسې راغلی دی: "دا دارو ته به دواکوې طبیبه — چې دیار په درد و غم کې مې دارو کړې".
د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې راغلی دی: "وار دې دادی که دواکوې طبیبه — که دیار په درد و غم کې مې دارو کړې".

(۴) په ټولو وارو چاپي دیوانونو کې د "پالنګ" پر ځای "بالښت" راغلی دی.

(۵) دا غزل په مصوره نسخه او د "خ" په لومړي نسخه کې نه دی راغلی. په "پ پ" چاپ کې دا مسری داسې راغلی ده: "هومره نه دی چې حساب او یا بې شمار کړې".

(۶) په "پ" چاپ، د پېښور "ق،ک" چاپ او د "پ" په دوهمه نسخه کې "بناد" او "پ پ" چاپ کې "خوښ" راغلی دی.

(۷) دا بیت د "پ" په دوهمه نسخه کې نه دی راغلی او لومړی مسری یې په "پ پ" چاپ کې داسې راغلی ده: "صبر و نیسه په محنکې مراد غواړه".

(۸) ددې بیت لومړی مسری په "پ پ" چاپ کې داسې راغلی ده: "رضا وسپاره قضا ته فراغت شه".

(۹) دا مسری په چاپي دیوانونو کې داسې راغلی ده: "آزادي او کار و بار دې سره لرې"؛ خو د "پ" په دوهمه او د "خ" په دوهمه نسخه کې د "وبله" او "سره" پر ځای "ځبله" راغلی دی.

(۱۰) دا مسری د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې راغلی ده: "تر و به څه په هغو چارو اعتبار کړې".

ولې ولې وعاشق ته نظر نه کړې — داګدای[1] په ديدن ولې توانګر نه کړې

ستا دې د بړې حيا د بړکور ونه وران کړل — چې وهچپا ته کاته برابر نه کړې[2]

ستا په د چمن مې دا عقيده نه شي — چې دا روغ وګړي وارېا وتر نه کړې

ته پلوله مخه وا خله زه ضامن يم — که او رنګ د زمانې قلندر نه کړې[3]

زما هر زمان هر دم په تا ګذر دے — ته يو دم زما په لوري ګذر نه کړې

لکه ته چې دلاور زما په مرګ يې — چېرې دا رنګه رقيب دلاور نه کړې

زه دستا په جفا خوش يم تل تر تله — که غماز مې له دې رازه خبر نه کړې

ګذشته جور وجفا دې اواره وي[4] — که دا جور وجفا بار ديګر نه کړې

هغه څوک دې چې په ستا له دره درومي — که يې ته له خپله دره بدر نه کړې

سنګدلي ده هغو خلقو له رحمنه — چې يې ته په مجلس ورشي اثر نه کړې

رحمان ستا مينې رسوا کړ ها ري حيف دې
چې ته هيڅ په دا خبره باور نه کړې[5]

٣١٤ — ٣٢٦٤

وخوبانو وته ولې نظر نه کړې[6] — د چمن په ګلو ولې ګذر نه کړې

دا خمار چې د رستا څانې يې معطر کړ — دماغ ولې په دا بوی معطر نه کړې

رضا ولې په قضا سپارلی نه شي — دغه زهر په ځان ولې شکر نه کړې

جلک زده[7] چې په نارو د مرګ خبر يې — ځان پخوا تر مرګه ولې خبر نه کړې

چې د نور خلقو په سر اچوي خاورې[8] — ته په خپله خاورې ولې په سر نه کړې

---

(١) د "خ" په لومړي نسخه کی "خولہ ګدای" راغلی دی.

(٢) د "خ" لومړي نسخه : "ستا دې د بړې حيا د بړکور ونه مات کړه چې هچپا وته کاته برابر نه کړې".

(٣) دا بيت په مصوره نسخه کی نشته

(٤) چاپي ديوانونه : "ګذشته جفا دې واړه آواره وي". د "خ" لومړي نسخه : "ګذشته جور وجفا واړه معاف دی".

(٥) مصوره نسخه : "چې يې ته په دا خبره باور نه کړې"

(٦) دا غزل د "خ" په لومړي نسخه او مصوره نسخه کی نشته . لومړی مسرۍ د "خ" په دوهمه نسخه کی داسی ده : "ولې ولې پر خوبانو نظر نه کړې".

(٧) په "ق، ک" چاپ کی "خواب آلود" راغلی دی .

(٨) "ق" چاپ او "ق، ک" چاپ : "چې نور خلک دې په سر اچوي خاورې". د "خ" دوهمه نسخه او "پ" لومړي نسخه : "چې دې خاورې په سر اچوي نور خلک"

پس له مرګه چې پیا مرې له لوبې تندې — ولې نن ساعت تو بنه د محشر نه کړې

٣٠٥ — ٣٢٧١

دا ویل چې دې اثر کاندې په نورو (١)

اې رحمانه په ځان ولې اثر نه کړې

چا چې لمړې وې په خپلو وینو وللې (٢) — د شبنم په څېر به تل وې سپین سپیڅلې

چې صیاد ځغځه د اوښکو دانې نه وې — د هوا مرغان به چا نه دي نیولې

هر یو مخ کله لایق د آبرو یې وې — اوښکې نه دې رومې په مخ د هر چا ولې

هره شیبه به شمع څه له ژړا کا — کله به نه وې په ژړا کې خه موندلې

چې سیلاب د عاشقۍ وربانددې راغې — مخلوقات په مخه لا اول کله خلې (٣)

٣٠٦ — ٣٢٧٧

ما رحمانه به ژړا نه کړه له خوبانو

کله مې نه وي په قسمت داهسې شکلې

دلبر مخ چې ستا له مخه نه شرمیږي — ترو دا رنګه ولې زېړ نه غوږ نه ښکارېږي (٤)

دا سپوږمۍ چې نه یې سر شته نه یې پښې شته — په کوم حسن بدله تا سره سمېږي (٥)

زړه مې یو و رستا د مخ په رنا زلفو — باری غلې په سپین سبا کله پټېږي

خم ابرو یې د پناه د زلفو تم شو — دلبرم لښه له ما سره تا وېږي (٦)

که قامت (٧) دې څوک شمشاد بولي غلط دې — دلګیو په نرخ سپین زر نه یافتېږي

وردندانو ته دې دُر ویلې نه شم (٨) — کانې کله د بېښنا په دود څلېږي

---

(١) چاپي دیوانونه: "دا ویل دې اثر کله کا په نورو".

(٢) دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته، د "خ" په لومړۍ او د "پ" په لومړۍ نسخه کې لومړۍ مسرۍ داسې ده: "چا چې لاس وي په خپلو اوښکو وللي".

(٣) دا بیت د "ق، ک" له چاپي دیوان نه نقل شو په نورو چاپي دیوانونو او قلمي نسخو کې نشته.

(٤) چاپي دیوانونه: "لمر سپوږمۍ که ستا له حسنه نه شرمیږي — ترو دوی ولې زرغونه او زېړ ښکاریږي".

(٥) د "پ" په لومړۍ نسخه کې "رسیږي" راغلی دی.

(٦) دا بیت او دوه نور بیتونه د "خ" په لومړۍ نسخه کې نشته. د "پ" په لومړۍ نسخه کې دا بیت داسې دی: "خم ابرو یو د پنا هم د زلفو لم شو — دلبرم له نښه مار حیله تاوېږي".

(٧) په چاپي دیوانونو کې "ستا قامت" راغلی دی.

(٨) "پ" چاپ: "و سپین غاښو ته دې دُر ویلی نه شم".

ستا د زلفو د ابرو یو له وحشته[1] — همګي لرم ماران دي چې ورېږي
لکه لوند زړه کی تاو کړي نوي ووزې — ستا له غمه مې رنګ زېړ پو مې چېږي[2]
سپوږمۍ هم هسې تا وخوري ستا له مخه — چې په هره میاشت کې دوه دوه نیمه کیږي
مخ دې او خط دې سبزه ده زه حیران یم — چې سبزه په اور کې څرنګ زرغونیږي
اور او به سره چا ګډ لیدلي نه دي — دا قدرت دی ستا په لبو کې نمایږي[3]

باریک خط یې زلفو لاندې کم رحمان نه
مورچګان د شپې له مخه پایمالیږي

۳۱۷ — ۳۲۸۹

صبحدم چې هغه یار راباندې راشي — عجب لمر د لمر د پاسه هویدا شي
ښکلي مخ له حاجت د سینګار نشته — بې ترتیبه چې لمر وخیږي رنا شي
چې یې وو وینم له ورایه پورې نښلم — لکه پیښن چې وبله کاه وکهربا شي
مال د برې پانلچاري و یار ته شاکره — ناروا د ضرورت په ځای روا شي
زه په وصل کې خواري د هجران ژاړم — د هر کار فکر تر کاره لا ښخوا شي
لا ښخوا تر جدایۍ نه ژړا بویه — ګنه هلته هر یو ژاړي چې جدا شي
وصال نه دی چا په سر و مال موندلی — مګر غاره په دا کار د چا ادا شي
زه به سر و مال د یار تر نامه جار کړم — دا په عشق کې سهل کار دی که په دا شي

د رحمان په او ښکو هسې رنګ پوهیږم
چې آخر به په تمام جهان رسوا شي[4]

۳۱۸ — ۳۲۹۸

کړد ګلو کړه چې سیمه دې ګلزار شي — اغزي مه کره په پښو کې به دې خار شي

---

(۱) په قلمي نسخو کې "له وربڅې" راغلی دی
(۲) دا بیت او ورپسې بیت په قلمي نسخو کې نشته
(۳) د "مخ" په دویمه نسخه کې "ښکاریږي" راغلی دی.
(٤) د "ب" لومړۍ نسخه: "چې دا پټ راز به په تمام جهان رسوا شي".

ته چې بل په غشو ولې هسې پوه شه — چې هم دا غشي به ستا په لښو ګوزار شي
کوهې مه کنه د بل سړي په لار کې — چېرې ستا به د کوهي په غاړه لار شي
ته چې هر چاته په خوار و ستر ګو ګورې — لا به هومبی په ستا صورت ترخا او د خوار شي
آدم زاد په معنی واړه یو صورت دی — هر چې بل ازار وي هغه ازار شي
که ته نه کوې نظر د چا و عیب ته — هر سړی به ستا د عیبو پرده دار شي
دهقان کر په اوړه ځمکه باندې نه کا — سر کوزې کوه چې بن دې مرغزار شي (۱)
د مات لوښي آواز کله ثابت خېږي — د هر چا عمل څرګند په خپل ګفتار شي
نر چې صبح دی روښانه لا ر سهي کړه — ناګهان به دې دا صبح شب تار شي (۲)
لږ یې مه ګڼه که هر څو ګناه لس وي — چې لږ لږ و بله جمع کړې بسیار شي
که بل بد کاندي ته ښه ورسره وکړه (۳) — هر یو نخل چې میوه لري سنګسار شي
تل وښو و ته آزار د بدو رسي — هر چینې و نرم چوب و ته د وخار شي (۴)
هغه زړه به له طوفانه په امان وي — چې کښتی غوندې د خلکو بار بردار شي

۳۱۹ — خدای دې بد له لاسه مه کړه او که وي هم
د رحمان دي له کل بدو استغفار شي — ۳۳۱۲

هر وګړی چې منصور غوندې په دار شي — دار یې پس له مرګه نخل میوه دار شي
روښ صورت که روغ عالم له کماله دی (۵) — لېونی له کماله دی چې سنګسار شي
هر ګیاه چې و کمال ته ور سېږي — سر و ځمکې و ته کوږ وي نګونسار شي
نړی باد به یې په خپل منزل داخل کا — که څوک پا نه د خزان غوندې طیار شي (۶)

---

(۱) قلمي نسخې: "سر کوزی کړه چې پټی دې مرغزار شی".
(۲) دا بیت په "ق، ک" چاپ او "خ" په دوهمه نسخه کې نشته.
(۳) قلمي نسخې: "که بل بد کاندي ته ښه کړه مه رنځېږه".
(٤) "ب" چاپ او "ب ا پ" چاپ کې "چوب ته ور دوخار شی" راغلی دی.
(۵) د "خ" په دوهمه نسخه کې "په کار دي" راغلی دی.
(٦) "ق" چاپ او "ق، ک" چاپ کې "ګدار" راغلی دی.

غفلت هیڅ مناسب نه دی په سپین ږیرو ... صبحدم که خندا ور دی هم بېداره شي

چي یو موتی ایرې ناز په آیینه کا ... په دغه خبره فخر د خاکسار شي (۱)

کریمانو سود موندلی دی په زیان کي ... لکه شاخ د ونې و ترا شي باردار شي

خزانه په سخاوت سره زیاتېږي ... د کوهي اوبه چي وکاږې بسیار شي

مزول د ونې ګېډې مشکل نه دی ... مزول د ونې یو سترګو مشکل کار شي

کم خوراک سړی نژدې کا فرښتو ته ... هر سړی چي بسیار خوار شي بسیار خوار شي

صاف دلانو لره لږ نصیحت بس دی ... د ګوهر و پېوستون په نري تار شي

غلبه د عشق بانه د حسن غواړي ... توره شپه په عاشق زلفې د خپل یار شي (۲)

د توفیق له مخه هر مشکل آسان دی (۳) ... وستي وته د اور لمبې ګلزار شي

ناز د حسن پرورش مومي له عشقه (٤) ... هسې نه چي د خوبانو په سینګار شي

راحت بې محنته نه دی چا موندلی (۵) ... د وصال خوبي د هجر په مقدار شي

عاشقانو لره واړه سعادت دی ... که یې سر و مال د یار تر نامه (۶) زار شي

یاره! یاره! هر څوک وایي په جهان کي ... زه به پس له مرګه وایم چي یار یار شي (۷)

لکه دار کاندي دعوی له ګرګانو ... هسې رنګ له جدایۍ نه زما دار شي

۳۱۰

د رحمان دا پوچ ګوګېڅه په کار نه ده
عاشقي په ګفتار نه شي په کردار شي

۳۳۳۱

تبسم مې د ګړۍ په روزګار شي ... چي بې نه له خدایه وېره نه بې دار شي (۸)

---

(۱) دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کی نشته.
(۲) دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کی نشته.
(۳) دا بیت د "خ" په لومړی نسخه کی نشته او د "خ" په نیګړي نسخه کی د "توفیق" پر ځای "توکل" راغلی دی.
(٤) چاپي دیوانونه او د "خ" دوهمه نسخه: "ناز د عشق پرورش مومي له عشقه".
(۵) چاپي دیوانونه: "بې محنته چا راحت موندلی نه دی" او دا بیت او ورپسې دوه بیته د "خ" په لومړی نسخه کی نشته.
(۶) په "ق، ک" چاپ کی "ځانه" راغلی دی.
(۷) دا بیت د "خ" په لومړی نسخه کی نشته.
(۸) چاپي دیوانونه او د "خ" لومړی او دوهمه نسخه: "چي له مرګه یې نه وېره نه یې دار شي".

لەدە وژبړي ددە د وراندي ومري　　لايې مينە ددنيا پەکار وبار شي

کەيې هرقدم دمريو پە سرلار وي　　يوقدم هسې وانخلي چې پەلار شي

دڅوند يو نصيحت پرې اثر نەکا　　مګر مړ لەقبرە پاڅي پەګفتار شي

دامید مزي يې هسې رنګ دراز وي　　چې لەخضرە ورتە خپل عمر بسيار شي

سپينە ږيرە پەاوږني کې زوي راواخلي　　چې بەمالرە سپاهي اومنصبدار شي[1]

دخرما زړي نهال کا ورتەګوري　　چې داسيوري دامېوه بەمي پەکار شي

هرهرفصل چې ترې ربي هوسېږي[2]　　چې بەګاندەراتە بل فصل تيار شي

لايې ليپەتخم هم کړلې نە وي[3]　　ناکِشتەيې څنې طمع دخروار شي

غم وندی دناز وکړيو خسيو غمي　　چې سبا بېګاە بەمالرە ګوهار شي

لکەورکې کموړی غواړی لە زانې　　پەداهسې پوچ ګويې يې اعتبار شي

چې هرګز پەعمر نەوي چېري شوي　　دهغوناشد نيوامید وار شي[4]

هلکانو غوندې پاس پەکوتەځغلي　　خوچې دوە قدمە واخلي نو حصار شي

پەزحمت دتن لەمالګې هم پرهېز کا　　هغەندکاچې لەنهې پرهېزګار شي

دڅوندون پەتېربدە يې نظر نەوي　　چې داګنج بەمې لەلاسەتار پەتار شي

ناصح خەدي خەبەپند والې وچاتە
هدايت دهربندە پەکردګار شي[5]

۳۱۱　　۳۳۴۷

چې شهيد دتورو سترګو پەخنجر شي[6]　　خوشنودي يې دسرو شونډو پەکوثر شي

چې رايادې سپين رخسار دراز مژګان کړم[7]　　هغەدم مې زړە سپند سينەمجمر شي

---

(۱) دابيت د "خ" پەلومړي نسخەکې نشتە.
(۲) قلمي نسخە: "هرهرفصل چې تېرېږي هوسېږي".
(۳) "ق" چاپ: "لايې پانەترېيندهم نەوي رابېلې".
(٤) داڅلور بيتونەپەچاپي ديوانونو کې نشتە.
(۵) د "خ" لومړي اودوهم نسخە: "هدايت دهربندە پەخپل کردار شي". (۶) داغزل د "ب" پەلومړي نسخەکې نشتە.
(۷) "ق" چاپ: "چې رايادې لوړ مژګان اوسپين رخسار کړم". "ق، ک" چاپ: "چې رايادې توري سترګې سپين رخسار کړم".

عندلیب خاطر مې السوزي په ګلو — که د ترکو سنبل زلفې یې ښه پر شي

که یار سل ځله جفا راسره کاندي — زما ګله په جفا د یار باور شي

د ناصح په نصیحت به منع نه شم — که هزار ځله مې ورور[1] او برادر شي

د رقیب او زما صلح سره نشته — که موچړې لاس و دست و بله بر شي[2]

صبوري او قراري له ما خطا دي[3] — تر هغه ساعته پورې چې محشر شي

تر ساعت به د هېچا په لاس کېنوزي — مګر تللی آشنا بیا په آشنا ور شي

۳۱۲ — ۳۳۵۶

خوبرویان به د سپو مې ټوکره وا واخلي[4]
که رحمان ګچکول په لاس کې قلندر شي

چې غبار د ستا له لارې په خوا ور شي[5] — که په دوار و سترګو روندو ی بصر شي

تازه نوی سر پیدا کا لکه شمع — چې یې غوڅ د ستا په مینه د زړه سر شي

چې کیمیا د قناعت یې په لاس کېوزي — که ګدای وي د قارون په څېر توانګر شي

ستا د در ګدایان واړه پادشاهان دي — خو چې ستا له دره ووزي در په در شي

تل یې مخ وي له عالمه جار وتلي — دهغو چې ستا په مخ باندې نظر شي

که د درست جهان له حاله خبردار وي — چې تا ووینی له واړو بې خبر شي

۳۱۳ — ۳۳۶۳

آیینه که د جمال کړي ور څرګنده
دا ګدای د رحمان به شاه سکندر شي

که دې غم د درست جهان تر زړه چاپېر شي — د ګیر مرشد هسې وایه چې به تېر شي

---

(۱) د "خ" دویمه نسخه : " یار ".

(۲) "ق، ک" چاپ : " که موچړې لاس په یو بل سره بر شي ".
"ق" چاپ : " که موچړې لاس و بله سره بر شي ".
د "خ" لومړی نسخه : " که دم لاس و دست چې و بله برابر شي ". دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته.

(۳) د "خ" لومړی نسخه : " له صبوری له قراري زما توبه ده ".

(۴) د "خ" لومړی نسخه : " خوبرویان به د سپو مې ټوکره ور واخلي — که رحمان ګچکول په لاس قلندر ور شي ".

(۵) په "ق" چاپ او "ق، ک" چاپ کې " په چا ور شي " راغلی دی.

غم هغه دی هم چې خېرمه وي وچا ته [1] — ورومبی واره تر وروستیه پورې هېر شي

بې له خدایه چې مدام په یوه حال دی — سرې کله شېر شاهي شي کله سېر شي

یو آدم دی چې په څو رنګه جلوه کا — یو رقم دی کله زوړ شي کله زېږ شي [2]

د دنیا چارې مدام په قرار نه وي — د بنو په ځنبول کې په بل پېر شي

په لږ غم کې د بر غم له کومه راغی [3] — خوله خپلې بې صبرۍ په سرې دېر شي

خریدار و فروشنده چې سره خوښ شي [4] — په سودا کې سختي نه کا تېر و بېر شي

۳۱۴ — ۳۳۷۱

بنا یسته په جهان ډېر دي بې حسابه
بارې څوک به د رحمان دیار په څېر شي

له دې کته له یوزیه خوبه ولاړ شي — تر و بیا خدای خبر چې کومه خوا به لاړ شي [5]

په ظاهر صورت خو هسې [6] معلومېږي — چې به خسن غونډې تر پښو لاندې لتاړ شي

دا آسمان څمکه به وي او ته به نه یې — په وداند ودانه کې به ویجاړ شي

د بهار د ګلو عمر مدام نه وي — عندلیب غونډې به پاتې په اهار [7] شي

په ویلاړ ویلاړ به ځان وړ پسې ورک کړې [8] — چېرې نه وي چې د ترکو په ویلاړ شي

۳۱۵ — ۳۳۷۷

که لیلی غوارې ځمانه بایده دا دي [9]
چې مجنون غونډې ساکن د کوه وکاړ شي [10]

---

(۱) د "خ" لومړی نسخه: "غم هغه دی هر چې خېرمه وي وځان ته".

(۲) د "خ" دوهمه قلمی نسخه: "یو قمس دی کله زوړ شی کله ز بر شي".

(۳) د "خ" لومړی نسخه او مصوره نسخه: "په لس غم کے د بر غم له کومه راغی".

(٤) قلمي نسخې: "خریدار و فروشنده و بله راضي شي".

(۵) د "ب" نسخې او د "خ" دوهمه نسخه: "له دې کته له یوزي خوبه لاړ شي — تر و بیا خدای زده چې په کومه خوا ته لاړ شي". مصوره نسخه او د "خ" لومړی نسخه: "تر و بیا خدای خبر چې کومې خوا ته لاړ شي".

(٦) په "ق ، ک" چاپ او "ق" چاپ کې "داسې" راغلی دی.

(٧) "ق ، ک" چاپ: "په سوبهار شي"

(٨) د "خ" لومړی نسخه او "ق ، ک" چاپ او "ق" چاپ: "په ولاړ ولاړ به ځان ور پسې ورک کړې". د "خ" دوهمه نسخه: "په ژړا ژړا به ځان ور پسې ورک کړې" او لو موړی بیت په مصوره نسخه کی نشته.

(۹) چاپي دیوانونه: "که لیلی غوارې بایده دی دا رحمانه" او لو موړی بیت په مصوره نسخه کی نشته.

(۱۰) د "خ" لومړی نسخه: "کوهسار"

کړ دزړه مېړه وسړوي خوچې مړ شي — نه يې نوم په خوله اخيست شي نه نوم ړ شي (1)

کړه هيڅ پکرې نه وي په جهان کې — و اجل ته کله خر په خته پړ شي

راشه راشه دا د برنا او کبر مه کړه — يار خو به دې دانا ز په جهان ورشي

دا رخسار چې دې روښان تر آيينې دی — عاقبت به د لحد په خاورو خړ شي

مراد خوواره دلبري دي غزاوشوه (2) — کړ د سر وي په خبر شوك په قامت لوړ شي

نيکنامي له نيك خويه نه پيدا کېږي — د غه چاره نه په سوك نه په لوړ شي (3)

عاشقان چې پښيمانېږي هغه نه کا — هغه سوك د بې هنر وي چې خپر شي (4)

دهوا په نغوته مه ځه کړ دانا يې (5) — دهوا (6) ويشتلي غشي نه په زور شي

دا خوزه له شفقته تا ته وايم — گنه ځان له سرنوشته په چا ژغر شي

ودان به نه کاندي يو حرف خپلې بخرې — کړ پيدا و شکو د چا درست جهان چقم شي

په تدبير به د تقدير کښلي نو نه کړي — د قسمت علاج په عقل کله کم شي

په رحمان بې ياره صبر هسې گران دی (7)

٣١٧ — ٣٣٨٩

لکه هر چې ديده دانسته زغم شي

هغه دم چې زړه ملال شي — يو ساعت ورباندې کال شي

حيران تللى وي په فکر — فراموش يې قيل و قال شي

نه يې گفت نه يې شنود وي — په غوږ گوڼه په ژبه لال شي

نه خواب وچاته کاندي — نه يې غوږ د چا په سوال شي (8)

---

(1) چاپي ديوانونه: "کړ د سر و ندرو سړي دي خوچې مړ شي — نه يې نوم په خوله شوك اخلي نه نوم ړ شي".

(2) قلمي نسخې: "مراد محمد له دلبرۍ دی غزا وشوه".

(3) دا بيت په "ق" چاپ او "ق، ک" چاپ کې نشته.

(4) قلمي نسخې: "عاقلان چې پښيمانېږي هغه نه کا — هغه سکوی د بې هنرو وي چې سپړ شي".

(5) "خ" لومړۍ نسخه، "دهوا په فريب فهم کمه که دانا يې".

(6) په قلمي نسخو کې "هوا يې" راغلي دی.

(7) چاپي ديوانونه: "په رحمان باندې بې ياره صبر گران دی".

(8) ق چاپ او "ق، ک" چاپ، "قال شي".

علم عقل څني لاړ شي — درست صورت يې خواب وخيال شي[۱]

په ژمو ستړګو ويده وي — لکه نقش د ديوال شي

قوت يې وينې د ځګر وي[۲] — هم د غه يې اشتغال شي

د چشما تو له باراته[۳] — په رخسار يې پشکال شي

په سبب د عاشقۍ — تېر[٤] تر آل وتر عيال شي

هم تر آل وتر عياله — تېر ترمال وترمنال شي[٥]

په خپل درد وپه خپل غم کې — له[٦] عالمه فارغبال شي

که ژوندي وي په جهان کې — د مړده ؤ په مثال شي

نه طاقت نه يې مجال وي — بې طاقت وبې مجال شي

په خشکۍ کې ماهي ګوره — هسې بې تېغه حلال شي[۷]

پاخبري نه شي له ځايه — په زړه غوڅ په تن کمال شي

د ويشتليو په خبر يون کا — د کل خلقو په دنبال شي

لکه خس د لويې لارې — تر قدم لاندې پايمال شي

خداى له غمه سري ژغوره[۸] — بيا لا ګوره چې[۹] خوشحال شي

---

(۱) دا بيت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته. په چاپي ديوانونو او نورو قلمي نسخو کې د لومړي مسري د "لاړ شي" پر ځاى "پاڅي" راغلى دى.

(۲) د "ب" لومړي نسخه : "خوري".

(۳) د "خ" دوهمه او مصوره نسخه : "له باره شه".

(٤) د "خ" دوهمه نسخه : "هم تر آل وتر عيال شي".

(٥) مصوره نسخه : "هم تر آل تر عيال تېر شي هم ترمال وترمنال شي".
د "خ" لومړي نسخه : "هم تر آل تر اولاده هم ترمال وترمنال شي".
په چاپي ديوانونو کې يې دوهمه مسرى داسې ده : "هم ترمال وترمنال شي".

(٦) "ب" چاپ، "پ" چاپ او "ق" چاپ : "تر عالمه"

(۷) د "خ" لومړي نسخه : "هم بې تېغه حلال شي"
د "خ" دوهمه نسخه : "د ماهي په خشکۍ کې ګوره هسې بې تېغه حلال شي".

(۸) "ق" چاپ : "ژغورې".

(۹) چاپي ديوانونه او نورې قلمي نسخې : "بو مېنه".

چې دزړه وينې شي و چې | نوې وينې په محال شي[١]
د باغبان سترګې کا سپينې[٢] | چې تازه نخل و نهال شي
روئېدن[٣] د کښت آسان دی | پرورش يې لوی[٤] جنجال شي
ويراني په يوه دم شي | آبادي په ډېر اشکال شي
چې پلار ومري بيا لا بويه | چې يې زوی باکمال شي[٥]
څوک خبر دی له دې دوره | چې په ما به پښتن خوشحال شي[٦]
چې په حال کې يې حال نه وي | خه امید په استقبال شي[٧]
ديوه ساعت له مخه | خدای ئې زده څه رنګه احوال شي[٨]
د دنيا چارې فاني دي | رفت آمد يې په يرغال شي[٩]
په مثال لکه د سيورې | خوا وشا ده د بوال شي[١٠]
اعتماد په او ربو مه کړه | چې استاد يې په غربال شي[١١]

---

(١) چاپي ديوانونه: "چې دزړه ولې شي غوښې لوړ ژوندون يې په اشکال شي"
د "خ" دوهمه نسخه: "دزړه ولې يې شي غوښې دوا کول يې په محال شي".
مصوره نسخه: "لوړ يې ولې په محال شي".
(٢) د "خ" دوهمه نسخه: "د باغبان که سترګی سپينې".
(٣) د "ب" لومړی نسخه: "ډروئېدن".
د "خ" دوهمه نسخه: "داروون".
(٤) چاپي ديوانونه: "ډېر جنجال شي".
(٥) قلمي نسخې: "چې يې زوی په کمال شي"
د "خ" دوهمه نسخه: "چې فرزند يې په کمال شي".
(٦) "ق ، ک" چاپ: "څوک خبر دی له خپل درده چې به پښتن راته خوشحال شي".
قلمي نسخې: "چې زمان لره خوشحال شي".
(٧) مصوره نسخه: "بې طاقته بې مجال شي".
د "خ" دوهمه نسخه، لومړی مسره: "چې به حال کې يې تر وينې".
(٨) "ب" چاپ او "ب پ" چاپ: "خدای زده څه رنګ به احوال شي".
مصوره نسخه: "ګوره څرنګه احوال شي".
(٩) د "خ" دوهمه نسخه: "رفت آمد يې په غربال شي".
مصوره نسخه: "رفت آمد په ډېر غال شي".
(١١) د "ب" لومړی نسخه: "ده د جال شي". د "خ" لومړی نسخه: "ددې دبوال شي"
مصوره نسخه: "ده د جال شي". مګر دا بيت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته.
(١١) دا بيت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته. (پاتې په ٢٣٧ مخ کې)

د بنو په خنبول کې — شال شړې کا شړې شال شي
که بادشاه د ولايت وي — کندولي په لاس کنگال شي[1]
په ثواب يې غلط مه شه — په يوه ساعت[2] وبال شي
په کمال يې مه نازېږه — په يوه گړۍ زوال شي
دهاتيانو سوداگر وي — بياد گاوخر د لال شي[3]
جوهري وي د گوهر و[4] — خاورې اغزي د کلال شي[5]
کلالي او گل کاري کا — فروشنده د مات سفال شي[6]
په هستۍ کې يې اشراف وي — په نيستۍ کې يې اراذال شي[7]
د ځوانۍ په وخت کې شېر وي — د پيرۍ په وخت شغال شي[8]
چې مشهور په صداقت وي — پوچ گويي واخلي بطال شي
محتسب وي احتساب کا — کوتوالي واخلي کوتوال شي
نيکوکار نېک افعال وي — بدکردار او بد افعال شي[9]
سرنوشت د سړي گوره[10] — يو عيسی وي بل دجال شي
چې نېک بخت وي نيکويي کا — چې بدبخت وي بدسگال شي[11]

---

د (۲۳۶) مخ د پايليک پاتې برخه:

په چاپي ديوانونو کې د "اعتماد" پر ځای "اعتبار" راغلی دی.

د "پ پ" چاپ : "استاده به په عزبال شي"

د پېښور لوړ دوه چاپي ديوانونه : "چې ولاړې په عزبال شي".

د "خ" لومړی نسخه : "چې استادې په سغال شي".

مصوره نسخه : "چې استادې په د پرغال شي".

---

(۱) دا بيت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته.

(۲) د "خ" دوهمه نسخه : "په يوه گړۍ".

(۳) قلمي نسخې : "گاو د لالو خر د لال شي".

(٤) چاپي ديوانونه "جوهري دي جوهر پلوري"

مصوره نسخه : "جوهري دي گوهر پلوري".

(۵) د "خ" لومړی نسخه : "خاورې اغزي د کلال شي".

د "خ" دوهمه نسخه : "فروشنده د مات سغال شي" (پاتې په ۲۳۸ مخ کې)

لاس و پښې د هغو نيسه — چې خوش خوی وخوش خصال شي[1]

په هجران کې نا اميد مه شه — خدای قادر دی که وصال شي[2]

په حرامو کې اميد کړه — ګوندې مخ دې په حلال شي[3]

کافر و باسي له کفره — په يوه ساعت ابدال شي[4]

تور هسې کاندي تر سپينو — په سپين مخ باندې تور خال شي[5]

ارزومند د يوه خره[6] وي — خداوند د ملک و مال شي

چې سيالي يې کړې نه وي — له سيالانو سره سيال شي

چې په عمر مفصل وي — په ساعت کې اتصال شي[7]

ممکنات به منع نه کا[8] — که څوک سل ځله سنبال شي

چې د خدای رضا شي پېښه — رمل پاتې د رمال شي

٣١٧

فال به ښه ګوري — تمام

خپل افعال[9] د سړي فال شي

٣٤٣

---

د (٢٣٧) مخ د پاڼې پاتې برخه:

(٦) دا بيت د "خ" په لومړی نسخه کې نشته. دوهمه نسخه: "خادرې اغزی کلال شی".

(٧) دا بيت د "خ" په لومړی نسخه کې نشته.

(٨) دا بيت د "خ" په لومړی نسخه کې نشته. د "خ" دوهمه نسخه: "د ځوانه په ساعت شېر وی د پيرۍ په وخت شغال شي". د "ب" لومړی نسخه: "په پيرۍ کې شغال شی".

(٩) دا بيت په مصوره نسخه کې نشته او په چاپي ديوانونو کې لومړی مسری داسی ده: "نېکو کار وي نېک عمل کا". دوهمه مسری په "ق" چاپ کې داسې ده: "او بد کاره بد افعال شی".

(١٠) دا بيت په مصوره نسخه کې نشته. په چاپي ديوانونو او نورو قلمي نسخو کې يې لومړی مسری داسې ده: "سرنوشت د سړي خپل دی".

(١١) دا بيت په مصوره نسخه کې نشته د "خ" په لومړی نسخه کې يې دوهمه مسری داسې ده: "چې بد بخت شی بد شکال شی".

---

(١) دا بيت په مصوره نسخه کې نشته. په چاپي ديوانونو او د "خ" په دوهمه نسخه کې دوهمه مسری داسې ده: "چې خوش خويه خوش خصال شی".

(٢) دا بيت د "ب" په لومړی نسخه او مصوره نسخه کې نشته لومړی مسری يې د "خ" په لومړی نسخه کې داسې ده: "په هجران کې نا اميد شی".

(٣) دا بيت په مصوره نسخه کې نشته. د "ب" لومړی نسخه: "په حرامو اميد مه کړه ګنده مخ دې په حلال شی". د "خ" لومړی نسخه: "په حرام کې اميد وار شه" او د "خ" دوهمه نسخه: "په حرام اميد وار مه شه".

(٤) دا بيت او ورپسې بيتونه په مصوره نسخه کې نشته. (٥) قلمي نسخې: "په سپين مخ د پاسه خال شی".

(٦) په چاپي ديوانونو او د "خ" په لومړي او دوهمه نسخه کې "خس" راغلی دی.

(٧) دا بيت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته. د "خ" لومړی نسخه، "ب" چاپ او "ق" چاپ کې لومړی مسری داسې ده: "په ډېر عمر منفصل وی". د پېښور په لوړو دوو چاپي ديوانونو کې داسې ده: "په ډېر عمر معضل وی". (٨) د "ب" لومړی نسخه: "ممکنان به منع نه کا". د "خ" دوهمه نسخه: "ممکنات يې طبع نه که"

(٩) "ق، ک" چاپ: "عمل".

هر چې ستا په زنخدان کې[1] یې منزل شي — لکه خس په تناره کې به جلبل شي

چې شوله نوم دستا د شونډو په خوله واخلي — که یې زهر وي په خوله کې هم عسل شي[2]

په عاشق باندې ګمان د اهسې مه کړه — چې یار زړه ورځنې یوسي تش کوګل شي

زه په هجر کې بې برګ و بې نوا یم[3] — لکه کښت چې او به نه مومي شهل شي

په جهان تر آشنایي خوږه څه نشته — ولې حیف دی چې هجران پکې حنظل شي[4]

په خپل حسن باندې مه نازېږه ګله — د غره رنګ به دې په دوو ورځو بدل شي[5]

۳۱۸

زه رحمان بې یاره هسې شول و شل یم[6]
لکه کب چې بې محیطه شول و شل شي[7]

۳۴۵۰

که سل ځله هم کنار وهم بغل شي — د دنیا مین به واړه سره ببل شي[8]

دا چې اوس په یوه کور کې سره ناست وي — عاقبت به یې جدا جدا منزل شي

دا ګلونه چې یې ځای دی په دستار کې — همه واړه به تر پښو لاندې غوبل شي

دا پیغلې چې یې مخ د ملسر په خبر دی — تور وېښته به یې په مخ باندې ځنګل شي[9]

دا شیرین شربت چې د وصال د یې — د هجران په وخت به[10] زهر هلاهل شي

ما د یار په بېلتانه کې ذی لېدلی — که دانا د زماني وي مبدل شي

---

(۱) د "خ" د همه نسخه : "زنخدان باندې منزل شي"

(۲) د "خ" لومړۍ او د همه نسخه : "که یې زهر وي په خوله کې یې عسل شي"

(۳) چاپي دیوانونه : "په هجران کې زه بې برګ و بې نوا یم".
د "خ" لومړۍ نسخه : "زه په هجر کې د ترکو بې نوا یم".

(٤) د "ب" لومړۍ نسخه : "په جهان کې تر آشنایۍ خوږه نشته — ولې حیف چې په هجران کې یې حنظل شي".
د "خ" د همه نسخه : "په جهان د آشنا یانو خوږه نسته — ولې حیف چې یې هجران د زړه صیقل شي"

(۵) دا بیت د "خ" له دوهمې قلمي نسخې نه نقل شو په لوړو قلمي نسخو او چاپي دیوانو کې نشته. او نو موړی بیت د "خ" په لومړۍ نسخه کې نشته

(۶) د "ب" چاپ : "شم".

(۷) د "پ" لومړۍ نسخه : "لکه کب چې بې محیطه شل وشل شي".
د "خ" لومړۍ قلمي نسخه : لکه کب چې بې محیطه شل وشول شي".
د "خ" د همه نسخه : لکه کب چې په محیط کې شول وشل شي".

(۸) چاپي دیوانونه : "د دنیا په مینه واړه سره ببل شي.

(۹) دا بیت د "خ" په نسخه کې نشته.

(۱۰) د "ب" په لومړۍ او د "خ" په لومړۍ نسخه کې "کې" راغلی دی.

پښه له وړي د وصال په حمله نه دي — چې خبر د جدائي په دلبدل شي (۱)

د دې حسې رنځ علاج به څوک په څه کا — چې نه فهم د چارسي نه اټکل شي

که د غرونو په سر ګرزي سر يې تيت وي — هر چې زړه يې د خوبانو يرغمل شي

۳۱۹ — ۳٤٦٠

د رحمان خاطر غمونو حسې زنګ کړ
مګر جام د ميو ناب وي چې صيقل شي

که د زړه په وينو رنګ د چاګو ګل شي — چې بلبل تون په ځان شته دي خو به بل شي (۲)

که د اوښکو په درياب (۳) باندې نهال کړي — نيشکر به نيشکر شي نل به نل شي

مشقت د سړي واړه ابتر دی (٤) — په سپوره کې چې د ګل بوټي نهال شي

د دنيا ياري دوستي څه په کار نه ده — له اوله يار و دوست وي پسې غل شي

که هر څو يې ويله هم و محبت وي — نهايت سره په جنګ و په جدل شي

په مثال د دل و غړني مس غلې — آب و تاب يې په دوه ورځې کې بدل شي

که يې زړه د ځوانۍ په وخت سبب وي — هغه سبب يې په پيرۍ کې بيا حنظل شي

د رقيب له بده خويه به څه وايم — تر و دا ګوره چې لا ياں ورسره مل شي (٥)

۳۲۰ — ۳٤٦۱

زه رحمان په ښه و بد دياں پوهېږم
کښتي زهر په دهن د چا عسل شي

هغه زړه چې خدای روښان کا جام جم (٦) شي — په دا جام کې ور ښکاره تمام عالم شي

په آدم کې د حيوان خوی نه هم شته (۷) — بيا هاله ږي آدم بوله چې آدم شي

---

(۱) "ق" چاپ : "چې خبر د جدائي په تزلزل شي".

(۲) چاپي ديوانونه، د "خ" لومړی، ناقصه او مصوره نسخه : "چې بلبلتون په ځان ګرزي خو به بل شي".

(۳) د "خ" په دوهمه نسخه کې "جويبار" راغلی دی.

(٤) په چاپي ديوانونو او د "خ" په ننګرهاري نسخه کې "ابتر کا" راغلی دی.

(٥) دا بيت د "خ" په لومړی ننګرهاري او مصوره نسخه کې نشته.

(٦) د "خ" لومړی نسخه : "جام د جم دی".

(۷) د "ب" نسخې : "په آدم کې د حيوان خوی مند شته دی".
/ د "خ" په دوهمه نسخه کې د "حيوان" پر ځای "چار پای" راغلی دی.

چې خولیو نه دچاړ پایو پکې نه وي(1) — سري هوښ په سري هاله مسلم شي(2)

چې اغوستي یې لباس وي دپاکانو — د ناپاکو چارې کا ندي خوبه ګرم شي

که هر څو لذیذ طعام وي مزه نه کا — چې یوه ذره نمک یې زیات وکم شي

ښادي هرچیرې د غم په اندازه وي — دهغو به څه ښادي وي چې بې غم شي

هر چې خپله رضا پاسلي(3) وقضا ته — که هر څو په ځان ناخوښ وي خوښ خرم شي

عاشقي چې ترکماله ور سپرې — د خپل یار له لاسه زخم(4) یې مرهم شي

که په ځان باندې قدم کیږدې رانه تاج
نه فلکه به دې لاندې ترقدم شي(5)

٣٢١ — ٣٤٧٨

چې مجنون غوندې یو مو تې استخوان شي — په قوت دعاشقۍ به پهلوان شي

عاشقانو په شکست کې برې بیاموند(6) — دلته توان دهغه سي چې ناتوان شي

زیړي رنګ دعاشق هسې مرتبه ده(7) — چې آفتاب غوندې څرګند په درست جهان شي

له چشمانو یې باران د رحمت وورېږي — زړ غونه یې په څېره باندې زعفران شي

له رخساره حال د زړه ونو معلومیږي — له بهاره ښه وبد د کال عیان شي

له نکتې نه تمام علم حاصلیږي(8) — درست خروار له یوه مشت نمایان شي

په کار نه دي مخالف هزار تقریره — موافق له حاله نیم(9) کلام داستان شي

لکه مېړه کاروبار وي وتلي — دهغو ځا ورې په سر چې غافلان شي

---

(1) د "خ" دوهم نسخه : "چې خصلت دچاړ پایانو پکې نه وي".

(2) د پېښور چاپي دیوانونه "سر پیتوب په سري هاله مسلم شي". او د "خ" په لومړي نسخه کې "له سري" راغلی دی.

(3) "پ" چاپ او "پ پ" چاپ : "پاسلوی". "ق، ک" چاپ او "ق" چاپ : "وسپاري".

(4) د "خ" دوهم نسخه : "پرې مرهم شي".

(5) "ب پ" چاپ : "آسمانونه به دې لاندې ترقدم شي".

(6) دا بیت د "خ" په دوهم نسخه کې نشته، د "خ" په لومړي نسخه کې لومړی مسری داسې ده : "عاشقانو په خپل نسبت کې برې بیاموند".
د "خ" نیمګړې نسخه : "عاشقانو په خپل شکست برې بیا موند" او د "پ" په لومړي نسخه کې داسې ده : "عاشقانو په خپل شکست کې برې بیاموند".

(7) د "پ" په لومړي، د "خ" په لومړي او دوهم نسخه کې "مراتب دی" راغلی دی.

(8) د "ب" لومړي نسخه : "له یوې نکتې تمام علم حاصلیږي".
د "خ" قلمي نسخه : "له یوې نکتې حاصلیږي تمام علم".

(9) د "خ" په نیمګړې نسخه کې "یو کلام" راغلی دی.

کړې دې عمر په کار د غفلت مړه — په اوده باندې سل کاله یون ماشي

د غفلت بنیاد دا وښکو په موج خړېږي — یو څڅو بکی خوب آلود لره طوفان شي

ړوند په خپله عصا پرېوځي وکوهي ته(1) — خپل دلیل د کم دلیل د ځان تاوان شي

سرکښي د عاجزانو په کار نه ده — هر مېږی چې وزرو کاندي پښېمان شي

موم دلان به یې له شره لمن ژغوري(2) — سنګدلان که عین لعل د بدخشان شي

چې کیمیا د قناعت یې په لاس کښېوځي — د شړي(3) په خرقه کې بادشاهان شي

بل پوشاک یې په کار نه وي لې لمده — هغه زړه چې آیینې غوندې روښان شي

عاشقي ده تر جمله بلاو زیاته(4) — و مجنون ته دیو و دد واړه حېران شي

پس یې به وړکا دُرتان د خپلو غوږو(5)

که یې تېر تر غوږ وشعر د حمید شي

٣٢٢

٣٤٩٥

آشنایي به د بلا ده آشنا مه شي — جدایي به دې فنا کا فنا مه شي(6)

د غم(7) به دې د زړه ولې کاغوڅي — ګرفتار په درد و غم د جانانا مه(8) شي

په زېړ رنګ به دې تل سرې اوښکې بهېږي(9) — د دو رنګو په شېر ګل د رعنا مه شي

---

(1) د "ب" لومړۍ نسخه: "ړوند په خپله عصا پرېوځي په کوهي کې".
د "خ" لومړۍ نسخه: "ړوند په خپله عصا پرېوت وکوهي ته".
د "خ" دوهمه نسخه او نیمګړې نسخه: "ړوند په خپله عصا پرېوږ شي پچنګکه".

(2) دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته او د "ب" په لومړۍ نسخه کې د "شره" پر ځای "شرم" راغلی دی.

(3) د "خ" په لومړۍ نسخه کې "دشړابو" راغلی دی.

(4) دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته. په لوړو قلمي نسخو کې د "زیاته" پر ځای "پېغوړته" راغلی دی.
د "خ" په لومړۍ نسخه کې یې دوهمه مسره داسې ده: "ومجنون ته دیو و دد ځکه حېران شي".

(5) د "ب" لومړۍ نسخه: "پرې به وړ کا تبان درد خپلو غوږو".
په "پ" پاپ چاپ کې: "کاتبان به وړ کا دُرد خپلو غوږو".
د "خ" دوهمه نسخه: "ښایسته په درد خپلو غوږو وړ که".
"ق" چاپ او "ق، ک" چاپ: "هر دیان به وړ که در د خپلو غوږو".

(6) دا غزل د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته. د لومړۍ مسرې "بده بلا" په چاپي دیوانونو او لوړو قلمي نسخو کې "توره بلا" راغلې ده.

(7) چاپي دیوانونه: "درد و غم".

(8) "ق، ک" چاپ او "ق" چاپ: "آشنا مه شي" او د "ب" لومړۍ نسخه او د "خ" لومړۍ نسخه "جانان مه شي".

(9) د "خ" لومړۍ نسخه: "په زېړ رنګ به دې تل اوښکې بهېږي".

هم[1] په دا چې د روغږن د خدای دښمن دی — وهچا ته د روغږن په وینا مه شي

کا اعلی مرتبه غواړې عاشقي ده — نور همه واړه ادنی دي ادنا مه شي[2]

٣٢٣ — ٣٥٠١

همیشه به سرنګون په فکر ناست یې

د رحمان په خبر مشغول په ثنا مه شي[3]

دعاشق بې خپله یاره قرار نه شي — بې طبیبه قرار ې د بیمار نه شي

چې په لوح محفوظ کښې لیکلي لیوني وي — په تعلیم د معلم به هوښیار نه شي[4]

دخپل پلار په غېږ کې پروت وي روح یې وتلي[5] — دقضا علاج په مور او په پلار نه شي

دهغو چې خدای کمال حسن روزي کړ[6] — هیڅ نقصان یې د منکر په انکار نه شي

درد و غم د عاشقي چې د بر مشکل دی[7] — هیڅ سړی دې په دا رنځ ګرفتار نه شي

زه همه عمر دغه له خدایه غواړم — چې دې یار د یار له لاسه ازار نه شي[8]

یار له یاره جفا کا هسې د بېره — چې هیڅ فرق یې د اغیار او د یار نه شي[9]

٣٢٤ — ٣٥٠٩

کړه خوبي دلبري او دلجويي کا[10]

د رحمان په ترکو هیڅ اعتبار نه شي

---

(١) د "پ" چاپ : "غم په دا".

(٢) دا بیت په مصوره نسخه کې نشته.

(٣) چاپي دیوانونه : "د رحمان هسې مشغول په ثنا مه شي".

(٤) دا بیت په مصوره نسخه کې نشته. لومړی مسری یې د "خ" په لومړي نسخه کې داسې ده : "چې په لوح د محفوظ سبکلی لیوني دي".

(٥) چاپي دیوانونه : "زوی د پلار په غېږ کې پروت دي روح یې لاړ شي".

(٦) قلمي نسخې : "دهغو چې خدای کمال د حسن ورکا".

(٧) قلمي نسخې : "درد و غم د عاشقۍ د بر مشکل دی".

(٨) چاپي دیوانونه : "زه همه عمر له خدایه دغه خواست کړم — چې دې یار له خپله یاره بېزار نه شي".
د "خ" لومړی نسخه : "زه همه عمر دغه شان له خدایه غواړم — چې یو یار د یار له لاسه ازار نه شي".
د "خ" دویمه نسخه : "زه همه عمر له خدایه دغه خواست کړم — چې یو یار د یار له لاسه ازار نه شي".
مصوره نسخه : "زه همه عمر دغه خواست له خدایه غواړم — چې دې یار د یار له لاسه ازار نه شي".

(٩) دا بیت په "پ" چاپ، "ق، ک" چاپ او "ق" چاپ کې نشته او د "خ" په لومړي نسخه کې دا بیت داسې دی : "یار له ماسره جفا که هسې د بېره — چې هیڅ فرق مې د اغیار و د یار نه شي".

(١٠) د "خ" لومړی نسخه : "کړه مې هر څو دلبري او دلجويي کا"

د سکوت په تیغ چې ژبه بریده شي — لا قلم غوندې په قال کې دو یده شي
هو مره اور د عاشقۍ په زړه کې یو سي — چې لاله یې له تربته دمیده شي
همېشه یې د خپل یار په لوري درومي — نهایت چې په داد وکړې رسیده شي
خم ابرو د یار مې نقش په لیمه دی(1) — لکه میاشت چې په لوی بحر کې لیده شي
څه حاجت دی چې زه یار وچانه ستایم — کار همه د خپلو سترګو په دیده شي
کله وي چې یو د بل په ویل غولیږي — مګر صافه د چا خپله عقیده شي
خود څرګند وي لکه صبح په جهان کې — هر ګریوان چې په یارۍ کې دریده شي
آب روي د عاشق هلته ځان څرګند کا — چې یې نم د زړه له سترګو چکیده شي
د آه غشي یې په ځمکه کله لګي — هر قامت چې لکمان طوره خمیده شي
بې مطلوبه یې هیڅ فهم په چا نه وي — هر طالب چې په طلب کې فهمیده شي(2)
هر چې زړه په هر ویانو باندې بایلي — بې درمه یې دیناره خریده شي
مادیان په څه بل څه لیدلی نه دی — مګر پس چې له نن ورځ آفریده شي(3)

یا به شهد یا به قند یا به نبات وي — هر کلام چې له رحمانه شنیده شي

٣٢٥ — ٣٥٢٢

چې سړی له بله بد وایي بدګوی شي — لا تر بله خوله روان دده بدبوی شي(4)
مرده شوی چې هوس کا د بل و مرګ ته — بل هم پس دده له مرګه مرده شوی شي
دوست دښمن د سړي واړه خپل عمل دی — هم په دا مقدار یې اجر موی په موی شي
هره ونه چې کږه په یوه لوري وي(5) — عاقبت یې پرېوته په هغه سوې شي

---

(۱) د "خ" د همه نسخه: "خم ابرو یې د یار نقش وي په زړه کې".
د "خ" لوړی نسخې او د "ب" لومړی نسخه: "خم ابرو یې د یار نقش وي په لیمه کې".
(۲) دا بیت د "خ" په لومړی نسخه کی نشته.
(۳) قلمي نسخې: "مګر پس له نن ورځې آفریده شي".
(٤) قلمي نسخې: "لا تر بل خوا روان دده بد بوی شي".
(٥) د "ب" لومړی نسخه: "هره ونه چې کږه وي په هغه لوري".
د "خ" لومړی نسخه: "هره ونه چې کږه په هغه لور وي" او دا بیت د "خ" په لومړی نسخه کی نشته.

په لوتي کې نور څه نشته بې زواله — هلکان د هلکتوب په سبب لوی شي [1]

دا و بوا اصل له خاورو پیدا کېږي — خاکساري د خاکسارانو آبروي شي

هومره زیان له خوګ و خرس نه رسېږي [2] — لکه څوک په آدمیانو کې بدخوی شي

سړي هو بن چې د سړي له تنه پاڅي — د سړیو په جامو کې خربشوی شي

٣٣٦ — ٣٥٣١

وهغو ته چې خدای بخښلي وښود
څه حاجت یې د لسان په ګفتګوی شي

وخت د عیش و طرب تېر شو خزان راغي — ځنګه د بلبلانو په ځان راغي

دلدارۍ مې ترامید وه بارې څه کړم — هغه یار د دلبرانو په شان راغي

آشنایي مې په هوس وه خو چې بېل شوم — د واړه لاس مې و بله مېشوا ارمان راغي

سود سودا د عاشقۍ که نفع مند وي — ما هېڅ سود پکې ونه لید تاوان راغي

تمام عمر که وصال و هومره نه ؤ — لکه یو زمان د ښکلیو هجران راغي

ګوی زما د زړه یې یوړه په چوګان کې — بیا د ناز په نیلي سور په جولان راغي [3]

غونچه لب چې په خندا کاندي پرېشانه — په شبېو زما د اوښکو باران راغي

٣٣٧ — ٣٥٣٩

د میرزا دارزاني دعوی به پرې کا [4]
قدردان د شاعرانو لسان راغي

په اول کې تا د عشق وهلې لافې — هغه لافې دې اوس ولې کړې خلافې [5]

اوس خیل سر ورته محکم نیولی اوسه — چې د غم مصي دې ځان ته کړې مصافې

سپین چلتار په یوه تمکي بد نما شي — دا رذالو چارې مه کړه که اشرافې

---

(١) په "پ" او "پپ" چاپ کې "پوی شي" راغلي دي.
(٢) د "خ" لومړۍ نسخه: "له ستمه یې په هر لوري غوغا وي"
(٣) دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته.
(٤) د "خ" دوهمه نسخه: "د میرزا د شاعرۍ قدر به کم کا".
(٥) دا غزل د "خ" له دوهمې نسخې نه نقل شو.

بې تميز خو معرفت کولای نه شي — ته کړه او کوټ معلوم کړه که صرافې

ځان دې ولې بې حيا کړې بې حجابه — چې پټ کړې دې دمينې په غلافې

که داهسې لوټې غوارې لوټې دا دَه — که په اصل کې منصور غوندې نداڼي

د دوران له فساده نه امان غواړه — که په عقل د خپل فکر موې شګافې

د تقصير سبب يې کوم دې را معلوم کړه — مين وژنې بې له جرمه نا انصافې

۳۳۸

کوم صفت به زه حميده داستا بيان کړم
په کامل صفت موصوف په کل اوصافې

۳۵۴۸

يا داستا چشم وابرو وينم په خواب کې — يا مستان دي اوده شوي په محراب کې[1]

يا په جام کې استا دمخ عکس ليده شي — يا خوتنده تجلي کړه په حباب کې

يا ترخط لاندې غوټه ستا دخولې ده — يا کوکب دې غرق شوي په شهاب کې

يا دې زلفې په مخ دواړه راخورې کړې — يا سنبل دې ګجک شو داود په تاب کې

يا دې زلفو په مخ توره تاريکي کړه — يا خوتنده ځان څرګند کړ په آفتاب کې

يا داستا پېزوان زما په ځګر بنخ دې — يا سيخونه دې پيلې په کباب کې

يا خو ستا په غم کې غرق زما صورت دی — يا خسونه دي جاړه وزي په ګرداب کې

۳۳۹

چې ديار کاتدې ووزي بيا له سترګو
د حميد به څه عزت وي په حباب کې

۳۵۵۶

ستا دمينې ګوهر نشته په هر آب کې — مګر بيا موند شي داوښکو په درياب کې[2]

که ته وينې زما پټې خښنې دلبره — رنګ دلبو دې ګواهي لي په داباب کې

پسې ځاي چې ستا دلبو نام آغاز شي — د لاله او باران ووري په حباب کې[3]

---

(۱) دا غزل يوازې او يوازې د "خ" په دوهم قلمي نسخه کې راغلی دی.
(۲) دا غزل د "خ" په لومړي او مصوره نسخه کې نشته.
(۳) دا بيت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته.

له خسته زړونو به څه دلستاني کا — د خراج ګنجایش نشته په خراب کې

زه حیران دستا د وروځو په تور خال یم — کافر څه شکل سجده کا په محراب کې (۱)

ګل له ډېرې باریکۍ په شبنم خوړ شي — نازک زړه ونه بد وي په صاف خواب کې

د بهار په ګلو اوري باران نه — د څوبکي طاقت نشته په حباب کې

د کاتب غلطي وبښه ای خدایه

دا وتروچاري نه وي په حساب کې

۳٤۰ — ۳٥٦٤

زه مې بایلو ستا په مهر محبت کې — عاشقي دې زهر راکړه په شربت کې (۲)

لار زما و یار ته مه تړه ناصحه — ما موندلې ده دا یار په ډېر محنت کې (۳)

که صورت د هغې مستې در ښکاره شي — عقل هوښ به دې هیڅ نه وي په صورت کې

که د عشق ترکس لګي غاښ به بایللې (٤) — ته چې ما ته غاښ چیچې په نصیحت کې

زه توبه په هغه تېر عمر وکاږم — چې صرف شوی دی بې یاره په غفلت کې

د آشنا د مینې پت به را مات نه شي (٥) — که مې سر له تنې درومي په داپت کې

له ادبه یې وږخ ته کتی نه شم — خدای را پېښه جدایي کړه په وصلت کې

په قیامت که څوک له نیته پوښتیده شي — زه د یار د کوڅې خاوري یم په نیت کې

لکه زه چې یې د در په خاورو خوښ یم (٦) — خوښ به نه وي سلطانان په سلطنت کې

د درګاه په خاک نشینو یې تل سخ وي (۷) — د غمونو دخل نه وي په جنت کې

---

(۱) د "خ" دویمه نسخه : " کافر څه شکله سجده نه کا په محراب کې".
(۲) ددې غزل پا نه په مصوره نسخه کې څیرې شوې ده .
(۳) دا بیت په " ب " چاپ کې نشته.
(٤) چاپي دیوانونه : " که د عشق ترکس پر پوزې سر به بایللې".
د "خ" لومړۍ او دویمه نسخه : " که د عشق ترکس پر پوزې غاښ به بایللې".
(٥) چاپي دیوانونه : " پت به مې مات نه شي "
(٦) دا بیت په "پ ب" چاپ کې نشته په نورو چاپي دیوانونو کې یې لومړۍ مسره داسې ده : " لکه زه چې ستا د در په خاورو خوښ یم".
(۷) دا بیت د "خ" په لومړۍ نسخه کې نشته په چاپي دیوانونو کې د " تل سخ وي" پر ځای " سختي نه وي " راغلي دي.

۳۴۱ — ۳۵۷۵

د دنیا له دولتونو بې پروا یم (۱)
زه رحمان د عاشقۍ په ښه دولت کې (۲)

مغرور مه اوسه د عشق په کاروبار کې (۳) — هر خس هلته تېره تېغ وي په دا لار کې
دا سور ګل به دې دستار په وینو سور کا — چې دې ایښی زما لې دی په دستار کې
مخ د ترکو چې تر آب حیات صاف دی — زه دې آب حیات سوی یم په نار کې
چې او سپینې آیینه پرې اوبه کېږي — تر وزما هستي یې خړه په دیدار کې (۴)
په هر وار چې یې وسترګو ته نظر کړم — لاس مې وللي دی له ځانه په هر وار کې
یاره ته چې له ما صبر و قرار غواړې — عاشق کله وي په صبر و په قرار کې
که مې سر و مال دستا په مینه درومي — زه تر سر و تر مال تېر یم په دا کار کې
هېڅ صرفه مه کړه د زلفو آزار اخله — که د چا سود د دنيي شي په آزار کې (۵)
عشق د عقل په کوخه استوګنه کا — چا موندلی نه دی یار په دا دیار کې (۶)
ستا له دره له درباره به وانه وړم — څو نه مرم ستا په در و په دربار کې (۷)
کم بختان دیار په وصل کې مهجور دي — د وچ ګلي بهره نه وي په بهار کې
مفلسانو لره عین کوهستان دی — که هم عمر یې کوردی په بازار کې
وهغو چې خدای حق بینې سترګې ورکړې — د یوسف تجلي وینې په دیوار کې (۸)

---

(۱) د "خ" په دوهمه نسخه کې "فراغت یم" راغلی دی.
(۲) قلمي نسخې: "زه رحمان د عاشقۍ په دولت کې".
د پېښور چاپي دیوانونه: "زه رحمان د عاشقۍ په دا دولت کې".
(۳) د "ب" په نسخه کې "کاروزار" راغلی دی.
(۴) "پ" چاپ او "ب ب" چاپ: "چې دا وسپینو دانه پرې اوبه کېږي — تر وزما د هستۍ خړ دی په دیدار کې".
"ق ک" چاپ او "ق" چاپ: "چې دا وسپینې دانې پرې اوبه کېږي — تاب زما د هستۍ خړه دې په دیدار کې"
د "خ" دوهمه قلمي نسخه: "چې دا وسپینې آهین پرې اوبه کېږي".
(۵) دا بیت په چاپي دیوانونو کې نشته.
(۶) دا بیت په چاپي دیوانونو او د "خ" په لومړۍ نسخه کې نشته.
(۷) چاپي دیوانونه: "ستا له دره له دیاره به وانه وړم — څو وینه مرم ستا په در و په دیار کې"
(۸) دا بیت په چاپي دیوانونو او د "خ" په لومړۍ نسخه او مصوره نسخه کې نشته.

وعیب جن ته واړه عیب ښرګندیږي[1] — ښایسته که ځان یوسف کا په سینګار کې

چې هنر د عاشقۍ یې خدای نصیب کړ[2] — بې هنره نور ښه ندي په یار کې

٣٤٢

دا داغونه د خپل زړه ورله بس دي[3]
څه حاجت دی د رحمان په لاله زار کې

٣٥٩١

مدام ناست یم وچ ګوګل سترګې په نم کې — عشق را وښو نخروبن په خپل حرم کې

ما چې ستا د تورې زخم په خوله[4] ښکل کړ — نور مې دالذت بیا نه مونده په مرهم کې

خوار مجنون چې سر په پښو د لیلی کېښود[5] — سرفراز شو په عرب و په عجم کې

زړونه مدام غالب وي په کمزوري — زه له نوره غمه خلاص یم ستا په غم کې

لکه زه چې ستا په غم کې مستغرق یم — بل به نه وي په جمله بني آدم کې

لکه مړی د شړوند لوتر میان پروت وي — هسې پروت یم له عالمه په عالم کې

هیڅ صحت[6] مې د دمګړو په دم نه شي — هم په دا چې زما دم دی ستا په دم کې

نه مې بې تا تګ وي نه جستجو شته — مراد مې ته دې په هر دم په هر قدم کې[7]

که نصیب مې شي کوغالی ستا د سپیو — و به نه کړم نور نظر په جام د جم کې

زړه مې هسې ستا په زلفو پسې ورک شو — لکه غوټه د چا پرېوځي په تورتم کې

سره یې وینو د سرو ګلو په دود زانګي — هزار زړونه ستا د زلفو په هر خم کې

٣٤٣

زه رحمان ګناه خوښ یم له عالمه
باري ستا سترګو رسوا کړم په عالم کې[8]

٣٦٠٣

---

(1) چاپي ديوانونه : "دعیب جو ته واړه عیب ښرګندیږي".
د "خ" لومړی نسخه : "عیب حق واړه عیب ښرګندېږي".
(2) "ق، ک" چاپ او "ق" چاپ : "که هنر د عاشقۍ یې رب نصیب کړي".
(3) قلمي نسخې : "خپل داغونه د خپل زړه ورله بس کا".
(4) د "ب" په لومړی نسخه کې "زړه" راغلی دی.
(5) د "خ" دوهمه نسخه : "چې مجنون سر خپل په پښو د لیلی کېښود" په چاپي ديوانونو کې د "خوار" پر ځای "خود" راغلی دی.
(6) د "خ" په دوهمه نسخه کې د "صحت" پر ځای "دمه" راغلی دی.
(7) دا بیت د "خ" په لومړی نسخه کې نشته.
(8) د "خ" لومړی نسخه او مصوره نسخه : "باري ستا کتو رسوا کړم په عالم کې".

هسې نې یاره خفه یم په جهان کې(۱)
چې مې ځای نه شي په ځمکه په آسمان کې

سره ګلونه د چمن راته سور اور شي(۲)
چې قدم بې یاره کېږدم په بوستان کې

چې یې مړ نه یم له ډېرې بې ننیا نه یې(۳)
حیرانېږم د ناتوان صورت په توان کې

که هر څو فکر له ځانه سره وکړم
هیڅ د صبر طاقت نه وینم په ځان کې

هیڅ ساتنه د سړکېنس خاطر رانه شي
څوک ساتلی شي بخری په ګریوان کې

تر هغه به نادان بل په جهان نه وي
چې څوک مهر و وفا غواړي په نادان کې

که یې سل ځله په زلو(۴) و قربان بولم
غوږ رانه باسي په زاړ و په قربان کې

هسې رنګ زما په ډېره ژړا خاندي
لکه ګل د سپرلي خاندي په باران کې

جوهري شي د رو لعل کاندي بر سره
چې مې کېښني د دو وښترګو په دکان کې(۵)

چې مې هیڅ چېرې به په خوا په خاطر نه وي
زمانه یې را اخر ګنده کا په زمان(۶) کې

۳۴۴

چې په وصل کې بې اوښکې نه وچېږي
تر و به حال د ماښام خړ وي(۷) په هجران کې

۳۹۱۴

د بلبل له حاله زده کړه په خزان کې
بیا د ګلو تماشا کړه په بوستان کې

خوږې تبره تلخالي تر ستوني نه شي
شیرینې به خوند د رنه کا په دهان کې(۸)

ما په هجر کې لذت د وصال بیا موند
له یوسفه ملاقي شوم په زندان کې

لکه متن له معنی، معنی له متنه
یار هم هسې دی زما په دل و جان کې

عاشقي اسانه مه ګڼه خبر شه
سر بازي ده هر نفس په د امیدان کې

---

(۱) "ب" چاپ او "پ پ" چاپ: "هسې نې له یاره زه یم په جهان کې".
(۲) د "ب" په لومړی نسخه اود "خ" په لومړی نسخه کی "دی" راغلی دی.
(۳) د "خ" په دوهمه نسخه کې "نې رحمه" راغلی دی.
(٤) د "خ" په لومړی نسخه کی "نانه" راغلی دی.
(۵) دا بیت په مصوره نسخه کی نشته.
(۶) په "ق" چاپ او "ق، ک" چاپ کی "یوآن" راغلی دی.
(۷) د "ب" په لومړی نسخه اود "خ" په دوهمه نسخه کی "خړ شی" راغلی دی اودا بیت په مصوره نسخه کی نشته.
(۸) مصوره نسخه: "شیرینې به دې خوند نه کا په دهان کې"

د ناتوان له ناتوانۍ نه وویرېږه — که هر ځله توانا یې په خپل ځان کې(1)

هم هغه به پس له مرګه ازار ویني — هر چې بل ازاروي په دا جهان کې

په ماخ باندې یې یاره هسې حال دی

۳۴۵ — ۳۶۲۲

لکه حال د زندانیانو په زندان کې

ژړه مې د وب دوب کړې ستا د غم په غلبو کې — هسې لکه څوک چې مستغرق شي په اوبو کې(2)

ستا د عشق له مو په هیڅ لوري وتی نه شم — دوباره لاس مې پرېوات د عشق(3) په لامبو کې

سل توبې مې ماتې کړې وانه وښتم له عشقه — ساه و یساه مې نوره پاتې نه شوه په توبو کې

تر چې له ما تښتې دادا وښکو باران ګوره — رنځ د سفر هیڅ نه دی په دا ګهو شپیبو کې

نر یوه سپوږمۍ نه په اسمان کې هزار ستوري — بې تا به څوک څه کاندې د خلق په چنبو کې(4)

عشق و عقل دواړه سره ضد دي که پوهېږې — کله کړي آرام داوږه نخري په لمبو کې(5)

هر څوک چې د عشق په آتش ځان سېزي کنه(6)

۳۴۶ — ۳۶۲۹

خدای دې ابراهیم غوندې څوک نه کا په لمبو کې

هسې خوښ یم ستا در په خاکسارۍ کې — لکه خوښ وي سرداران په سردارۍ کې(7)

عاشقي که نوره خلقو ته خوارۍ ده(8) — ما موندلې دی دولت په دا خوارۍ کې(9)

و بیمار ته که ناخوښ والې وګړي — خوښ یم زه د ستا د عشق په بیمارۍ کې(10)

---

(1) د "خ" په لومړي او دوهمه نسخه کې "په خپل توان کې" راغلی دی.

(2) دا غزل د "خ" په لومړي نسخه او مصوره نسخه کې نشته د "خ" په دوهمه نسخه کې یې لومړی بیت داسې دی: "ژړه مې د وب دوب کړې په غمو کې هسې لکه څوک چې مستغرق شي په اوبو کې".
د "ب" لومړي نسخه: "ژړه مې د وب دوب کړې ستا د غم په غلغلو کې هسې رنګ لکه چې څوک مستغرق شي په اوبو کې".
د "ق، ک" چاپ: "ژړه زما دوبیږي ستا د غم په غلبو کې هسې لکه څوک چې شي غرقا به په اوبو کې".

(3) په قلمي نسخه کې "عقل" راغلی دی.

(4) قلمي نسخې: "نه یوه سپوږمۍ نه هزار ستوري له آسمانه بې تا نه به څوک څه وکا د خلق په کیڅو کې".

(5) دا بیت د "پ" په لومړي نسخه او د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته. په "پ" چاپ، "ق" چاپ او "ق ک" چاپ کې د "لمبو" پر ځای "پنبو" راغلی.

(6) قلمي نسخې: "هر څوک چې د عشق په اتش سوی دی رحمان نه".

(7) دا غزل د "پ" چاپي دیوان کې نشته.

(8) د "خ" دوهمه نسخه: "عاشقي که لوی د عالم وته خواري ده".

(9) چاپي دیوانونه: "ما موندلی دا دولت دی په خوارۍ کې".

(10) دا بیت د "پ" په لومړي نسخه کې نشته. دوهمه مسره د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې ده: "خوښ یم زه د عشق په درد په بیمارۍ کې".
"ق ک" چاپ: "خوښ یم زه دیار د عشق په بیمارۍ کې".

دخپل بام وروزنیو وته نظر کړه — هسې ستر‌ګې دي زما په بېدارۍ کې[1]

یار دیار له ستر‌ګو او ښکې پاکیزه کا — تا دریاب[2] کړې زما او ښکې په یارۍ کې

مال دېرې ناچارۍ وپار ته شا کړه — سرې[3] عذر دی په ډېره ناچارۍ کې

غم به هیڅ یو هوښیار خوښ کړي نه وي — ما خوښ کړی دی ستا غم په هوښیارۍ کې

۳۴۷ — ۳۶۳۷

د رحمان اوښکې به څرنګ په قرار وي
چا لېدلی دی دریاب په قرارۍ کې

سپین مخ نه تورکوډې شي په پیرۍ کې — سم قد ونه کوږ لړګی شي په پیرۍ کې[4]

لکه شمع د سحر آفتاب د ژمي — هم لې تاب وهم زېړي شي په پیرۍ کې

یو طرفته لې سر ږږدي بل خوا درومي[5] — خپل صورت تمام پردی شي په پیرۍ کې

د مرده ؤ په حساب وي غزا وشوه — که څرګند لیده ژوندی شي په پیرۍ کې

مړ لا ښه دی پس له مرګه بیا ژوندی شي — نشته دا چې څوک ځلمی شي په پیرۍ کې

که څه وخوري لکه زهر نه هضمېږي[6] — نه څه ښني نه څه خوړی شي په پیرۍ کې

دا خوالې ده چې څه اوري یا څه ویني — نه لیده نه اورېدی شي په پیرۍ کې

۳۴۸ — ۳۶۴۵

اې رحمان پیري هسې عاجزي ده
که رستم وي زده پرې سوی شي په پیرۍ کې[7]

یو ځل ولېدلې دیار پرېشانې زلفې — په عارض بانده حلقه پېچانې زلفې[8]

که تورتم لري ظاهر سیاهي د زلفو — حقیقت لري سفېدي روښانې زلفې

---

(۱) دا بیت د "خ" په دوهم نسخه کې نشته په چاپي دیوانو او نورو قلمي نسخو کې یې لومړی مسری داسې ده: "دخپل بام وندوانو وته نظر کړه".
(۲) په چاپي دیوانو کې "جاري کړې" راغلي دي.
(۳) د "خ" په لومړي نسخه کې "خمره" راغلي دي.
(۴) چاپي دیوانو: "ښایسته مخ دې تورکوډې شي په پیرۍ کې — سم قامت وي کوږ لړګی شي په پیرۍ کې".
(۵) قلمي نسخې: "که پل یوسر ږدي بل خواته درومي".
(۶) دا بیت د "خ" په دوهم نسخه کې نشته د "پ" په لومړي نسخه کې "ارزېږي"، د "خ" په لومړي نسخه کې "ورزېږي"، په مصوره نسخه کې: "پې تېرېږي" او د "خ" په بېنګړي نسخه کې "وته جوړېږي" راغلي دي.
(۷) په قلمي نسخو کې "زره سوی شي" راغلي دي. (۸) - دا غزل د "خ" له دوهمې قلمي نسخې نه نقل شو.

دا قدرت الهي دی راشه گوره | د دانا گردن طوق نادانې زلفې
هم په خپلې خپل ځان په زړه حیران یم | په اوبو دیان پرتې حیرانې زلفې
په شمیم د خوشبویې یې زه خوشبو شوم | خدای دې نه کا په خپل داد پښېمانې زلفې
په کوم لوري بد زه سر تر پښه وکاږم | و گردن ته مې پرتې رېسمانې زلفې
څه ژاړم له دوو ستر گو اوښکې وینې | چې رحمن وینې دیار خندانې زلفې

٣٤٩ — ٣٦٥٢

چې وصال د خپل جانان مې دی موندلی | گنج د دُر و د مرجان مې دی موندلی (١)
هو مره طمع مې له خپله بخته نه وه | نه پوهیږم چې څه شان مې دی موندلی (٢)
که په ډېر مشقت لاس له خدای راست (٣) | زه خو وایم چې آسان مې دی موندلی
چې مې یو نفس وصال ورسره وشو (٤) | وار ه اجر د هجران مې دی موندلی
څه عجب (٥) دی که تمام جهان زما شي | چې بادشاه د درست جهان مې دی موندلی
زه رحمن په خپل شعر شکر گزار یم (٦) | چې دا هسې رنگ دیوان مې دی موندلی (٧)

٣٥٠ — ٣٦٥٨

ما چې ستر گې وگرځولې ته وار ولې | په هغو ستر گو مې وینې وژړلې (٨)
د عمل جزا یې بیا موندله برحقه (٩) | دا دستور دی چې کړې هغه اخلې
تر څمن ولې یو په سله زره قاتل دی | تل چرې تورې په کاڼي تېرولې

---

(١) مصوره نسخه: "وار ه اجر د هجران مې دی موندلی".
(٢) دا بیت په مصوره نسخه کې نشته
"ق" چاپ او "ق، ک" چاپ: "نه پوهیږم په څه شان مې دی موندلی".
(٣) د "خ" دوهمه نسخه: "که په ډېر مشقت لاس له راغی".
(٤) د "خ" دوهمه نسخه: "ورسره وشي".
(٥) "ق، ک" چاپ: "څه تعجب دی".
(٦) د "خ" دوهمه نسخه: "زه رحمان په خپل شعر مدام خوښ یم".
(٧) "ق" چاپ: "چې دا هسې رنگ داستان مې دی موندلی".
(٨) دا غزل د "خ" په لومړۍ نسخه او مصوره نسخه کې نشته.
(٩) "ق" چاپ او "ق، ک" چاپ: "د عمل جزا مې بیا موندله برحقه".

خو د کړده به څښتاوان له چا نه غواړې
چې یې غوڅې په خپل تېغ کړې سپینې څپلې

ما دا مرګ د استا په مینه کې هاله لید
چې ګدای د بادشاهۍ لاڅپې وهلې

له خوبانو به څوک څرنګ وفا[1] غواړي
سروې کله کشمشې مېوې نیولې

په درباب یې سندا سي شه ورته ګینه
تار په تار د سر وېښته ایرې مښلې[2]

که دفتر د خپل قسمت د چا په لاس وي
بدې بخرې به چا کله قبولې

چې ښکلي یې وډکوله و ښکا نو
دې بدانو څه بدي نه وه غوښتلې[3]

څوک له خاوره وایي وپاڅوي تخت و کړي
څوک له تخته دایي و په ډېران ولې

ستا چې نیت د آشنایۍ نه و صنمه
د رحمان سترګې دې ولې نه ګڼلې

## (۳۵۱) دا زل په ورځ د بخره وجوړې وه (۳۶۷۰)
## ابې رنځ چا بایلودې چا ګټلې

بدلوې په دنیا دین وایمان ولې؟
نه پوهېږې په خپل سودا و په زیان ولې؟

همېشه په ځای د شکر شکایت کړې
منکرېږې په عطا د سبحان ولې؟

د ښولې خدای دې چارې توان دی
په د بېر توان کې خپسر بولې ناتوان ولې؟

مدام اوښکې توېوې د رزق له غمه
در ګوهر په بها پلورې ارزان ولې؟

چې په هر بېګاه سامان د هر سبا کړې
کور و کړ شوې د محشر په سامان ولې؟

هېڅ ګیاه له ځایه نه خوځي نمو مي
ته د رزق په طلب منډې جهان ولې؟

چې بې خواته قضا خپله رضا غواړي
بېهوده په لوټو ولې آسمان ولې؟

په ژوندو مره چې د مرګ له غمه خلاص شي
اسان کار دې کم په ځان باندې ګران ولې؟

غیرې مینې دې په زړه باندې انبار کړې
په کعبه کې ننه باسې بتان ولې؟

---

(۱) په "ق" چاپ کې د "وفا" پر ځای "مېوه" غلطي دی.
(۲) دا بیت او درېیم څلور نور بیتونه په قلمي نسخو کې نشته.
(۳) "ق" چاپ او "ق، ک" چاپ " دې بدانو څه بدي نه وې غوښتلې ".

نه ئې لا د نفس په پېروي د رنځه لا رشو — د خبيث په لاس دې ورکړ قرآن ولې؟

ځکه يوسف د حبشي په بها مومي — د مطلوب په بها(۱) نه سپنندې ځان ولې؟

**۳۵۲ — ۳۶۸۲**

بد په بد و پښېماني کاندي کړې نه

ته په خپلو بدو نه شوې(۲) پښېمان ولې؟

په نور څه(۳) پسې نې ځايه زاړې ولې؟ — د چار ياي په څېر نې ځايه ناړې ولې؟

چې روڼ ته مېده کوې په شخوند خوږ نې — تر وخېرې کوې لواړې ولې؟

نه دا خپل کلام مېده په دا خپل شخوند کړه — تا دا ړلو ته تېرې کړې دا ړې ولې؟

هغه کار چې دې په نرم ويل کېږي — بېهوده په بېړه ولې لاړې(۴) ولې؟

نېك له نېکو بد له بدو مناسب دي — نېك و بد و بله پر بله نغاړې ولې؟

يو قدم د خدای په لور اېښود نه شې — تمامي عمر په پراته لاړې ولې؟

تل دې طوق د تعلق په غاړه کېښوست(۵) — وکښې نه شې د غم طوق له غاړې ولې؟

**۳۵۳ — ۳۶۹۰**

چې په ورځ د شېخۍ لافې کړې تا نه

په شپه مې له مېښو شرغواړې ولې؟

تر چې خپله بې عقلي هوښيارې(۶) بولې — کاشکې(۷) بيا مومې د غوښتو په نرخ شولې

عشق يو داد دی په عاشق باندې(۸) له خدايه — هسې نه دی چې لې پېرې يا لې پلورې

زليخا غونډې به بله شيدا نه وي — که د مصر مستورې شي واړه تولې(۹)

---

(۱) د "پ" په لومړی نسخه او د "خ" په دوهمه نسخه کې "طلب" راغلی دی.

(۲) د "پ" په لومړی نسخه او د "خ" په دوهمه نسخه کې "يې" راغلی دی.

(۳) په قلمي نسخو کې "لوزچا" راغلی دی.

(۴) دا او ورپسې بيت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته د "خ" په لومړی او د "پ" په لومړی نسخه کې "لونې لاړې ولې" راغلی دی.

(۵) د "خ" په دوهمه نسخه کې "گرزی" راغلی دی.

(۶) "ق، ک" چاپ: "هوښيارتيا".

(۷) د "خ" دوهمه نسخه: "دربعد".

(۸) "ق" چاپ او "ق، ک" چاپ: "رب". دوهم مسری يې په ځينو کتابونو کې داسې ده: "هسې نه چې لې يا پېرې يا لې پلورې".

(۹) "ق، ک" چاپ او "ق" چاپ: "که د مصر مستوراتې شے راتولې".
د "خ" لومړی نسخه: "که د مصر مستورې کړې واړه تولې"
په مصوره نسخه کې د "واړه" پر ځای "ځبله" راغلی دی.

هغه بحر څه په بحر حساب نه دی — چې اوبه يې خاک آلودې وي ختولې (۱)

له هغو سړه به څه فکر د يار وي — چې په غم وي د کاله ياد هولې

عاشقي د خپل نغري په غاړه نه شي — څو په يار پسې وانخلي ځلي ځولې (۲)

د وصال په نعمتونو غړه مه شه — جدايي يې خلقې کړې په زړه زمولې

دُرگوهر په تله نه دی چا تللی
د رحمان شعر گوهر دی څه يې تولې

۳۵۴ — ۳۷۹۸

هسې ډوب يم ستا د غم په درياب تللی — چې ماهي غوندې يې تېغ د لم کوتلی

ما لېدلې چې لېنده دې وه راکښلې — تا د وروځو په لېندو يم زه ويشتلې (۳)

په خپل ځان مې تر هغه پورې نظر و — څو مې ته په نظر نه وې کېوتلې

اوس مې ستا په مينه ځان وجهان هېر شو — د سېلاب په مخ کې لا ړم لکه خلې

عاشقي به يې د باد په مخ بنه کا — که چا ځای وي کوه قاف غوندې نيولی (۴)

چې د عشق له بحره روغ سلامت وځي — زه يې نن گڼم له موره زېږېدلی

هر چې واوړي په بلا د تورو زلفو — هغه بيا تر گوره (۵) نه دی وړغلی

چې له غره نه پرېوتلی وي بيا پاڅي — پاڅېدې نه شي له زړونو پرېوتلی

چې د اور لمبو وهلی وي بيا روغ شي — نه رغېږي د آزار (۶) لمبو وهلی

زه رحمان يې هر دم وينم ستا په غم کې
که خپل مرگ په سترگو نه دی چا لیدلی

۳۵۵ — ۳۸۰۸

---

(۱) د "خ" دوهمه نسخه : " يا ختولې ".

(۲) د "پ" لومړۍ نسخه : " ځلي ځولې " "پ پ" چاپ : " ځلي نه ولي " "ق ک" چاپ : " زالې نه ولې ". "ق" چاپ : " زالې نه ولې " د "خ" لومړۍ نسخه : " نه مې ژولې " او د "خ" دوهمه نسخه : " زالې نه ولې ".

(۳) دا بيت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته په "پ" چاپ او د "پ پ" چاپ کې "راکښلې" او په "ق ک" چاپ کې " وښلې " راغلې دی.

(۴) دا بيت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته.

(۵) د "پ پ" چاپ کې " ترموره " راغلی دی.

(۶) په چاپي ديوانونو کې " هجران " راغلی دی.

هر چې کښت یې په باران او په سېلاب وي   دهغو عمر به واړه په عذاب وي [1]

هغه ملک چې پکې سیند او رود [2] ډېر باران وي   دهقانان به یې همه خانه خراب وي

و آسمان ته به یې سترګې وي ختلې [3]   د باران له انتظاره به نې خواب وي

لکه څوک چې کړوي په کړهي کې [4]   دهغه ماهي په طور به کباب وي

لا به کله بارانونه پرې نزول شي   چې نخیل وزراعت به یې سیراب وي [5]

همېشه له خدایه خواست داوبو کاندي   کړې چې چېرې خواست په عمر مستجاب وي [6]

لکه تل چې یې په ژوند داوبو غوښې وي [7]   هومره غوښې یې نه په چنګ نه په رباب وي

که هم عمر باران ورباندې ووري   لا ګرمي یې په صورت کې د آفتاب وي [8]

د ګرمۍ او د خشکۍ له دهشته   د آفتاب په خبر ګومان یې په مهتاب وي [9]

داوبو له د ډېرې ډېرې قیمتې نه   لړګي لوښي یې مردار په منجلاب [10] وي

فرق د پاکو د ناپاکو اوبو نه کا   که اوبه یې ګېږې وي په پېښاب وي

داوبو په وېش چې وشي انصاف نه کا [11]   که پېدا لاس یې ورقونه د کتاب وي

---

(1) دا غزل په مصوره نسخه کې نشته.

(2) "ق، ک" چاپ: "سېلاب". د "خ" په لومړي نسخه کې دا مسرۍ داسې ده: "هغه ملک چې یې په سیند په ندر باران نه وي".

(3) د "خ" دوهمه نسخه: "و آسمان ونه یې ستې ګې وي ختلې".

(4) "ب" چاپ: "لکه څوک چې کړوي یې په کمڅي کې".
"ب" پ چاپ او "ق، ک" چاپ: "لکه څوک چې تلد وي په کمڅه کې".
د "خ" لومړي نسخه: "لکه څوک چې تلدوي په کټوړي کې".
دوهمه مسرۍ یې په دوهمه نسخه کې داسې ده: "د هغو په طور به درست سره کباب وي".
"ق، ک" چاپ کې دا مسرۍ داسې ده: "د هغې ماهي په شان به کباب وي".

(5) د "خ" لومړۍ او دوهمه نسخه: "چې یې نخل وزراعت به یې سېراب وي".

(6) د "خ" لومړۍ نسخه: "کړې کاندې خواست به چېرې مستجاب وي".

(7) د "خ" لومړۍ نسخه: "لکه تل چې یې په غږ داوبو غوښې وي".
"ق، ک" او "ق" چاپ: "لکه تل چې یې په ژوند داوبو غږ وي".

(8) د "خ" دوهمه نسخه: "له ګرمۍ یې په صورت کې هسې تاب وي".

(9) دا بیت د "خ" په لومړي نسخه کې نشته په "ق، ک" چاپ کې داسې دی: "د ګرمۍ او د خشکۍ له ډېر دهشته   په افتاب باندې ګومان یې د مهتاب وي".

(10) قلمي نسخه: "لړګي لوښي یې مردار د منجلاب وي".
د "خ" دوهمه نسخه: "لوښي کوډي یې واړه منجلاب وي".
د "ب" لومړي نسخه: "لوښي لړګي یې مردار د منجلاب وي".

(11) د "ب" لومړي نسخه: "انصاف پرې نه وي".

دا وبو په غلا چې ور شي نه جار وزي — که ساکن د خانقاه او د محراب وي (۱)

دا وبو ثواب يې نه کېږي له لاسه — که په کوټ او به يې عين د حج ثواب وي

د باران اميد يې نه کېږي له خدايه — که يې شپه او ورځ په سر باندې سحاب وي (۲)

پليتي به يې له تنه څه رنګ درومي (۳) — چې او به يې نا پاکې تر ګلاب وي

چې د نوکو اچولو په ځای ور شي — تر تنځر يې ځان بتر کا که عقاب وي (٤)

هيڅ يې مه پوښته له غسله او د سه — چې يو ځاځکې پرې ګوهر غوندې ناياب وي

په سبب د ډېره ډېره تيمم — همېشه يې سپېره ان بيره په تراب وي (٥)

د للمي سرې (٦) په مخ کې وي آب چېرې — هغه خلق چې بې آب وي خوبې آب وي

په آبي کې لا هم وي خونه ويرانه — هغه کلي چې د بل کلي پاياب وي

يو به نسي هيڅ برې له سرې (۷) ورځه — پاياب سرې که زوی د ارباب وي

سم حساب له عزيزانو کله مومي — تل تر تله يې د بل لاندې (۸) حساب وي

نه طاقت د بد ويل لري نه صبر — لکه مار په ملا وهلې پېچ وتاب وي (۹)

نه يې مرګ نه يې فتنه له لاسه کېږي — لاس تړلې د خپل شرم په طناب وي

چې يې زيست روزګار په کار وي تحمل کا (۱۰) — همېشه يې له بديه اجتناب وي

---

(۱) د "خ" دوهمه نسخه : "که يو کوټ او به عين د حج ثواب وي".

(۲) دا بيت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته.

(۳) "ق"، او "ق، ک" چاپ : "دوړ شي".

(٤) دا بيت په چاپي ديوانونو او د "خ" په قلمي نسخو کې نشته.

(٥) دا بيت د "خ" په لومړۍ نسخه کې نشته، لومړی مسری يې په "ق، ک" چاپ کې راغی دی : "په سبب د دې چې ډېر ډېر تيمم کړي".
د "خ" په دوهمه نسخه کې د "سپېره ډېره" پر ځای "سپينه ږيره" راغلې ده.

(٦) دا بيت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته په "ق" او "ق، ک" چاپ کې د "سرې" پر ځای "ځمکې" راغلې ده د "خ" په لومړۍ نسخه کې يې دوهمه مسری داسې ده : "هغه خلک چې د بل کلي پاياب وي".

(۷) دا بيت د "خ" په لومړۍ نسخه کې نشته، دوهم مسری يې په "پ" چاپ کې داسې ده : "د پاياب سړی که زوی هم د ارباب وي".
"ق، ک" چاپ : "پاياب سړی که زوی هم د ارباب وي".

(۸) قلمي نسخې : "تر بل لاندې".

(۹) دا بيت د "خ" په لومړۍ نسخه کې نشته "ق، ک" چاپ کې داسې دی : "نه طاقت يې د کنځلو وي نه صبر لکه مار په ملا وهلې پېچ وتاب وي".
نورې قلمي نسخې : "نه طاقت د بد ويل لري نه صبر لکه مار په ملا وهلې په پېچ وتاب وي".

(۱۰) دا بيت د "خ" په لومړۍ نسخه کې نشته په چاپي ديوانونو او د "خ" په دوهمه نسخه کې يې لومړی مسری داسې دی : "چې يې زيست يا يې روزګار په تحمل شي".

که یوه بده وینا لې تر خولې ووزي | هغه دم لې په خپل ځان باندې عتاب وي (۱)

یو هغه سړی تېری ور باندې کاندي | چې په عمر نه د سوال نه د ځواب وي (۲)

همسایه وي چرېکار د پښتنا نه شي | او په اصل یا موچي وي یا قصاب وي (۳)

ملایم ویل اثر په هغو څه کا (۴) | چې په زړه کې یې نه شرم نه حجاب وي

لکه دیو چې د سړیو په صورت (۵) شي | ته ګومان کړې چې سړي وې دې دواب وي

په هېڅ رنګ له بده خویه نه جار ووزي | هسې مست د جاهلۍ په شراب وي

چې اشراف د هسې خرڅو په لاس کېوزي | نو خلاصي به یې له خونه په کوم باب وي (۶)

هسې رزق دې خدای چا له ورنه کا | که به رزق چا په هسې رنګ اسباب وي (۷)

تر داهسې زمیندارۍ هغه ښه دی | چې نوکر دیوه تور کافر کلاب وي (۸)

نوکري دیوه سپي ورله ښه ده | هغه پرېږده چې لا نوم یې د نواب وي (۹)

٣٥٦ — ٣٧٤٥

د خشکي له څمد قوم د ناځ خوښ دی
که رفتن یې له ځانه په شتاب وي

تل دې ستا د خواب آلود سترګو خواب وي | چې فتنې په خوب او د شي دېر ثواب وي

لکه مې چې په مینا کې تجلي کا | نور د حسن په حجاب کې بې حجاب وي

---

(۱) دابیت د "خ" په لومړۍ نسخه کې نشته دوهمه مسرۍ یې د "پ پ" چاپ کې داسې ده: "هم هغه یې په خپل ځان باندې عتاب وي".

(۲) دابیت د "خ" په لومړۍ نسخه کې نشته لومړۍ مسرۍ یې په نورو نسخو کې داسې ده: "یو هغه سړی تېری ور باندې وکا".

(۳) دابیت د "خ" په لومړۍ نسخه کې نشته، "پ" چاپ: "همسایه یې چرېکار و پښتانه شي او په اصل به موچي یا به قصاب وي".
"پ پ" چاپ: "همسایه او چلیکار یې پښتنا نه شي او په اصل به موچي یا به قصاب وي".
"ق، ک" چاپ او "ق" چاپ: "همسایه یې چرېکار او پښتانه شي او په اصل به موچي یا به قصاب وي".

(۴) چاپي دیوانونه: "ملایم ویل اثر ور باندې نه کا".

(۵) د "خ" دوهمه نسخه کې د "صورت" پر ځای "صفت" راغلی دی.

(۶) "ق، ک" چاپ: "چې اشراف د هسې خرڅو په لاس کېوزي نو خلاصي به یې له خونه په کوم باب وي".
د "پ" لومړۍ نسخه: "چې اشراف د هسې حریصو په میان کېوزي تر و خلاصي به یې له خونه په کوم باب وي".
د "خ" لومړۍ نسخه: "چې شراب دا هسې حرصو مینا ګوري- تر و خلاصي به له هغونه په کوم باب وي".
د "خ" دوهمه نسخه: "چې داهسې اشراف د حرصو په میان کېوزي تر و خلاصي له هغونه یې په کوم باب وي".

(۷) دابیت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته دوهمه مسرۍ یې د "پ پ" چاپ کې داسې ده: "چې د چا رزق په هسې رنګ سیلاب وي".

(۸) دابیت د "خ" په لومړۍ نسخه کې نشته.

(۹) دابیت د "خ" په دواړو نسخو کې نشته.

ته چې ماته لولوې پېتې د صبر | زه هم د پرې په دا راضي يم که مې تاب وي
نه په داسبب په ترکو پسې ژاړم | چې ژړا د عاشقانو د مخ آب وي
که نادان وي هم دا هومره خو پوهېږي | چې څوک نه ژاړي په يار پسې کذاب وي
د عاشق سترګې په داسبب شوې پاکې | چې مدام د جوې په سر لکه حباب وي
له خالي خونې به څه وړي چې څه نه وي | که ختلی د حباب په سر سيلاب وي (۱)
هم په دالې د نغمې اثر پيدا شو | چې په تشه ګېډه صبر د رباب وي
د حريص (۲) له خپله نقده بهره نشته | لکه مار د ګنج د پاسه پېچ وتاب وي
کاملان تعلقات د دنيا نه کا | لکه پاڼې د خزان پښه په رکاب وي
غفلت هېڅ عجايب نه دي په دنيا کې | ساکنان د خرابات واړه خراب وي (۳)

۳۵۷ — ۳۷۵۷

چې ښادي غواړي بېشماره بې حسابه
په رنځ کې به د غمونو څه حساب وي

د هغو چې وېله هر و محبت وي | په هستۍ او په نېستۍ کې فراغت وي
عاشقي ده تر هغه مقام پورته | چې د چا مقام په رنځ يا په راحت وي
څه د اور په لمبو سوي څه په ولوږه | واړه عشق دي که هجران وي که وصلت وي
چې مطلب و مدعا د سړي خداي شي | ناست ولاړ بې چا همه واړه عبادت وي
که په دو قدمه ومري هم حاجي شي | چا چې کړې د مکې په لوري نيت وي
هغه څوک چې پېروي د اولياء کا | دالې واړه په معنی کې ولايت وي
خاوري نه په سړي واړه برابر شي | هغه دم چې له جهانه په رحلت وي
که د زړو په تخت کېني غرا شوه | فهيم و ته کم فهم بې (۴) عزت وي

---

(۱) د "خ" لومړی او دوهمه نسخه کې "په کوه سيلاب وي" راغلی دی.
(۲) په "ق" چاپ او "ق، ک" چاپ کې "د رقيب" راغلی دی.
(۳) چاپي ديوانونه: "ساکنان د دهر کل واړه خراب وي".
(۴) د "خ" په دوهمه نسخه کې "بې فهمه" راغلی دی.

د دانا و نادان ترمیان یو حد دی — هوښیاري تر حد پورته حماقت وي

تجاوز له خپله حده په کار نه دی — د هر چا په خپله خونه کې حرمت وي

نور عالم که د دنیا غمونه کاندي

لا له غمه سره دي غم د آخرت وي

۳۵۸ — ۳۷۶۸

دغې بنا چې نوم محنت آباد وي — تر و خاطر به پکې څرنګ د چا ښاد وي

په خواره او په ښو کله وي نېسي (۱) — هر مرغ چې په قفس کې د صیاد وي

د رنځور په خوله کې کله مزه کاندي — که سل رنګه نعمتونه یې معتاد وي

پای بسته و له هر چېرې زندان دی — هغه هر چېرې آزاد دی چې آزاد وي

عشق تغیر و تبدیل نه لري یکرنګ دی — د آشنا له لاسه داد وي که بیداد وي

د بنا دی نښه هغه وي په جهان کې (۲) — چې په پای پسې یې بېخه یې بنیاد وي

بود یې هغه باله شي په معنی کې (۳) — چې د تن په نابودۍ یې اعتقاد وي

نقصاني وي د دنیا عمارتونه — که تیري لاندي یې سل ستونه د فولاد وي

زندګي که څوک پوهیږي حضور دم دی — آینده و رفته کله د چا یاد وي

د دنیا الکه سیلاب هسې بهیږي — نه یې چا څخه استوګه نه استاد وي

وهغو ته چې خدای خود په خپله وښود — څه حاجت یې په ښوونه د استاد وي (۴)

چې کامله اراده لري په زړه کې — د مرشد له اشارته یې ارشاد وي (۵)

---

(۱) د "خ" لومړی نسخه : "په خواره او به ښه کله غوښه نیسي".
د "خ" دوهمه نسخه : "په خواره په ښه به کله وینه نیسي".

(۲) د "ب" لومړی نسخه : "بیخي وبنیادي هغه دی په پای کې".
د "خ" لومړی نسخه : "بنیادي بیخي هغه دی په دنیا کې".
د "خ" دوهمه نسخه : "د بنیادي بیخ هغه دی په پای کې".

(۳) د "ب" په لومړی نسخه کې "په دنیا کې" راغلی دی.

(٤) دا بیت د "خ" په لومړی نسخه کې نشته، لومړی مسری یې د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې ده: "وهغو ته چې خدای په خپله وښود".

(٥) دا بیت هم د "خ" په لومړی نسخه کې نشته.

**٣٥٩** — **٣٧٨١**

د بې یارانو څخه بیل شو هیڅ کرم نه دی
که رحمان له جدایي نه په فریاد وي

پر دنیا کې که هر څو وبله پیوند وي — پس له مرګه به یې درست صورت بند بند وي
زه به وخورم په دا باب هزار قسمه — که باور دې په قسم او په سوګند وي
یا به ورلاندې تر تا درومي یاد وه ستو — که دې ورور که دې عزیز که دې فرزند وي
زمانه به یې تر پښو لاندې پایمال کا — که په قطع تر آسمانه سربلند وي
هم یې هسې پیمانه ګڼه په خاورو — که دې[1] د که خوله تمام عمر په قند وي
هر چې کاندې آزادي په دا جهان کې — پس له مرګه به همه واره په بند وي
هر چې غاړه یې وحق ته اېښې نه وي — همېشه به یې په غاړه کې کمند وي
دا چې زه وتا ته وایم کړې یې خدای کا — په آیاتو په حدیث کې به څرګند وي
ته چې نه کوې باور په آیتونو — تر و زما ویل به څه درله پند وي
ناپسند به د منکر په انکار نه شي — هر کلام چې دلپذیر او دلپسند وي

**٣٦٠** — **٣٧٩٢**

خدایه ګنج د قناعت و رحمان ورکړې[2]
چې بې ملکه بې حشمته دولتمند وي[3]

که د درستې دنیا غم مې په سر بار وي — واړه سهل دي که یار راسره یار وي
هزار وار به یې دیان تر نامه ذکر کړم — که په قطع مې دا یو صورت هزار وي
هغه نه[4] دی په شمار د عاشقانو — چې د خپل تنه تر داغونه یې په شمار وي
مشکل کار د عاشقي چې خدای پیدا کړ — کله بل په جهان هسې مشکل کار وي[5]

---

(١) په چاپي دیوانونو کې "که یې د که خوله" راغلی دی.
(٢) "ق" چاپ او "ق، ک" چاپ: "خدایه ګنج د قناعت رحمان ته ورکړې".
(٣) قلمي نسخې: "چې بې ملکه بې حشمه دولتمند وي"
(٤) "ب، پ" چاپ کې "هغه کس" راغلی دی.
(٥) "ق، ک" چاپ: "بل به کله په جهان دا هسې کار وي".

ښو تې او ښکې په مخ لاړې روغې نه کا
د هغو معشوقو ته کله لاره وي

ته چې گل زما د یار په شکل (۱) غواړې
کله دا رنگه گلونه په گلزار وي

نه مونده شي په بازار کې نه په ښهر
هغه رخت چې د خوبانو په بازار وي

زه د یار په خبره مخ نه وینم په ستر گو (۲)
که په هره خوا خوبان هزار هزار وي

د عاشق نظر په دېرو په لبن نه وي
که د بدن د یار په لبن که په بسیار وي (۳)

شته هزار هزار خوبان ولې سوگند دی
که زما د یار په څېر به د چا یار وي (۴)

۳۶۱ — ۳۸۰۳

مرگ له هیچا سره وار نه کا رحمانه
یار به ځان تر یار ورومبی کا که په دار وي (۵)

له هغو سره به څه فکر د یار وي
چې یاران یې په هر لوري هزار هزار وي

په آشنا پسې ویښتلی هم هغه وي
چې له نورې آشنایی یې استغفار وي

صبوری او قراری دې په ما نوم شي (۶)
که یې تا بدې یا صبر یا قرار وي

هر ژوندون د یار په وصل ښایسته وي (۷)
بې مینه که ژوندون وي څه په کار وي

په یارۍ کې آزار نشته خدای دې نه کا
که ذره به زما زړه له تا آزار وي (۸)

وهغو ته عاشق نه ویلی بویه
چې یې فکر یا د سر یا د دستار وي (۹)

که د یار له لاسه اوږې په یار بلبلې (۱۰)
هغه اوږې د عاشقانو ته گلزار وي

---

(۱) "ق، ک" چاپ کې "رنگه" ، د "خ" په دوهمه نسخه کې "حسن" ، په "ق" چاپ ، د "پ" په لمړۍ نسخه او د "خ" په لومړۍ نسخه کې "جنس" راغلی دی.
(۲) د "خ" لومړۍ او دوهمه نسخه : "زه د یار په څېر بل نه وینم په ستر گو". او د "پ" په لومړۍ نسخه کې "د بلا څخ" راغلی دی.
(۳) دا بیت په قلمي نسخو کې نشته.
(۴) په قلمي نسخو کې "په بل د یار" او "په هیڅ د یار" راغلی دی.
(۵) "سپ" چاپ او د "پ سپ" چاپ : "که پې دار وي" او "ق، ک" چاپ کې "که پې یار وي" راغلی دی.
(۶) د "پ" په لومړۍ نسخه کې "نوبت" ، د "خ" په لومړۍ نسخه او نیمگړې نسخه او "ق، ک" چاپ کې "نوم" او "ق" چاپ کې "گم" راغلی دی.
(۷) د "خ" لومړۍ نسخه : "لږ ژوندون د یار په وصل کې ښادي ده".
(۸) د "خ" لومړۍ نسخه : "که هزار ځله مې زړه له تا آزار وي".
(۹) دا بیت په قلمي نسخو کې نشته.
(۱۰) د "سپ" چاپ ، د "خ" په دوهمه نسخه او نیمگړې نسخه کې "په ما" او په "ق، ک" چاپ کې "په چا" راغلی دی.

خال يې اور شي چې زنار يې شي په غاړه — ولې نه چې ستا د زلفو زنار دار وي(١)

ستا د زلفو زنار دار که په اور سوځي — دغه اور به هم همه ستا د رخسار وي(٢)

٣٦٢ — ٣٨١٣

هغه څوک به ليلى غوندې رسوا شي
چې رحمان غوندې مجنون يې په ديار وي(٣)

که د ستا د خاطر مينه په اغيار وي — ستا د پاره دې اغيار هم زما يار وي

چې سړې په يوه مخ باندې مين شي — له يوه مخه يې سل مخه په کار وي

هر چې کاندې نوکري د بادشاهانو — خواه نا خواه به د دربانو منت بار وي

زه به ستا له رقيبانو څه ماند کړم — دا دستور دی چې له ګله سره خار وي

خوش خاره يې څښتن نه شي په تهمت کې — کله وي چې د بلبل و ګل ته لار وي

سجاده به د ساقي د لارې فرش کا — هر صوفي چې د سرو سترګو(٤) خريدار وي

په جذبه د عاشقۍ به لېونی شي — که په قطع افلاطون غوندې هوښيار وي

٣٦٣ — ٣٨٢١

په رحمان باندې به هيڅ ملامت نه کا
هر سړي چې ستا له حسنه خبردار وي(٥)

د وصال په هوا والوتې مرغه شوې — د هجران په اور کې درست صورت ايره شوې(٦)

نه وزړکا، له هوس، نه مري له غمه — سړې سخت دې ګنه يو اش پرې وشوې(٧)

زړه که چاودې هم له دې غمه به وچاود(٨) — چې د يار د بېلتانه خوارې په زړه شوې

---

(١) دا بيت او ورپسې بيت د "خ" په لومړي او دوهمه نسخه کې نشته
(٢) چاپي ديوانونه: "دغه اور به هم رښتيا ستا د رخسار وي".
(٣) د "ب" په لومړي نسخه کې "دربار" راغلی دی، او دا مسري د "خ" په دوهمه نسخه کې داسې ده: "چې رحمان غوندې ځوانان يې په ديار وي".
(٤) د "خ" په دوهمه نسخه کې "د سرو شونډو" راغلی دی.
(٥) "ب" چاپ او "پ" چاپ: "هر سړي چې ستا له مخه خبردار وي".
"ق" چاپ او "ق ک" چاپ: "هغه څوک چې ستا له مخه خبردار وي".
(٦) دا غزل د "ب" په لومړي نسخه کې نشته، د "خ" په دوهمه نسخه کې د "صورت" پر ځای "سر" راغلی دی.
(٧) دا بيت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته. لومړی مسری يې په "ق" چاپ کې داسې ده: "نه نه ر کاله. هوس مري له ډېره غمه".
او په "ق ک" چاپ کې داسې ده: "نه ورکېږي په هوس نه مري له غمه".
(٨) د "خ" لومړي نسخه: "که د چا زړه له غمه چاودی له دې وچوي".

د رقیب و ناکردو ته چې نظر کړم — د عاشق له آه ږوند په تور لیمه شي
هیڅ پوره به دې نیمګړې نه شي خدایه — که بېلتون د دوه یارانو وېله نه شي
چې بېلتون د دوه یارانو وېله کاندي — د هغو خلقو له مرګه واوره پۀ شوي[1]
خدای رضا له چا هسې تعویذ وکړي — چې لږ زه د هغه یاں تر غمه ښه شوي
یو ځل یاں په سترګو ولیدې[2] چې دا ئ — د غه پسه هر چې شو لیږ بیا هاله شوي
نوم یې یو ځل زما واخستی په ژبه[3] — نور مې نوم په دا جهان کې پاتې نه شوي
لکه د رست عمر په خوله د رقیب کارکا — د غه هسې یو زمان زما په خوله شي[4]

زه [illegible] په دا خبره[5] حق حیران یم
نه پوهیږم چې دیاں له غمه څه شوي؟

٣٦٤ — ٣٨٣٢

چې په مخ باندې دا و ښکو یو قدم وي — عین د تور ولو په هره سره سم وي
که ګریوان مې د سپوږمۍ د لمر مشرق شي[6] — زه چې یار په سترګو نه وینم تور تم وي
کړ و ورو ځو غونډې نېښ و هلی نه شي — که په زړه د پاسه پروت د چاالم وي
د لته سر پوړته کول د چار سبب یې — چې پخپله د یار زلفې خم د رخم وي
معشوقه چې د عاشق په غم وي غوښه — د عاشق سترګې دې وځي چې بې غم وي
همه مې د دو همه موهسې بو یه — چې د دوار و زندګی په یوه دم وي[7]
که د د رست جهان خوښي ورباندې راشي — مګر خدای چې خوشبختي یا اخوښ خرم وي
بل ستم د بېلتانه د پاسه نشته — که لیدلی چا په سل رنګه ستم وي

(١) دا بیت په "پ" چاپ، "ق" چاپ او "ق، ک" چاپ کې نشته.
(٢) "ق" چاپ او "ق، ک" چاپ: "وو وینم".
(٣) د "خ" لومړۍ او دوهمه نسخه: "خو لږ نوم یې زما واخستی په ژبه".
مصوره نسخه: "خو چې نوم یې زما واخستی په ژبه".
(٤) دا بیت په "پ" چاپ کې نشته.
(٥) د "خ" قلمي نسخې: "دا معامله".
(٦) د "خ" لومړۍ نسخه: "که ګریوان مې د سپوږمۍ له نوره غرق شي".
(٧) چاپي دیوانونه: "چې د دوار و همدمي په یوه دم وي".

دا قضا خه په قاضي موقوفه نه ده — خود بخپله یار تر یاره پوري ګرم وي

راحت هر چیرې په مشغوله لازم وي — چې په درد و په محنت کې مقدم وي

چې خوناب يې د چشمانو مې ناب شي — پیوسته له دغه جامه سره جم وي

هیڅ حاجت د هنر نشته و نصیب[1] ته — که په اصل څوک عرب وي که عجم وي

هنر مه غواړه طالع له خدایه غواړه — بې سلیمانه په کار نه دی که خاتم وي

۳۶۵ — ۳۸۴۶

د رحمان خندا په اجر د ژړا ده
تازګي د ګل په قدر د شبنم وي

همیشه دې زما سر او ستا قدم وي — تر هغه ساعته پورې څو مې دم وي[2]

ستا له لاسه وار و مال را نافع دي — که مې زهر ندې[3] په زخم که مرهم وي

زه بې تا هسې ګومان کړم چې سفال دی[4] — که نسکور مې په لبانو جام د جم وي

نور عالم که د دنیا په ښادۍ ښاد وي — زما زړه دې مدام ښاد د ستا په غم وي[5]

که په زړه باندې مې سل غمونه راشي — د ستا غم دې تر همه و مقدم وي[6]

ما دې خدای د ستا له غمه بې غم نه کا — تر هغه ساعته پورې څو مې دم وي

۳۶۶ — ۳۸۵۳

د رحمان ستا په مخ مین دی خدای خبر دی[7]
که په دا کې به هیڅ پرې زیات و کم وي

---

(۱) په چاپي دیوانونو کې "و رقیب ته" راغلی دی.
(۲) دا غزل په "پ" چاپ، "ق، ک" چاپ، د "پ" په نسخو او د "خ" په لومړۍ نسخه کې نشته.
(۳) د "سپ" چاپ: "که مې زهر وي".
(۴) د "ق" چاپ: "زه به بې هسې رنګ ګومان کړم چې سفال دی".
د رفیع صاحب د شخصي کتابخانې نسخه: "زه په تا پسې ګومان کړم چې بې حال یم".
د "خ" دوهمه نسخه: "زه ګومان کړم چې په تا پسې بدحال یم".
د "خ" مصوره نسخه او دوېمه نسخه: "زه بې تا هسې ګومان کړم چې هیڅ نشته".
(۵) د "خ" دوهمه نسخه: "زما زړه دې مدام خوښ د یار په غم وي".
(۶) د "خ" دوهمه نسخه: "داستا غم مې تر همه و مقدم وي".
(۷) د "ق" چاپ "رحمان ستا په مخ مین دی باور وکا — که په دا کې به هیڅکله زیات و کم وي".
د "خ" مصوره نسخه، د رفیع صاحب شخصي کتابخانې نسخه او د "خ" دریمه نسخه: "رحمان ستا په مخ مین دی که باور وکړې".

ته چې ماته والې چې په چاپاندې شېدا لې | زه په تا شېدا يم وايه ته چې يار د چا لې[1]
زه به تا په کومه زيرکۍ شم پېرولى | چا زده لکه تا زده هومره وايه چې څه والې
زه چې کېږم ور عاشقۍ مې گردن ماتې کړم | ته چې لکه وې هم هغه هسې کبريا لې
ځان که ستا په مينه کې فاني کړم څه بد وکړم | ته چې په دا هسې رنگ له آهه بې پروا لې
مرگ مې په تا ولې خدای اختر کړي ونه پوهېږم[2] | څه دې حاصل هم شته که مطلق په مرگ زما يې[3]
څه شو که زه يم انگشت نما په مينه ستا کې | زيات له ما نه خوش ته د قاضي هم د ملا يې

۳۸۶۰ ستا د عشق تر توري کړي د ځان زار رحمان شه
دا هم سهل کار دى زما يار که په دا يې ۳۶۷

چې پخته شي آشنايي | تر ميان وو زې جدايي
وطالب وته وفا شي | د مطلوب بې وفايي
بادشاهي کاندي بدله | دد بدن په گدايي
ځاني بلوږي په وربشو | ميرزايي په ميرزايي[4]
نظر نه کاندي هيچېرې | په لوېي په بهايي
ور ته کفر څرگند بړي | خود بيني او خود رايي
خود رايي په عاشقۍ کې | له عاشقه نه ښايي
معشوقې که بې وفا دي | عاشقان خوږې ستايي
غوږي چې کوږ سترگي زندوي[5] | د خپل يار په خطايي

---

(۱) دا غزل په قلمي نسخو کې نشته .
(۲) "ق" چاپ : " که ز ځان ستا په مينه کې فاني کړم څه به وکړم".
(۳) "ب پ" چاپ ، "ق ، ک" چاپ او قلمي نسخې ، " څه دي په مرگ هم شته که مطلق په مرگ نه مايې".
(٤) دا بيت د "خ" په لومړۍ نسخه کې نشته .
(٥) د "خ" لومړۍ نسخه : " په غوږ وکړه په سترگو روند وي !
د "خ" دوهمه نسخه : " په غوږ وکوږ په سترگو روند وي".
د "پ" لومړۍ نسخه : " غوږي کړوي سترگې روندې وي "

کړې کړې وې سل علمه — هم دیني هم د نیا یې
همه واړه فراموش کا — چې پرې ورشي شېدا یې
و مطلب ته نه رسېږي — په شیخي په ملا یې
اواره ننګ و ناموس کا — په سر واخلي رسوایي
تر ناموسه ور ته به شي — بې ننګي و بېنوا یې
هره چاري په اخلاص وي — نه په روی و ریا یې
قبلوي په دواړو سترګو — هر چې یار پرې فرما یې
نصیحت پرې اثر نه کا — که څوک سل ځله و وایي
فایده نلري په عشق کې — د دانا و دانا یې[1]
مشکل کار د عاشقۍ — اسان چېرې دی بایې
دغه کار کولی نه شي — هر کم فهم و ګدا یې
هر کم بخت یې کله مومي — د دلبر و همتا یې
خه په کسب موندنه شي[2] — دغه کار دی عطایي
چې د عشق په لومه کېوزي — نور یې نه وي رهایي
بې د یار له مخه نه شي — د عاشق د کشایې
د خپل یار په طلب ګرزي — غاړې غرونه بېدا یې
له عالمه وي وتلی — لکه صید صحرا یې
تل تر تله یې وطن وي — ګوشه کنج و تنهایي
مدام سوی لوغړن وي — د خپل آه په ګرمایي
هر زمان یې په اوږ نیسي — د خپل یار تمنا یې

---

(۱) د "خ" لومړی نسخه: " د دانا نه دانا یې".
(۲) چاپي دیوانونه: " خه په کسب موقوف نه دی".

نه يې ملك و نه يې مال وي ــ نه يې زهد و پارسايي
په دا هسې ګرانو چارو ــ معشوقې يې ارمايي
په يوه ديدن يې يو سي ــ د درست عمر کمالي
هم مې هسې رنګه وزني ــ يار ستا بې وفايي
چې په زړه کرم[1] زړه مې چوي ــ دغه ستا خودنمايي
هم خودي لري لې قيا سره ــ هم د حسن زيبايي
ضرر نه لري بې نفع ــ ستا د مينې سودايي
ستا سودا مال د سود دی ــ حق به وايم خدايي
په جهان کې ليده نه شي ــ ستا د حسن صفايي
لمر به څه لدتا سيالي کا ــ په دا بې سروپايي
ادراك نه رسي د سرو ــ ستا د قد په رعنايي
لکه ستا قد و بالا دی ــ نشته هسې بالايي
که د ستا وصال دريا دی ــ زه ماهي يم دريايي
د ملګو زندګي ده ــ په دوکان د حلوايي
زه توتا شکرپرست يم ــ دا ستا شونډې متايي

## ۳۶۸

دا ګمان په ما مه کړه ــ چې بې تا به و پايي

## ۳۹۰۵

خوږ ما په ورمېږ ماتول شېر يې ــ که په مرګ د رقيب هم هسې شمشير يې[2]
مرګ خوږ شي چې يخپله را پسې دی ــ څه محتاج زما و مرګ وته دېر دېر يې
کبر و خيال خو لا لدڅايه ستا عادت دی ــ او که نن زما د قصد په بل پير يې[3]

---

(۱) له مصوري نسخې نه پرته په نورو قلمي نسخو کې "لدنه يمه کرم" راغلی دی.
(۲) دا غزل د "خ" په لومړی نسخه کې نشته.
(۳) دا بيت په "ق، ک" چاپ کې نشته.

دا يې شماره عاقلان به شي کم عقله[1] — ته چې دا رنګه په زړه وسپکه دلېږې

ستا خويونه به پخپله ځان ځرګندکا — زه به څه وايم چې ته تږ بلا تېږې[2]

له حېرته دې تعريف کولى نه شم — چې په څه رنګ دې ستايم دڅاپه څېړې

ما چې ستا دلبو خوند بيا مونده محظوظ شوم[3] — کسل ځله په ترخه ويل ګنده ږې

۳۶۹ — ۳۹۱۳

د رحمان سنګلي که واره د رنځ شي

خداى دې نه کا چې يې ته له دله هېرې

په يوه ذره به ونړی یا به موړ يې — په يوه ذره به ګرم يا به سوړ يې[4]

که ځواني له خدايه غواړې ځوان به مړ يې — او که پس له ځوانۍ پاڼې خو به زوړ يې[5]

بندګان خو کله جوړ کله ناجوړ وي — څه خداى نه يې چې به تل تر تله جوړ يې[6]

عاشقي به دې آسمان غونده ځرګندکا — که مجنون غوندې هر څو په صورت وړوکې[7]

بدي واره په سند ونيسه رحمانه — چې پاى بند دياں په ځمکه يا به مړ يې[8]

۳۷۰ — ۳۹۱۹

عاشقي لې جذبې چېرې ده رنګينه

ته مجذوب دياں په ځمکې لا وړ يې[9]

---

(۱) د "پ" لومړۍ نسخه : "کم بخته".

(۲) دا بيت او ورپسې دوه نور بيتونه د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته ، د "پ" په لومړۍ نسخه کې د "ته" پر ځاى "څو" راغلى دى.

(۳) "پ" چاپ : "محفوظ".

(٤) د "پ پ" چاپ او د "خ" دوهمه نسخه کې د "يې" پر ځاى "وي" راغلى دى او نوموړى غزل په مصوره نسخه کې نشته.

(۵) دا بيت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته.

(٦) "پ" چاپ : "سرى کله خو يا جوړ کله ناجوړ وي خداى خو نه يې چې به تل تر تله جوړ يې".
د "پ پ" چاپ : "سړى کله خو يا جوړ کله ناجوړ وي خداى خو نه دى چې به تل تر تله جوړ وي".

(۷) د "پ پ" چاپ : "وي".

(۸) دا بيت په چاپي ديوانونو او نورو قلمي نسخو کې نشته.

(۹) "پ" چاپ او "ق، ک" چاپ : "ته مجذوب دياں په ځمکې مړ وړ يې".
د "پ پ" چاپ : "د مجذوب دياں په ځمکې مړ وړ وي"
"ق" چاپ : "ته مجذوب دياں په عشق کې کړ وړ يې".
د "خ" لومړۍ نسخه : "بدى واره په سند ونيسه رحمانه چې پاى بند دياں په ځمکه يا به مړ وړ يې".
د "خ" دوهمه نسخه : "عاشقي لې جذبې چېرې دى رحمانه چې مجذوب دياں په مينه کې مړ وړ يې".

خدای دې وژغوره له هرې پرېشانۍ — اې زما د کور و کلي ودانه

عاشقي چې ما ګڼله نا داني وه[1] — اوس خبر شوم له دې خپلې نادانه

تر ورخ تېرې او به بېرته نه جاروځي — څه په کار ده پوچ بې ځایه پښېمانه

ودانۍ په یوه دم کې شي ویرانه — مرد هغه چې کمېږي د ورانۍ ودانه[2]

لکه باد چې ځان وهي له کوه و دشته — زه په تا پسې ګوم سر ګردانه

داخو زه د ستا له غم سره لوښېږم — څوک له دیوه سره کا پهلوانه[3]

چې په آب و په آتش په خاك و باد وي — څه امید دی په دغې زندګانه

تر چې دا رنګه او ن دې او بد دې وعده کړې — کشکې ړاکړې وما خط د امانه

که زه ته په هغه وخت وې چا به نه کړې — د مجنون او د لیلی قصه خوانه

زما ستا و تنداري ته به حیران وو — که ژوندي وي آدم خان او درخانۍ

وهر چا و ته چې والم حیران به یې

څه به والیم د [illegible] له حیرانه

۳۷۱ — ۳۹۳۰

په ځوانۍ کې بد دماغه بدګمان یې — چې پیر یې در باندې در شي بیا ناتوان یې[4]

که په دادې زړه سنه کېږي داخو نشته — چې به تل تر تله ژوندي وې هم به ځوان یې[5]

چې هرګز دې په لاس نه دي کبوتونې — بېهوده د هغو چا او پدارمان یې

چې بې خدایه زړه ترې په نور څه پوهېږي — هم په خدای هسې باور کړه چې نادان یې[6]

پښېماني تر پښېمانۍ لا ښخوا بویه — نه هغه چې بیا په تېر ساعت پښېمان یې[7]

---

(۱). په قلمي نسخو کې "دانایي" راغلې ده او د "پ پ" چاپ کې د "ګڼله" پر ځای "کوله" راغلې ده.

(۲) قلمي نسخې : "مرد هغه دی چې ودانې که ورانه".

(۳) دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته د "خ" په لومړی نسخه کې د "لوښېږم" پر ځای "نخښېږم" راغلې دی.

(٤) په قلمي نسخو کې "در شي ناتوان یې" راغلی دی.

(٥) چاپي دیوانونه او د "خ" لومړی او دوهمه نسخه : "چې به هم تر ډېره ژوندي هم به ځوان یې".

(٦) دا بیت د "خ" په لومړی نسخه کې نشته.

(٧) دا بیت او ورپسې اووه بیتونه د "خ" په لومړی نسخه کې نشته.

هسې رنګ دې وهغه جهان ته شاکړه
ګويا تل به مستقيم په دا جهان ته يې

هومره سر دې وخپل خدای وته ټيټ نه دی
لکه ټيټ په لوړ د خان و د سلطان ته يې

يوه شپه به طاعت نه شې روڼ نولې
هره شپه په مال وملك باندې[1] پاسبان يې

په تسبيح دې تاندي ژبه وچ لرګی شي
پوچ ګويه لره بلبل غوندې ګويان يې

وليانځه ته چې لمر خېږي هاله پاڅې
په قلبه پسې لانيمې شپې روان يې

او د اسره کوزه اخستی نه شې
چې په لوا و په لوړ ورشې پهلوان يې[2]

دهلك په خبر لاس اچوې واوره ته
نه خبر په خپل بهبود نه په نقصان يې

پېښې سترګې لکه ستور په ګانې ګرزې
که پرېوزې وکوهي ته هم روان يې[3]

## ۳۷۲

چې وبل ته نصيحت کا ځان يې هېر وي
نور څوك نه دی هغه ته عبدالرحمن يې

## ٣٩٤٤

زه د ستا له غمه ژاړم واره وينې[4]
واره وينې، واره وينې، واره وينې

خود مې وينې چې په تش کاته دې مړمه[5]
لا خنجر په کاڼي مږې دل سنګينې

هر زمان مې په حضور د سترګو وژنې
لا يقين دې د زړه نه شي بې يقينې

عالم ستا په مينه ژوي نه پوهېږم
زه په څه سبب وژلی يم ستا مينې

د پر عالم به نوري[9] رنګ کا معلومېږي
تا چې هسې جامې واغوستې رنګينې

پښې يې نه وي چې وبله خواته درومي
هسې سکنې په غمزه د عاشق سپينې[7]

که صورت مې پر بله پورې معلومېږي
زړه مې ستا له غمه چاود دی نازنينې[8]

---

(۱) په چاپي ديوانونو کې "پسې" راغلی دی.
(۲) د "خ" دوهمه نسخه : "چې د لوی په لوړي ورشي پهلوان يې".
(۳) دا بيت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته.
(٤) د "خ" لومړی نسخه : "زه د يار په غم کې ژاړم واره وينې".
(٥) د "خ" په لومړی او د "ب" په لومړی نسخه کې "مړيم" راغلی دی.
(٦) د "خ" په لومړی، دوهمه نسخه او "ق، ک" چاپ کې "نمري" راغلي دي.
(۷) دا بيت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته.
(۸) دا بيت د "ب" په لومړی نسخه کې نشته.

هغه څوك دى چې ترتا به ښه ترين وي     اې ترو اروو مهرويا نو ښه تر ينې (١)

٣٧٣     چې دې زلفې د ماح په زړه وريځ کړي (٢)     ٣٩٥٣

تر ښو چې حکم د خالق اوبه سپينې

ورك شه ورك شه بدكردارا و بد سړي     كه دې ورور كه دې عزيز وي كه پرد ي

تر هغه لا سپي كاں بيگانه ښه دى     چې بدكار شي د چا زوى او يا لمسى (٣)

لرګي لوښي همه واړه پرې مردار وي     بدكردار دى سور لنډى يا وړى سپي (٤)

هغه خلق همه واړه لېونى كا (٥)     چې په كلي كې يو سپى شي لېونى

بل علاج د لېونيو سپيو نشته     بې له مرګه چې ترې ړك كاندي كوهي (٦)

حرام خور د مخنثو په حساب دى     كه په توره يا په تېغ وي مړ نى

مړنى ويلې بوينه وهغه ته     چې بې وجه ازار نه كاندي يو شې (٧)

ديګ يې ايښى په ديګدان ږومبى تر تيغ و     چې يې سوړ په آه سرد نه شي نغرى (٨)

هسې فيض يې وهر چا وته رسېږي     چې باله شي د خپل وخت حاتم طى

٣٧٤     اې ماح چې بدفهم بدكردار شي     ٣٩٦٣

راته وايه سپى ښه تر دى كه سړي

---

(١) دا بيت د "خ" په لومړي نسخه كى نشته.

(٢) "ق، ك" چاپ : "چې دې زلفې د رحمان په زړګي وريځ كړي".

(٣) د "پ" لومړي نسخه : "چې بدكردار شي د چا زوى او يا لمسى". "ق" چاپ، "ق، ك" چاپ او د "خ" لومړي نسخه : "چې بد كار شي د چا زوى د چا لمسى".
د "خ" دوهمه نسخه : "چې بد كار شي د چا زويه يا لمسى".

(٤) دا بيت د "خ" په لومړي نسخه كى نشته. د "پ" لومړي نسخه : "لوښي لرګي همه واړه مردار شي   بدكردار ه لكه سور لنډى يا وړى سپي".
"ق" چاپ : "ګوښي ګوښي پرې همه واړه مردار دي   بدكردار ه سور لنډى او وړى سپي".
د "خ" دوهمه نسخه : "لوښي كوډي همه واړه مردار كه   بدكردار لكه سوړلند وړي سپي".
مصوره نسخه : "بدكردار دي لكه وړې سپي".

(٥) د "خ" لومړي نسخه : "هغه خلك همه واړه پرې مردار شي".

(٦) د "پ" لومړي او د "خ" لومړي نسخه : "بې له مرګه چې يې ړك كړي يو كوهى". د "خ" دوهمه او مصوره نسخه : "بې له مرګه چې پرې ړك شي يو كوهى".

(٧) "ق" چاپ : "چې بې وجه آزار نه كاندي سړى".
نور چاپي ديوانونه : "چې بې وجه آزار نه كا هيڅ سړى".

(٨) دا بيت د "خ" په دوهمه نسخه كى نشته، په "پ" چاپ كى دوهم مسرى داسي ده : "چې يې سوړ په آه تيغ نه شي نغرى".
د "خ" لومړي نسخه كى يې لومړى مسرى داسى ده : "ديګ يې ايښى پر ديګدان او ترې لاندي".

که له ډېره غمه دم د چا ختی　　زه به مړ وم ستا په غم کې لړغونی[1]

زړه مې هسې رنګ په تورو زلفو بایلود　　لکه ورك په توره شپه کا څوك کالی

په یوه ساعت مې رد هم مې قبول کا　　نه پوهېږم چې یې خپل یم که پردی

په یوه لاس یې مرهم په بل خنجر وي　　نه په مړو کې حساب یم نه ژوندی[2]

که په مرګ د عاشقانو دې رضا وي　　خدای دې ما کا ترحمه وار وړومبی

خون بها مې د ستې په مثل نشته　　ما پخپله قبول کړی دی خپل سوی[3]

وکوم دم ته به ادراك د پارو رسي　　هر وېښته یې د کاکل شو منګری[4]

څوك دې غم زما ډېر واوښکو نه خوري　　کم به نه کا په خوړدن سره نه دی

د هجران په توره شپه کې نه وېرېږم　　چې یې نه وینم د وصل سپین سپوږمی

دیار غم لکه مزری را باندې راشي　　خدای دې پلېس په هیڅ نه کاندي مزری

چې پرې غم غلط وم د شپې پاڅم　　کله مې په شونډو کېږدم کلدنی

ګاه کتاب ګهې رباب په لاس راواخلم　　باري درد مې په هیڅ رنګ نه کا کمی

همسایه مې واره وواته له خوبه　　که په سل کوټو دننه کړم ځګېږي

که عاشق تر معشوقې پورې یو سېږي　　خدای د هجر په تیغ مه وژنه یو سړی

٣٧٥

زه رحمان دیار په غم کې هسې ډوب یم
چې هیڅ نه وینم په سترګو مګر دی

٣٩٧٨

چې دار و درد و غم دې ځغه می　　ساقي راکړه یو دوه جامه پیالې

می د خپلو لبو را نه د انګورو　　چې اوّل یې نوشیدن وي پسې قې

---

(١) په "ب" چاپ او "پ پ" چاپ کې: "زه به مړ ومه په عشق کې لړغونی". "ق" او "ق، ک" چاپ: "زه به مړ ومه په غم کې لړغونی". د "خ" لومړی او دوهم نسخه: "زه به مړ دم په هجران کې لړغونی".

(٢) دا بیت په "ق، ک" چاپ او د "خ" په دوهم نسخه کې نشته.

(٣) دا بیت د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته.

(٤) دا بیت په چاپي دیوانونو او د "خ" په دوهمه نسخه کې نشته.

پہ هر تیغ کې چې آب نه وي د شرابو — څوک د غم پہ غلیم نه مومي برې[1]

جام د میو چې غم خوار د کل جهان شو — زہ بہ اوسم[2] پہ دا غم کې تا بکې

راشه یو ځل مې هسې مست خراب کړه — چې خبر نه شم[3] له حاله د هیڅ شي

بېخودي هسې پناه ده زورور ه — چې له هره غمه خلاص کاندي سړی

زه هغه تحصیل تمام کړم پہ عشق کې — چې یې روغ وګړي بولي لیونی

رحمان سوله له رقیب سره پیدا کړه
آشنا سره دې البته خوړ ونکی سي

۳۷۶ — ۳۹۸۶

د پرې خولې زما پہ یاد شکرخورې شوې — بیا زما[4] پہ زمانه خاورې ایرې شوې

یوه بخره خدای هر چا له ورکړې — د چا بخره خاموشي د چا ناري شوې[5]

د چند نو ونې و سولېدې لارې — هزار ځانګې د شمشاد و پرارې شوې

پہ هغو ځمکو چې روغې پرې ماڼې وې[6] — د ایام پہ ګردشونو هدیرې شوې

پہ دنیا کې چې بنیاد د آشنایي کا — د هجران توري یې هغو له تیرې شوې

دا فلک چې خدای پیدا کړی دا یې خوړی دی — چې وچا ورته دعا چاته ښېرې شوې

د دنیا د محلونو خښتې وا ړه[7]
ورحمان ته د سرونو مناري شوې

۳۷۷ — ۳۹۹۳

---

(۱) د "ق" چاپ او "ق، ک" چاپ: "څوک له غمه پہ غلیم مومي برې".
(۲) پہ "ق، ک" چاپ کې "سوځم" راغلی دی.
(۳) دا بیت د "خ" پہ دوهمه نسخه کې نشته. پہ نورو قلمي نسخو کې د "نه شم" پر ځای "نه یم" راغلی دی.
(٤) د "پ" پہ لومړۍ نسخه او د "خ" پہ لومړۍ نسخه کې "زموږ" راغلی دی.
(۵) دا بیت د "خ" له دوهمې نسخې نه نقل شو. پہ چاپي دیوانونو او نورو قلمي نسخو کې نشته.
(٦) قلمي نسخې: "پہ هغو ځمکو چې روغې وې مانئه".
(۷) د "خ" لومړۍ نسخه: "د دنیا د محلونو خښتې وا ړه —
ورحمان ته د سرونو کنګرې شوې"
د "خ" دوهمه نسخه: "د رحمان د محلونو خښتې وا ړه —
وعالم ته د سرونو مناري شوې"

بوصل تو یارا کجا ہاتھ ہے — کہ وصل تو خیلی بڑی بات ہے

بگوی تو گفتم کہ مسکن کنم — ولی کی مرا این درجات ہے

خم زلف تو گوشۂ ابروان — دلم را عجائب مقامات ہے

مکن پیش من وصف خورشید وماہ(۱) — کہ از حسنت این خم علامات ہے

ھمی دادی دشنام وگالی مرا(۲) — بسویم ھمین از تو سوغات ہے

نگاھت نہ امروز خونم بریخت — کہ دایم ترا ھمچو عادات ہے

٣٧٨ زآغوشش رحمان مرو یار رقیب ٤٠٠...

کہ این سفلہ بدخوی وبدذات ہے(۳)

## مخمس

هغه یار چې ښایسته دی تر آفتابه — مخ به کله راڅرگند کا له نقابه(٤)

بېلتانه په زړه زهیر کړم بې حسابه — یو سبب وکړې مسبب الاسبابه

چې زما ملاقات وشي له احبابه

---

(۱) د "پ" لومړی نسخه : "خورشید وماہ را".

(۲) د "پ" لومړی نسخه : "همه داد دشنام وگھالے مدام".

(۳) د "پ" لومړی نسخه : "کہ این سفلہ بدکار وبدذات ہے".

(٤) د پېښور چاپي دیوانونه : "حجابه". دا غزل په "پ" چاپ کې نشته.

ملاقات د ښایسته ؤ مې نصیب کړې     د ښایست په ګلستان مې عندلیب کړې

عندلیب مې په ګلشن د خپل حبیب کړې     خدایه ما په دلبرانو کې قریب کړې

ومې ژغورې د دې اهل له عتابه

هغه یار چې زه یې مینه په دیدار کړم     همېشه یې د ویدن ته انتظار کړم

شپه او ورځ پسې ناري وهم کوکار کړم     که په روی تمام جهان ورته رویدار کړم

سترګې نه پورته کوي د نازله خوابه

بېلتانه یې پټ پنهم په زړه تاراج کړم     ودیدن ته یې په هسې رنګ محتاج کړم

چې غرقاب یې د غمونو په امواج کړم     هېڅ پایاب یې مونده نه شي څه علاج کړم

د آشنا د مینې غم شو ناپایابه

ته چې کس یې د جمله ؤ بې کسانو     هم کارساز یې د جملهٔ وکارسازانو[1]

الهي[2] په بزرګۍ د بزرګانو     زه وصال په دعا غواړم د خوبانو

لا به کله دا دعا کړې[3] مستجابه

اسیر کړی دې د زلفو په تناب یم     تکبیر کړی دې د سترګو په قصاب یم

د کشتۍ[4] غوندې مدام په اضطراب یم     لکه زه چې ستا له غمه په عذاب یم

خبر مه شه هېڅ بنده له دې عذابه

دریغه مه وی په دنیا کې پیدا شوی     او که وی هم په داسې شان خو مه وی

لکه زه یم د هجران په لمبو سوی     خو به ګرزم په داسې[5] اور الوی

چې سینه مې په درست غم شوه کبابه

---

(۱) په "ب پ" چاپ، "پ پ" چاپ او د "خ" په قلمي نسخو کې "خام کارانو" راغلی دی.

(۲) د "پ پ" چاپ: "هم په روی او"

(۳) چاپي دیوانونه: "شي".

(٤) "پ پ" چاپ: "د ماهي په شان"

(٥) چاپي دیوانونه: "د هجران په اور"

هی هی خه مې دا خراب[1] خاطر نابنا دشو | زیست روزګار مې همېشه آه و فریاد شو
عمارت مې د زړه هسې رنګ برباد شو | چې حباب غوندې بې بیخه بې بنیاد شو

د بنیاد[2] طمع به څو کړم له حبابه

پټ پټ ګرځم د ناصح له نصیحته | راته کاندې نصیحت په څو صورته[3]
چې توبه کړم د خوبانو له قربته | هیڅ جواب یې په ما نه شي له غیرته

د رحمانه ورته ولاړیم لا جوابه

دا جواب څه هسې نه دی چې په خوله شي | د عشق راز څه هسې نه دی چې وایه شي
دا مشکل حکایت نه په ما نه شي | د دې بحر بې پایان حساب په څه شي

چې یې زه وچاته وایم له حسابه

چاموندلی[4] د دې بحر پایان نه دی | د غه راز وهر سړي ته عیان نه دی
هیچا کړې د دې چارې بیان نه دی | د غه واره عاشقي ده رحمان نه دی

## ۳۷۹ چې په خوله کې د رو لعل لري سیرابه ۴۰۲۷

ستا جفا تر حد پېهوره ده صنمه | تل مې اوښکې موج وهي د زړه له غمه[5]
شو به پټه دا قصه اوسي پنهمه | هسې ډوب په فکر تو یم لې دمه[6]

نه پوهېږم چې په غره یم که په سمه

که خبر[7] وی له دې هسې رنګ خوارۍ | ما به نوم اخستی نه وُ د یارۍ
ستا د غم په دریاب ډوب یم ترمرۍ | بې تا نه لرم هیڅوک د دستګیرۍ[8]

مګر ته په خپله لاس راکړې همدمه

---

(۱) د "پ پ" چاپ: "ستا په هجر مې"
(۲) په چاپي دیوانونو او د "خ" په قلمي نسخه کې "بنادي" راغلی ده.
(۳) د "خ" دوهمه نسخه: "په څو کرته"
(٤) "ق" چاپ او "ق،ک" چاپ: "ماموندلی"
(٥) "پ" لومړۍ نسخه: "د زړه له غمه"، "ق" چاپ، "ق،ک" چاپ او د "خ" قلمي نسخې: "د زړه له غمه"
(٦) "پ" چاپ، "ق" چاپ، "ق،ک" چاپ او د "خ" قلمي نسخې "هسې ډوب په فکر تللی یم له غمه".
(۷) قلمي نسخې: "که مې نه وه دي" (۸) د "پ پ" چاپ: "دادګیرۍ"

ما وې نور به آشنايي له هيچا نه کړم — هم په دا رنګه مې نيت ؤ باري څه کړم
د قسمت علاج په چا شي چې يې زه کړم — که په سل رنګه تلاش و تدبير کوم
خلاصي نه موم له لوحه له قلمه

خوبرويان که بې وفا دي خو هم ورځ دي — عاشقان که وفادار دي خو هم پرېدي
ستا له غمه هر چې دي زما په زړه دي — اوس به حال و چا ته (څه) وايم چې مړه دي(1)
غرض دا دی چې زه ګرم يم ته ناګرمه

يو خو دا چې په صورت يې پري رويه — هم په خوی و په خصلت فرشته خويه
هم په قد و په قامت هر ګوره لويه — بيا به نه مومي څوک تا غوندې دلجويه
که يې غواړې په هژده هزار عالمه

ستا له غمه(2) زه په ځان کړم هسې چارې — چې د ښنديې ويله نه کا ګلعذارې
ته په څه سبب له ما نه دل آزارې(3) — دا زما ګناه را وښيه دلدارې(4)
چې توبه کړم نصوحا غوندې محکمه

لاس ترغاړې له رقيب سره خندا کړې — چې ما وويني له قصده را ته شا کړې
خدای يې ويني هغه چارې چې پر ما کړې — تر ابده ورځې پورې به جفا کړې
که(5) به کله هم چاروزې له ستمه

تا چې هسې بې نيازي د ځان پېښه کړه(6) — په عاشق دې د خندا ځمکه متره کړه
بيا دې ورځ په غريبانو توره شپه کړه — نور دا هسې د جفا خوی ونه مه کړه
خلق به دې له جوره شي برهمه

---

(1) دا مخمس په "ق" چاپ او "ق، ک" چاپ کې نشته. څلورمه مسرۍ په "پ" چاپ او د "خ" په قلمي نسخه کې داسې ده: "اوس به حال و چا ته څه وايم چې شه دی".
(2) قلمي نسخې او "ق" چاپ او "ق، ک" چاپ: "ستا د پاره".
(3) قلمي نسخې "ق" چاپ او "ق، ک" چاپ: "له ما لاسته"
(4) د "پ" لومړۍ نسخه: "ته يارې"
(5) د "پ پ" چاپ او "ق، ک" چاپ: "ته به کله" (6) "پ" چاپ، د "پ پ" چاپ او "ق، ک" چاپ: "تو مبنه کړه"

زما ستا له مینې هر څوک خبردار دي — دا خبرې کوډ اکوي په هر دیار دي

چې فلانا فلانا سرې سره دوستدار دي — اوس په بېرته جاروانه وما ته عار دي

چې رسوا شوم تر عرب وتر عجمه

څغرڅ وي(1) چې په تابانده مین وي — په وګړې کې رسوا لکه کوهکن وي

همېشه انګشت نما په مرد وزن وي — چې دا نښې پکې نه وي دروغژن وي

که په هره ګړۍ خوري هزار قسمه

نښانه د عاشقانو ول داده — چې مدام یې سر پکار وي لږ زیاده

تل نا مرد بدنامي وي پرې زیاده — نه وېرېږي له پېغوره له داهداده

بې دیان د جدایۍ له ما تمه(2)

هر چې زړه یې مبتلا شي په بتانو — زیست یې نه شي یو ساعت بې مهرویانو

که څوک ورکا بادشاهي د بادشاهانو — په نسبت د هغو سوي سوختګانو

دا متاع ده تر یوه خسي کمه

که سلیمان غوندې مسند یې په هوا ئې — په سبب د عاشقۍ به خاکپا وي

همېشه به په فریاد و په غوغا وي — چې دا هسې نښانې پکې پیدا وي

تر وهاله پرې عاشقي ده مسلمه

عاشقي دې هیڅوک نه ګڼي آسانه — دا خبره ده له حده پسهو تر ګرانه

وصال نه دی چا موندلی بې هجرانه — ته له ځان(3) سره اټکل وکړه رحمانه

۳۸۰ — په دنیا کې سبا دي چې پڅاده بې غمه — ٤۰۹۲

(۱) د پېښور چاپي دیوانونه: "څغرڅ وید".

(۲) د "خ" لومړۍ نسخه: "نه بېنکاره پرې دیوې ستنې تر سومه".
"ق"، "ک" چاپ: "بادشاهي ده له یوه خسرې کمه".

(۳) په قلمي نسخو کې "له زړه سره" راغلی دی.

**٦١**

تېر شو په دا طمع په درستا عمر زما — گوندې چېرې کېږدې يو قدم په سر زما (١)

تا وې چې د عشق پياله خوږه ده تر شکره — وسو په هجران کې دې پيالې ځيگر زما

سل جفا که وينم په سترگو ستا له لاسه — ستا په جفا نه کېږي هرگز باور زما

يا له ما لاس واخله سره جفا مه کړه دلبره

يا لې تا را وښيه يو بل دلبر زما

٣٨١ — ٤٠٦٩

**٦٢**

هر گفتار هره وينا چې څوک عبس کا — تر عبس ويل دا بده ده چې لې بس کا (٢)

په هغې وينا چې ورو وسته پښيمانېږې — له اوله دې خوله هسکه (له نفس) کا (٣)

هره چار چې له اختياره وي وتلې — بېهوده به لې څوک لاف د دست ورس کا

فقيري دې د خداى په مهر موندة کېږي — داهن په کېږنه شي چې لې نس کا (٤)

آدم زاد په معنى واړه يو وجود دى — يو وجود دى هم لې پاك هم لې نجس کا

که لې اصل يو وجود دى (په دې) څه شو — د گلو نو هغه کله خار و خس کا

په اخلاص د لمانځ گذارو دى جنوب دې — هر لمانځ بې چې (په) ريا تيمم (٥) اودس کا

(که خود بين وي) نه لې څه کوي لمانځه

د خود بينو سره اخپله خودي بس کا

٣٨٢ — ٤٠٧٤

---

(١) دا غزل د زلمي هيواد مل د شخصي کتابتون له قلمي نسخې نه نقل شو.

(٢) دا غزل د حبيب الله رفيع د شخصي کتابتون له نسخې نه نقل شو په دې بيت کې د "عبث" کلمه د قافيې د سمون په غرض د "عبس" په شکل راوړل شوې ده.

(٣) اصله نسخه: "لا اول دې خوله هسک". چاپي ديوان: "لااوله دې لې نکه تر خوله هسکه"

(٤) اصله نسخه: "داهن په کېږنه شي چې نصق کا"

(٥) په اصله نسخه کې "تيمون" راغلى دى.

## ٣٩

دلربا که د خپل حسن مخ عیان کا
د بڼې غمزه جمع زړونه به لړزان کا

په کشور د صبا برانو به قیامت شي
اسرافیل غوندې آواز به هر نالان کا

چې یې چا جام د لعلو وي نوشلی
پیمانه چغلګیرې به دا نادان کا[1]

د جبین په چین یې هسې رنګ پوهېږم
چې محراب به د ګایلو زړونه ویران کا

د پرېشان ګیسو دلیل یې عین دا دی
چې وابست زړونه به دا رنګ پرېشان کا

که جلوه یې د جمال شي معینه
په شعله به لمر، سپوږمۍ سوي نانان کا

که د باد ګذر (یې) وشي و خاکپای ته
درند و ستر ګو دار و به خدای اسان کا

که شانه په تورو زلفو باندې کېږدي
مشک عنبر (به) د یوې پیسې ډېرا کا

تورې زلفې یې هم مشک دي هم عنبر دي
خو زما له کم بختۍ (یې) خدای ماران کا

که پلو له مخه لرې کړ همانا
په دیدن به هندوان واړه مسلمان کا

٣٨٣ ٤٠٨٤

## ٤٠

که په بخت کم بختان ندي خسته دل خوک
په حضور به له تا ولې بې بدل خوک[2]

و دیدن و ته د هر چا رضا کېږي
ولې حکم یې له تا نه لري بل خوک

که یې لاس د خدای په چار یې رسېدلی
بې مقصوده به یو دم نه سهېدل خوک

دا یو سر دی ما داستا شکرانه کړی
نور ناحق مې ویروي په سر وهل خوک

دا هم زما شومیت دی چې را رسي
ګنهګار تر[3] او د چا زړونه بدول خوک

---

(١) اصلي نسخه "پیمانه چغلګیرې په دا نادان کا" او دا غزل د رفیع د کتابخانې له نسخې نه نقل شو.
(٢) دا غزل د رفیع د تخصص کتابخانې د چاپي دیوان او قلمي نسخې نه نقل شو (٣) د رفیع کتابخانې چاپي دیوان: "زره"

د دیدن په طمع وغلېدم بندي شوم | ګنهٔ زه او د هجران سختی زغمل څوک
په هېڅ رنګ به دې له میني منکر نه شم | هر شان قصد چې مې کوي په قتلول څوک
که مې زړه ستا میني نه وای راپیر ودی[1] | په رضا لړسره کله تېرېدل څوک
که اثر د محبت ورسره نه وي | روغ صورت دا هومره زړه زهیر بدل څوک
که په مینه د لیلی مبتلا نه وای | (دا) غریب مجنون بېدیا، غرونه ځنګل څوک

مینه هره بلا کاندي (که باور کړې)[*]
ګنهٔ زه عبدالرحمان هومره ویل څوک

٣٨٤ — ٤٠٩٥

۵

د خپل ځان له خاکساری (نه) بلند شوم | لکه ګرد هسې شهسوار د هر هوایم[2]
کمینی هسې کامل کړم چې زه درو م | لکه ځمکه درست جهان راسره بیایم
ما چې خپل معراج د دار د پاسه ولید | د منصور په څېر ښتیا و ښا (به) وایم
د منصور او زما هومره تفاوت دی | چې ده ناري کړه، پټه زه خفیایم

له عیانه هېڅ حاجت د بیان نشته
زه رحمان به په خوله څه وایم چې دایم

٣٨٥ — ٤١٠٠

٦

هر چې خپلي میني خوار کړ خوار یې مه ګڼه | عشق د رحمت ابر دی غبار یې مه ګڼه
کله تور سنبل کله تور مښک کله عنبر شي | زلفي که د ماں په څېر دي مار یې مه ګڼه

---

(۱) قلمی نسخه : "راپیر ودلی"
(۲) د دې غزل مطلع په نسخه کی نشته او دا غزل "په سېنه خوی له بدخواها نو نې بر والم" له غزل نه ورو سته راغلی دی.
(*) چاپي دیوان : "مینه هره بلا کړي بر عاشقانو ګنهٔ زه غریب رحمان هومره ویل څوک".

یو مخ یې د سوزدي سل مخه (لې) د سان دي
عشق په اصل نار دی نار یې مه گڼه

د بې بیدار و یده دی لکه بت په غمو سترگو
بت که د ترغت گوري بیدار یې مه گڼه

مراد خو یو اثر دی د خوبانو له رخساره
هر چې اثر نه لري رخسار یې مه گڼه

خال چې په گل پوري (وي) د گلو په حساب دي
څه و شو که نام د خال دی خال یې مه گڼه

په خلک هغه دي چې اقرار په ناپوهي کا
هر چې ځان هوښیار گڼي هوښیار یې مه گڼه

بد خو هم هغه دي چې خپل بد ورڅرگند نه وي
هر چې ځان بدکار گڼي بدکار یې مه گڼه

هر چا چې اقرار د یار له زلفو سره وکړ
تل به ناقرار وي په قرار یې مه گڼه

هر چې کمال غواړي کمیني (دې) د رحمان کا
عین د غه چار ده بله چار یې مه گڼه

۳۸۶ — ۴۱۱۰

**٧**

اې د نفس او د حرص په هوا لېوه
په ظاهر صورت ملک په معنی دېوه

شدادي خصلت دې و نبوه د ظلم
خبر نه شوې د مسکین د زړه له غریوه

تا چې خپل مخ د فرعون په دود تور کړ(۱)
په دې خوی به برابر نه شې له نیکبوه

پس وجود به دې په څه رنگ حاصلېږي
چې لېږې د یار له دره د د و د بوه

په ظاهر صورت تندرست په روح رنځوره
د رېغه وسوی تر دغ پوست لاندې معتبوه(۲)

د نیستۍ له مکافاته هغه خلاص شول
چې هستي یې د فنا په مخ اېرېوه

اورنگ دې پاچا وه له خوبه (باور کړه)
و رحمان وته په خپله په نار بوه

۳۸۷ — ۴۱۱۷

---

(۱) اصله نسخه: "تا چې فرعون په دود مخ تور کړ". (۲) چاپي نسخه: "د رېغه وسوی تر دروغ پوست لاندې مختبوه"

## ٨

یا داستا چشم ابرو وینم په خواب کې
یا مستان دي ویده شوي په محراب کې

یا په جام کې ستا د مخ عکس لیده شي
یا خورشید دی تجلا کا په حباب کې

یا تر خط لاندې غوټۍ ستا د خولو دي
یا کوکب دی راډوب شوي په شهاب کې

یا دې زلفې په مخ دواړه راخورې کړې
یا سنبل دی ګنجلکي داوړ په تاب کې

یا دې زلفو په مخ توره تاریکي کړه
یا خوتند رځان ژرګند کړ په آفتاب کې

یا داستا مژګان زما په خاطر خښ دي
یا سیخونه دي پټ شوي په کباب کې

یا خوستا له غمه غرق زما صورت دی
یا خسرې دی جاروزې په ګرداب کې

ته د دې رحمان خطا کړه و ر معافه
داوتړ وچاره نه وي په حساب کې[1]

٣٨٨

چې د یاران د مخ کاته له میانه ووزي
د ایمان بدخه عزت وي په حساب کې

٤١٢٦

(١) دا بیت وزلمي هیوادمل د مخصي کتابخانې له قلمي نسخې نه نقل شو.

## ۹

مست د هغه مخ یم چې مستانې لرې سترګې
بې توري، بې تېغه، قاتلانې لرې سترګې

بې لیده وکتو غایبان زړونه وړي له خلکو
هسې چشمان بندې ساحرانې لرې سترګې

هر څوک چې یې ویني نو دې سترګې کتی نه شي
ښکلې پرېوار غونډې حیرانې لرې سترګې

لب آب حیات دي او نفس (یې) د عیسی دی
هیڅ عجب نه دي که خوبانې لرې سترګې

هر چې عاشقان دي هغه کله بل خوا ګوري
واړه ستا په لورې نګرانې لرې سترګې

اې رحمانه اوښکې هم له تخمه د باران دي*
کښت د هغه شین شو چې ګریانې لرې سترګې

۳۸۹ — ٤۱۳۳

## ۱۰

که په قطع د تمام جهان ملک یې
چې له ځانه خبر نه یې لا هلک یې

آدمیت خو څه په مال او په شال نه دی
ته چې خیال په شال په مال کړې سپک یې

منصفان دې د انصاف خبرې وایي
څه شو څه شو که په خپلو کې شریک یې

که د لمر په څېر څرګند شې په جهان کې
خو په زړونو پسندیده نه شې لا ورک یې

بزرګي په دلجوئي کې ده د خلکو
ته چې خلک د وبوې څرنګ بزرګ یې

په لوئي کې لوئي چېرې ده لا یقه
کمینه و ته مټ کړه که سالک یې

فلک تا غونډې پیدا کړي بیا فنا کړي(1)
ته لا نوې خواست کوې په ناز نازک یې

دانایانو به په دیوان ښکلي پند لیکلي
چې رحمان په خوار نظر ګوري فلک یې

۳۹۰ — ٤۱٤۰

---

(1) اصله نسخه : "فلک تا غونډې هزار پیدا کړي بیا فنا کړي". (*) چاپي دیوان : "اې رحمانه اوښکې دې هم تخم د باران دي".

۹۱۶

دزړه حال وتا ته څه والیم په ژبه — ته خبر د خوږ و زړ ونو په منزل یې[1]

هم د ګل په خبر بلبل سېځي په مینه — هم مین لکه بلبل هسې په ګل یې

بې لېډ و د څرګند بڼ یې عیب وار ه — په کمال د ګملګۍ بچار وکامل یې

هم قاضي یې هم ملا هم محتسب یې — هم ساقي د مې پرستو په محفل یې

یو دې ذات په د وار وکونو کې شهره دی — بل په نام له هر چا لو یه یو په سل یې

چې ته مخ په عبادت کې نه جار باسې — دا ستا شپه دې (نفس) بد کاتې یې خپل یې

ورکول او په وړ دل دې په خپل لاس دي — که وچالې ورکوې که یې اخل یې

جان ته هسې رنځ نبولو شه رحمانه — چې شپې یې په پوښتنه وي راغل یې

خدای طاعت، عبادت څه کوې ناسته

۳۹۱ — ٤۱۴۹

خوږې مینه د سرې ده ازمیل یې

# بیتونه:

په "چې یې نقش په زړه خیال شي د اشنا" غزل کې:

ترابده به یې بخره ملالي وي — له هغو چې زړه ملال شي د اشنا

په "ته چې ما ته وایې چې په څه کوې ژړا" غزل کې دریم بیت:

خوبه د اجفا کړې نه پوهېږم څه بلا شوه — خوبه وي ترکوم د اجفا او دا بلا

په "بس ده بس ده د ا دنیا" غزل کې له مقطع نه دمخه بیت:

که یې مال د دنیا د پېروي — هیڅ پرې نه کاندي پېروا[2]

په "لاس مې وترې د زلفو په تناب" غزل کې:

---

(۱) د دې غزل مطلع په اصلي نسخه کې نشته.
(۲) اصلي نسخه: "هیڅ ورته نه کاندي پېروا"

لهٔ فراقه چې یې آه کړم سوك په سترګو   یو لستونی مې ګرداب[شي] بل ګرداب

په "هر مطرب چې غوږې تاوکا درباب" غزل کې دوهم بیت :

هو مره تاوده بېلتانه راباندې زور شي   چې حساب یې بیان نهٔ شي په کتاب

په "چې می یار ولید په سیمه د اغیار ګډ" غزل کې لسم بیت :

سخت سفر دعاشقۍ څوك او زهٔ څوك   خدای ناخاپه پرې راګډ کړم په دالار ګډ

په "نظر دې بصر" غزل کې اووه ځلویښتم بیت :

نهٔ پخلا نهٔ مرور وي   پرېشان ګرزي در په در

په "زهٔ تېر شوی یم ترسر" غزل کې ۱۶ - ۱۷ - ۱۸ بیتونه :

کهٔ مې غواوې کهٔ مې وزه وي   کهٔ مې آس وي کهٔ مې خر

کهٔ مې مېږه وي کهٔ مې من وي   کهٔ مې اوښ وي کهٔ غاتر

کهٔ په کور کې مې کالي وي   کهٔ لنګی وي کهٔ تغر[1]

په "پس له مرګه څوك ارت غواړي خپل ګور" غزل کې یوولسم بیت :

په یقین به بدکردار بدکردار کا   کشیده شي دبدکردار سرې پېغور

په "بداختر به نیك اختر نهٔ شي هرګز" غزل کې اوم بیت :

کهٔ تهٔ غر وروباندې وکړې کار بدکړې   مرغچه[2] به ډرګوهر نهٔ شي هرګز

په "چې پای بند شه دلیلی په اشتیاق" غزل کې :

جهان خوښ دی خپل یار په دردوغم کې   ته به والې چې بادشاه دی دآفاق

په "چې مشغول نهٔ دی ترکو په جمال څوك" غزل کې لسم بیت :

بې بندخوی مخ روښی لهٔ هیڅ نهٔ شي   کهٔ هر څو یې پاکیزه کا په رومال څوك

په "مه غوږ باسه د ناا هلو قیل وقال" غزل کې نولسم بیت :

---

(۱) اصل نسخه : "کهٔ لنګی وي کهٔ تغر"
(۲) په اصل نسخه کې "مرغاچې" راغلی دی. پښتو قاموس "مرغچیچه" ځښتی دی اصل شکل یې "مرغچه" دهٔ چې د "مصنوعی مرلو" یا "مشکنیو" معنی ورکوي.

خراب دل مې ځکه غواړي بلادا شوه　　　چې ځکه دا معلومېږي کمال په کمال

په " په یوه غمزه دستر ګو يې فنا شوم " غزل کې ۶-۷ بيتونه :

په خپل کلي په خپل کور کې مې غربت دی　　　په صدف کې در يتيم غوندې يکتا شوم

مستورې دا څخه يووړه مستو سترګو　　　رحمان ځکه په وګړيو کې رسوا شوم

په " چې له مرګه لې پروا لې په هر دم " غزل کې ۲۸ بيت :

پس له مرګه به دې هوږ هم خانه وي　　　څه پوهېږې يا به مار وي يا به لړم

په " ته چې هسې ګاه مې ترش ګاه مې خندان " غزل کې اتم بيت :

دسرې صورت څرګوغ دکاني نه دی　　　نشته کاني څخه ستا دجور توان

په " څو به شرم زه غمونه دهجران " غزل کې شپږم بيت :

لکه څم دا آشنايي په ما وړه نه ده　　　يا به نه وي دچا هسې ګران ياران

په " تا چې زنګ دميو درکړ و لبانو " غزل کې ۶-۷-۸ بيتونه :

ستا دخولې له حقيقته صوفي څه زده　　　له دې رازه څوک خبر وي بې رندانو

د پېړوان غمې دې د ږب کاپر لبانو　　　دواړه زلفې دې چورې دملنګانو

تور او ربل دې لکه مار په جبين پروت دی　　　شينکي خال دې مواصل دی څورانو

په " که هر څو په صحرا سر شوم هم په کليو " غزل کې دريم بيت :

هر اشنا چې مخ پنهان کا نه يې موم　　　که يې غواړم شپه او ورځ په سپړو پليو

په " ورځ دې تېره په شوې کړه شپه له خوابه " غزل کې اتم او نهم بيتونه :

اندرون به دې له اوره هسې دک شي　　　چې نن دک شي په شرابو په کبابه

چې د مخ و آب و تاب ته دې نظر کړم　　　وا ته هېڅ شي دګلونو آب و تابه

په " ته ښما لې شکرلبه " غزل کې :

نه د لې شوې نه هوږې شوې　　　ترميان ولاړې مه نه بنه

په "خود به وران شي د دنيا بازار التسامره" غزل کی ٤-٥-٦-٧ بيتونه :

يو هسې بې سوزي مې شوه په برخه ـــ چې سر دې يې لا بتره ده تر ساره

مصلې د بې ننګه وربې لنګ کړه ـــ د هوس مصلی قطع کړه ويې نغاره

يار زما د سترګو تور پرې ګر زيد لم ـــ په هجران کې مې د سترګو زنا لاره

په خوار بچه موندنه نه شي له سګانو ـــ په لوح سر سره درو زې له بګاره

په "ماوې زه به نه کړم په خوبانو باندی مينه" غزل کې پنځم بيت :

يار شه نجومي زما د يار فال وګوره ـــ تللی يار به کله له سفره راشينه

په "کشکې زه خاورې ايرې د ستا دردوای" غزل کی نهم بيت :

يا شبنم د صبحدم يا عندليب شوې ـــ چې د استا په ګلشنو زما ګذر وای

په "ستا له غمه مې په سر کې هسې شور دی" غزل کی اووم بيت :

د دو غم د عاشقۍ جوړه سره که ـــ خدای ورکړی و دنيا ته يې سر ور دی

په "زلفې دې له ډېرې درازه پای تر سر دی" غزل کی اووم بيت :

دا خو زه له کم بختۍ له تا زار کړم ـــ ستا له نيک خوی کانې بوټې هم خبر دي

په "چې د ګنګ مې دلبر په لاس کی جام دی" غزل کې اووم بيت :

ته چې خپل فراغت غواړې په جهان کې ـــ فراغت خاطر راوښيه کدام دی

په "چې داهسې لاس په لاس دنيا پر ليښودې" غزل کې ٢م بيت :

په خپل ځای به يې هر کلام په کار شي ـــ رحمان ... طالب له د شکو دی

په "خبر مې ستا د بنو غشي په سينه دی" غزل کی لسم بيت :

نه شما زما په سترګو کې جلوه کا ـــ ماه وهر يې سينه مخ يې آينه دی

په "غم دې هسې غلبه شو په ما باندې" غزل کې اووم بيت :

زه رحمان يې ښد نې په ځان ګنمه ـــ که يار سل ځله ناشد يې چارې کاندي

په "آشنايي توره بلا ده اشنا مه شې" غزل کې څلورم بيت:

خپل څرېښت وهر ځاروي وته قصاب دی — توانايي د تن تاوان دی توانا مه شې

په "ولي ولي و عاشق ته نظر نه کړې" غزل کې دريم او اووم بيتونه:

ښېښتن لاس د سپي په سر باندې راکاږي — ته تش سيوری د مخلص په سر نه کړې

زما هر زمان په تا باندې ګذر وي — ته يو دم زما په لوري ګذر نه کړې

په "مغرور مه اوسه د عشق په کاروبار کې" غزل کې اووم او دولسم بيتونه:

هېڅ صرفه نه کړي د زړونو ازار اخلي — د چا سود دی لوږه زړي شوي په آزار کې

وهغو ته چې خدای حق بيني ستر ګې ورکا — د يوسف تجلي وويني په ديوار کې

په "د هغې بنا چې نوم محبت آباد وي" غزل کې شپږم بيت:

بېخ بنياد به د هغو وي په ياري کې — چې د تن په نابودۍ يې اعتقاد وي

په "که د دوستۍ د دنيا غم مې په سر بار وي" غزل کې ٦، ٧ او ١١ بيتونه:

زه به ستا له رقيبانو خه ما ندکړم — دا دستور دی چې له ګل سره خار وي

که يې هر زمان په آب زمزم ووينځم — بې مينه مې په زړه باندې غبار وي

څو يې سل ځاره خښن شي په تماشې — کله وي چې د بلبل و ګل ته لار وي

په "د وصال په هوا والوتی مرغه شوي" غزل کې څلورم بيت:

چې بېلتون ورته اسان دی هغه خلک — از مېينت له په بند د بېلتانه شوي

په "د برې خولې زما په ياد شکر خورې شوې" غزل کې څلورم بيت:

خپل قسمت په سر يې کاندې هر چې کاندې — د چا برخه خاموشي د چا نارې شوې

په "چې په مخ باندې دا د بنکو يو رقم وي" غزل کې ١٤ بيت:

قاعده د درد منديه هسې نه ده
چې په درد کې يو درد من تر بله کم وي

په " ترڅو چې ماته وايي چې په چا باندې شيدايي " غزل کې له څلورو بيتونو نه وروسته لاندې بيتونه :

هر چې په حيات صورت له مرګه سره اشنا شي
خلاص به د قيامت له خرخښو به د دې دنيا لي

سخ د هغو ګلو چې برګ رېزي به هار وي
ګل سرابني وکا له خزانه استغنا لي

غم (خو) هم (هغه) کړچې هيڅ غم ورسره نه وي
ولې چې ناګاه به يو وخت ورباندې زيا لي

حکم د نيستي په هغو دى هم (چې) هست دي
هر چې هستي پر ېږدي له نيستي نه خبر وي

زره د عاشقانو د دښمن له لاسه بېغم دى
لکه شمع د مقراض له خصومته په خندا لي

لوبه تنده نشتر د قانع په قناعت کې
دا کيميا چې زره کا په خرقې امرا لي

هيڅ سر چشمې طالبې نه کړې په خرمن کې
بلکه د قحطيې په ملک کې شاه يې هم ګدا لي

ماته رښتيا نه وې اې يارانو باري څه کړم
حقه کلمه نغمه د هر ګوش سخته بلا لي

زور د سيلاب وا ره ترل په مقامات وي
زره د خاموشۍ په ځای له نه (چې) ګويا لي

بې خس خاشاکه د آتش بقا په خه وي
آه و فرياد وا ره په مقدار د تمنا لي

زه د رقيب چاړو ناو پسا کړم له حبيبه
زلفې په نسبت د مار خو زلوا ژها لي

اې (رحمانه) هر راحت په اجر د زحمت دى
هر چې د ين (د ين) خاند هسې پر (د ين) په ژړا يي

په " چې پخته شي آشنايي " غزل کې له مقطع نه وروسته بيت :

په پښتو کې رحمان وو يې
په فارسي کې سنايي

په " يوه ذره به ورې يا به مو ړلې " غزل کې پنځم او شپږم بيتونه :

عبادت خو په ځوانۍ کې کړې رحمانه
په پيرۍ کې به څه زهد کړې چې زوړ يې

بد يې وا ره په سبد و نيسه رحمانه
چې پای بند د يان په هر يا په مړ يې

پہ "هر گفتار هره وینا چې خوشحال عبس کا" غزل کې شپږم بیت[1]:

| | |
|---|---|
| معتقد لره اعتقاده مقصود بیا موند | د هغو طاعت غلط دی چې وسوس کا |

پہ "که په بخت کم بختان نه وای خسته دل خوشحال" غزل کې ۶ او ۱۲ بیتونه:

| | |
|---|---|
| زه لاړ غړ دستا په مینه کې شهره یم | نه چې نن کاندي خبرې پردي خپل خوشحال |
| ما دا یو سر دی ذاستا شکرانه کړی | که د سر ما غزه مې خوړې په دا ویل خوشحال |

پہ "د زړه حال و تا ته څه وایم په ژبه" غزل کې ٤ او ۵ بیتونه:

| | |
|---|---|
| که یې لاس نه رسېدلی په چارو د خدای | بدي بخري به چا چېرې قبول یې |
| خوشحال له خاورو وایرو پاخوی تخت ورکړی | خوشحال له تخته دایرو په ډېران ولې |

۴۲۲۰

د رحمان بابا دیوان د (۱۳۵۵) لمریز کال د زمري په میاشت کې
د نصیر هنر "پښتون" په قلم خطاطي او نقاشي شو.

---

(۱) دا بیتونه د سبا غلی رفیع د شخصي کتابخانې له یوې زړې چاپي نسخې څخه لاس ته راغلل.

ترتیبونکی: څېړنیار محمد عارف غروال

# وېیپانګه تقاسوبي برخه

## لغت — معنی

### الف

| لغت | | معنی |
|---|---|---|
| ابتـه (حبطه) | | عبث، بې معنی، بې ځایه. |
| ابلق | | آس، برګ. |
| اختلاط | | ګډون، خبرې کول |
| ارهنډه | *arhánda* | بیدانجیر. |
| آدینه | | جمعـه. |
| اشام | | ؟ |
| اشراق | | دځلېدنت لمونځ، طلوع کول ځلېدل. |
| الـوی | *aləway* | وریت شوی. |
| اعراف | | دجنت اودوزخ ترمنځ ځای. |
| افسون | | جادو، اوده، دم. |
| الغیاث | | پناه غواړم، فریاد. |
| الوس (اولس) | | ټبر، قوم، طایفه. |

| | | |
|---|---|---|
| آماج | | موخه، هدف، د ټوپک غشي اونښان. |
| آماس | | پړسوب. |
| اوتاد (د وتد جمع) | | يوه روحاني مرتبه، موربي، مېخونه. |
| اوډنی | odənay | يو ډول ښځينه پوړنی دی چې غالباً يې په وروکوټي په سر وي |
| اوراد (د ورد جمع) | | دوعاگانې. |
| اورپښتی | orpəṣtay | پتنگ، پروانه. |
| اوږمکه | ozmáka | مياشت، ماه. |
| اولاق (اُلاغ) | | خر. |
| اهار | | داوړي سختي گرمي موسم. |
| اهلاد (هيداد) | | سزا، پاداش، سرزنش. |
| اياغ | | د شرابو پياله او کاسه. |

# ب

| | | |
|---|---|---|
| باده | | شراب. |
| بازه | bāṛá | يو مشهور خوږ. |
| بايې (بهايُی) | | وړوړ. |
| بتان (بت) | | مجازاً ږمخي، ښکلي. |
| بدسگال | | بدذات، بدجنس. |
| برنا | | ځوان، زلمی. |
| بساط | | د ځمکې فرش. |
| بطال | | بد ويونکی، باطل ويونکی، غلط ويونکی. |

بګاړ (بګیاړ) *bagāṛ* لېوه، شرمښ.

بیچاونې (بیچاونه) *bičāwna* دعزت جایې، بستره، وجایې.

## پ

پارسا — پرهېزګار، زاهد.

پارڅې *pārci* — دجوارې کولو دانې.

پاسلل — سپاړل.

پایله — پایزېب.

پخساک — پرېشاني، غم او خپګان.

پرانه — پرته، بې ځایه، بې موږده.

پسندل — غوره کول.

پکو — په ځان پورې تنګ او له ځانه سترې.

پنم — پړ.

پیڅل *pecə́l* — زغمل، صبر کول، تحمل کول.

پیچوې (پچوې) — دمچوغزې پرې (پچوکې) مجازاً او بدې ښځې او کنجه.

پیپړه — دکبناستو تخته، دناستې کټګۍ کټنجې.

پیشاب — متیازې، بولې.

## ت

تبرا — بېزار کېدل، تېرا کېدل.

ترارۀ *trāṛa* — تېره، کاڼي، ډبره.

تراهې *trāhí* — وېره

| | | |
|---|---|---|
| ترو | *tru* | نو . |
| توسن | | نیلی . |
| تولا | | محبت ، دوستي ، رښتینګلوي ، مینه . |
| تیږل | *tezə́l* | ځغلول ، پرمخ سرپړل . |

## ټ

| | | |
|---|---|---|
| ټوکرکی | | د پوزي یوه ټوټه یا ټوټکی . |
| ټنډ | *tə́nḍ* | په زړه پورې ، سخت ، محکم . |

## چ

| | | |
|---|---|---|
| چلیکان | | هغه کسان ونډګر چې په تنهاکلي ښځه یا مزدورې د چا حمله وکړي . |
| چندن | | صندل . |
| چوړه | | چوړه ، چواړه . |
| چوړک | | یو کم شی ، لږ څه . |
| چوګان | | نیزه ، ډډه ، یا توپنا ډنډه . |
| چووه | *čowá* | عطر ، خوشبویه مواد . |

## ح

| | | |
|---|---|---|
| حط | | ایسته کول ، لیرې کول ، د یو یار کوزول ، پرېښودل . |

## خ

| | | |
|---|---|---|
| خاصا | | نیک خویه ، خاص الخاص ، وتلی . |
| خاکروب | | جارو کښن . |

خټول — خټه لړونکی، ناپاک.

خپسر — *xpəsár* — خپل ځان.

خدنګ — غشی، خندق،

خراره — *xrāra* — یو ډول دښتي وره مرغه ده.

خرام — ناز او نزاکت (غالباً له تګ سره راځي).

خمر — شراب، مُل.

خمسور — *xamsor* — همراز- همراه.

# څ

څښکو — *caṣko* — یو بوټی دی چې میده کوې یې او په لپچنو ستر ګو کې یې اچوي (چشکو)

څرۍ — *carə́y* — د کیږدۍ د سراو بر ده وښتان.

څلي څولي — *cale-cūle* — ګنده ګونده، زوړ سامان، ګند او کچکول.

# ځ

ځبله — *ǰabə́la* — سره، یو ډول بله.

# د

دد — ځناور.

دښن — *daṣən* — دښمن.

دراج — تنځری (تڅری) یو مارغه دی.

| | | |
|---|---|---|
| درایے | | ږنغږه، ګونګرو، ژرژری، جرس. |
| دلق ازرق فام | | زرغون کند، ګودړی. |
| دمک | | یوه لحظه |
| دواب | | څاروي، څلور بولي، بوده‌ګان. |
| دوڅار | ducār | څرګند، ښکاره، ورمخامخ، نمایان. |
| دیبا | | وریښمین ښکلی ټوکر. میلک |

## ډ

| | | |
|---|---|---|
| ډبر | ḍabár | تناه، تپر، کهول. |
| ډلیال | ḍalyál | ډلې ملګری. |

## ر

| | | |
|---|---|---|
| راج | | راجا (واکمن) |
| راح | | خوښي، نشاط، مجازاً شراب. |
| رټه | ratə́y | ډېرلږ، ناڅیز، کم وزنه شي. |
| رسن | | رسۍ، تناو. |
| رصاص | | قلعي، سرپ. |
| رعنا | | ښکلی او متناسب اندام. |
| رنځوری | ranjə́ray | رنځور، ناروغ، علیل، مجازاً زیړرنګی. |
| ریمن | remə́n | خیرن، بدرنګ، ناولی. |

## ز

| | | |
|---|---|---|
| زباد | | اثبات. |

| | | |
|---|---|---|
| زبر | | یاد ، په یاد . |
| زمول | *zmal* | مړاوی ، بې سېکه ، ضعیف . |
| زوږ | *zwəẓ* | نشت ، نابود ، حرام . |
| زوم | | کم ، کمی . |
| زیرمه | | تدبیر ، ذخیره ، پانګه ، پاسره . |

## ژ

| | | |
|---|---|---|
| ژغر | *zğər* | ژغورلی . |

## س

| | | |
|---|---|---|
| سالکان | | زاهدان ، عارفان . |
| ساهو | *sāhū* | آزاد ، اصیل . |
| سترغلی | *stərğláy* | کولک ، دسترګو غاړې ، (کاسه چشم) |
| ستور | *stwar* | څاروی |
| سنجاب | | لولی . |
| سراښ | *srāṣ̌* | حریص |
| سفال | | ټیټ ، بې قدره ، پستي او بې همتي ، کودړی |
| سقلات | | خپل ځان پېټول . |
| سکه | *ska* | نو ، ځکه ، ګویا ، لکه چې . |
| سمک | | کب ، ماهي . |
| سنداسي | | واندې کېدل ، ملنګ ، کیمیا لټونکی ملنګ . |
| سولند | *swáland* | حریص ، بخیل ، ممسک ؛ لکه سولند سپی . |

سوها — *sohā* — یو ډول ځوانی توکی دی.

سپپاري — *sepārí* — یو لوړه نری ونه ده چې په تودو سیمو کې ښنه کېږي.

سیم — یو ګران قیمته فلز دی.

## ش

شب داج — توره شپه، د تروږمې شپه.

شط — سیند، هغه ستر رود چې دریاب ته ګډیږي.

شهاب — ستور، ستوري.

## ط

طره — جوغه

طوق — غاړکۍ، امیل

## ع

عتاب — قهر او غصه

عرعر — سپېدار

## غ

غبغب — د چړګ جنجړې، د چړګ جبوړه.

غربال — غلبېل، پرویزې.

غزاوشوه — اصل معنا: دا یو شوق دی، په دې نوخه وشول؛ (یو تکیه کلام دی).

غوړ — ğor — برخه، نصیب، قسمت، مجازاً میراث.

غوړځ — په زوره چیغې ایستل، په اتڼ کې توپونه او چیغې ایستل.

غوږی — ğwazáy — سخت انتظار، غوږ بلکی، د چا د راتګ د زړه انتظار.

غوك — لویه ښنګسته (چونګښه)، شلاندړه.

غوندی — ğúnday — د وزغنو جوال.

غونډ ژبی — ğwənd̤-žəbay — فصیح، بلیغ.

## ف

فلوس — د فلس جمع، دیوې ونې میوه ده چې په تود و سیمو کې شنه کیږي زیړې ترېخ او په طب کې کارېږي اخیستل کېږي.

## ق

قرقره — د چرګ تاج، چرګ خولی، تاج، شوغه.

قنج (غنج) — ناز.

## ك

کاړ — د وروکانو ډیری.

کام — هدف، مرام.

کاواك — ډړ، ګوګ.

کروړ — Kror — سخت، محکم.

کړیکه — Kṛíka — چیغه، وړو ونګی غږ.

کښنیده — نقشه، انځور.

کلاب (کلب) — سپی.

| | | |
|---|---|---|
| کنګال | | مفلس، نېستمن، مېنځل شوی. |
| کوتل | *Kutál* | ذبح کول، حلالول، پوستکي ترې ایستل |
| کودیکه | | یو ډول خاورین دېګ دی. |
| کورمه | *Kormá* | کورنۍ، اهل بیت. |
| کوله | *Kolá* | دساقې د پاسه د ګل برخه. |
| کوی | | چم، کوڅه، مالت. |
| کهی | *Kaháy* | ډنګر، لاغر. |

## ګ

| | | |
|---|---|---|
| ګانډه | *gánda* | سبا، راتلونکې ورځ. |
| ګایل | | ژوبل، زخمي، پرهار ژلی. |
| ګرام | *grām* | کلي، سیمه، استوګنځی. |
| ګروهېدل | *grohedə́l* | عقیده لرل، معتقد کېدل. |
| ګړیال | *gaṛyāl* | زنګ. |
| ګورهنده | *gorhánda* | ورته تیاره کوټه، په غره کې بانډه، ډوله شپېرله مجازاً قبر |
| ګونټه | *gonṭá* | دشطرنج دانه. |
| ګوهار | | دغواوو پاده. |
| ګوي | | پنډوس، پنډ وسکه. |
| ګنګو | *gongú* | زعفران. |
| ګېډی | *geḍáy* | ناپوه، بېړا، احمق. |

## ل

| | | |
|---|---|---|
| لارغه | *lārǧə́* | ډرنګ، ځنډ. |

| | | |
|---|---|---|
| لال | | ګونګی، یو ډول انګور دی. |
| لګام | | واګې، قبضه. |
| لو | lu | لوګې. |
| لوښېدل | locedə́l | یوه داسې اوږده مبارزه کول چې یوه سیاله دله هم نهایي بریالیتوب ته نه رسېږي، خو له مبارزې څخه هم لاس نه اخلي. |
| لوښتل | loṣtə́l | په کوچ پیل کول، لېږد پیل. |
| لونل | | پاشل. |

## م

| | | |
|---|---|---|
| مال ومنال | | شته ـ هستي او دارایي. |
| ماوا | | استوګنځی، مسکن. |
| متره | matrá | نایاب، نشت، زوړ. |
| مټ | məṭ | بازو، هاند، همت. |
| مجذوب | | جذب شوی، عاشق شوی. |
| مجمر | | نغری، دېګدان. |
| مخمور | | مست، نشه. |
| مخنث | | نر ښځی. |
| مذمت | | بدویل، غیبت. |
| مرسته | | طلب، لټون، کومک |
| مرغچه (مرغچې) | | کونجکه، خرموره. |

مستدام — همیشه، تل.

مشاطه — ډمه، سینګاروونکې.

مشګیرک — د یو مارغه نوم دی.

مصحف — کتاب، هغه پاڼې چې یو ځای یې سره ټولې کړې وي.

مطر — باران، ورښت.

معتیو (معتوه) — غیر مکلف، لېونی ړوند.

مغاک — ګودال، ژورغالی.

مقراض — بیاتي، قېچي.

منجلاب — خوسا ډنډ.

منزه — پاک، سپېڅلی، پاکیزه.

مواس — چوغلګر.

میثاق — ژمنه، وعده، عهد، پیمان.

میزر — پړونی، چادری.

مهوت — پیلبه، پیل والا

معیشی — معاش ـ تنخوا.

# ن

نارون (نارو) — یو ډول دانه ده چې د چټلو اوبو له څښلو پیدا کېږي او په منځ کې یې د تار غوندې نرۍ چینجي وي.

نار — د نهر، ساقه.

ناغه — دستر گو سره رگونه.

ناوك — غشی، شتی

نخل — دخرماونه، خجوره.

ندا — غږ، آواز

ندی — *nadáy* — رود، وړوکی سیند.

نغړول — نغړل، په یوه ساتېرول.

نغوتل — غوږ نیول، دخبرې منل.

نغوته — اشاره، تلقین.

نمري — جامې، لباس، کالي.

نمط — طریقه، نوع، روش، رویه
هغه ډله خلك چې په یوه فکر او روش وي.

نول — غم، پریشاني، اندوه.

نومړ — یادشوی، نومول شوی.

# و

وارړ — *wāṛṛ* — عوړه، ور

وبله — یو تربله.

وړژلی (وړژل) — ریزه ریزه کول، مرل.

وشتې — *wáštе* — توکې ټکالې، لطیفې.

وقر (وقار) — طاقت، تحمل، درنښت.

وېلاړ — *weláṛ* — عزم، اراده، نیت او مراد.

## ه

همیانئ — هغه تېلۍ چې پیسې پکې اېښودل کېږي، کیسه.

هنډه — *hánḍa* — مضبوطه اراده، ډېره غوښتنه، په زړه کې یوه خبره غوښتنه کول.

هوک — *huk* — ښېغ، شخ.

## ی

یرغال — بیره، یرغل حمله، برید.

یسار — کیڼ، اسان.

یمین — ښی.

پای

## یادونه :

دمتن تر تیارېدو وروسته ، د رحمن بابا د دیوان ځینې نورې نوې خطي نسخې تر لاسه شوې ، په دغو نسخو کې ځینې داسې غزلونه وو ، چې د متن له غزلو یې بېلتون زیات وو ، او یا یې توپیر سره درلود ، نو ځکه موږ نوې لاس ته راغلې غزلې په ضمیمه کې ونیولې ، په دې ضمیمه کې ځینې داسې غزلې هم شته ، چې په متن کې یې نیمګړی شکل هم خوندي دی ، لکه د متن د ۸۷ مخ غزله ، چې بشپړه د ضمیمې په ۲۸۳ مخ کې راغلې ده ، او یا لکه د متن د ۲۴۶ مخ غزله ، چې په بشپړه توګه د ضمیمې په ۲۸۶ مخ کې راغلې ده . نو محترم لوستونکي به دغه کار زموږ تېروتنه و نه ګڼي .

اداره

